# معراج نامه

د

## شاد محمد خان رئيس مردان



تحقيق او حواشي

پروفيسر ډاکټر سعيد الله قاضي

پښتو اکېډيمي پېښور يونيورسټي

# معراج نامه

د

## شاه محمد خان

تحقیق او حواشي

پروفیسر ډاکټر سعید الله قاضي




نظرثاني — پروفیسر پرېشان خټک

پیش لفظ — پروفیسر محمد نواز طائر




پښتو اکېډیمي پېښور یونیورسټي



---

د پښتو اکېډيمي د مطبوعاتو سلسله نمبر ۳۶۹

---

د کتاب نوم ———— معراج نامه

د مصنف نوم ———— شاد محمد خان (رئيس مردان)

چاپ کوونکے ———— ډائرېکټر پښتو اکېډيمي

د چاپ ځائے ———— نديم يونس پرنټرز لاهور

د چاپ کال ———— سنه ۱۹۹۳ء

کتابت ———— محمد رسول

شمېر ———— يو زر

قيمت مجلد ———— -/۱۸۰

سټوډنټس ايډيشن ———— -/۱۵۰

---

په اهتمام د محمد جاويد خليل په نديم يونس پرنټرز لاهور
کښې چاپ شو او د پښتو اکېډيمي پېښور يونيورسټي نه خور شو۔

# تشکر

---

پښتو اکېډيمي د صوبه سرحد د وزير اعلی ښاغلي مير افضل خان منه کوي چې هغوئ ددې کتاب د اشاعت دپاره ددې ادارې سره فراخدلانه مالي امداد اوکړو او پښتو اکېډيمي ئې ددې جوګه کړه چې داکتاب ښهٔ پهٔ خوند رنګ چاپ کړي .

بسم الله الرحمٰن الرحیم

نحمده و نصلی علیٰ رسوله الکریم

---

د پښتو اکېډمۍ په کتب خانه کښې چې کومې مخطوطې یا د هغو نقلونه یا مائیکرو فلمونه موجود دي - په د غه کتابونو کښې یو کتاب معراج نامه هم دے - دا په اصل کښې د حضرت معین الدین هروي د معراج النبوة ترجمه ده - چې د مردان نوموړي خان شاد محمد خان مرحوم د ټوارلسمې صدۍ هجري په سر کښې کړې ده - دا اثر د ادبي او مذهبي دواړه قسمه اهمیتونو له مخه د پښتو ژبې په علمي ذخیره کښې یو خاص مقام لري - ولې هر کله چې تر ډېرې مودې دا کتاب په غیر مطبوعه صورت کښې وو ځکه یې لوستونکوته د کتلو او لوستلو ډېره کمه موقعه په لاس ورغلې ده -

د کتاب مباحث نه یوازې دا چې دیوې ډېرې اهمې اسلامي موضوع سره تعلق لري بلکې ددې په ترتیب کښې د انساني شخصیت د ودې، اصلاح او روحاني تربیت د ارتقاء په حقله هم ډېر څه راوړې شوي دي - قطع نظر د موضوعاتو د اهمیت او د مباحثو د بشپړتیا ددې کتاب یو بل اهمیت هم څرګند دے او هغه دا چې دا کتاب د پښتو ژبې د ادبیاتو په یو ملي صنف یعنې بدله کښې یوه ډېره نوښتوزه اضافه ښکاري -

هسې خو په د غه دور کښې د بدلې او مثنوي رواج عام دے ولې د موضوعاتو د لحاظه ځنې داسې بدلې یا مثنویانې چې په هغو کښې دا علی انساني اقدارو، دیني تعلیماتو او انساني شعور د ودې، تکمیل او ارتقاء په باب له ذکرونه راغلي وي - په پښتو کښې چرته خال خال دي -

د حضرت معین الدین هروي د معراج النبوة دا ترجمه په دې لور یو ډېر

غوره اقدام دے چې د مردان د سیمې مرحوم شاد محمد خان په خپل وخت کښې د خپلې
علمي صلاحیتونو او شاعرانه کمال په برکت په پښتون وګړي پېرزو کړے دے۔ هر کله
چې دا کتاب علمي او دیني اړخونه ډېر باریک او اهم وو، ځکه موږ د دې د
تصحیح، حواشي او حوالو ذمه داري د پېښور یونیورسټۍ د اسلامیاتو د فیکلټۍ ډین
ښاغلي ډاکټر سعید الله قاضي ته وسپارله۔ مقصد په کښې دا وو چې په دغې
کتاب کښې چې کوم آیتونه، احادیث، عربي عبارتونه او نور کومې دیني حوالې
او متون راوړې شوي دي د هغو تصحیح او تصدیق په ښه شان سره اوکړے شي۔ موږ
د ګران ډاکټر صاحب مننه کوو چې هغوئ ډېر په ګنجکاوي، زیار او ګران خپله
د دغه ذمه دارۍ سرته اورسوله او د غه شان ئې د خان شاد محمد خان مرحوم د ترجمه
کړې منظومې معراج نامې مسوده د اشاعت او طباعت د پاره تیاره کړه۔ زه د ښاغلي
ډاکټر سعید الله قاضي د دې ګران منت بار یم او تشکر ئې کوم۔

دا منم چې د دې معراج نامې ځنې مباحث د عوامي نوعیت نه دي کېدې شي ولې بیا هم
دا کتاب د هغې تسلسل یوه کړۍ حیثیت لري د کومې ابتدا چې د شیخ اکبر حضرت
معین الدین ابن عربي د کتاب فتوحات مکیه نه شوې ده۔ او د حضرت علامه اقبال
د کتاب جاوید نامه پورې رارسېدلې ده۔ په دې منځ کښې غالباً چې په ټولو
هغه ژبو کښې چې په اسلامي نړۍ کښې ویلې کېږي د معراج نامې د قسم کتابونه
په دغه موضوع لیکلې شوي دي۔ د هر یو خپل خپل رنګ او خپل خپل انداز دے۔
خان شاد محمد خان هم په پښتو ژبه کښې په دغه موضوع خپل یو خاص انداز
لري او دا کتاب د دغې انداز نمونه ده۔

تېر کال د جولائۍ په میاشت کښې زه په چُھټۍ کلي ته تلے ووم چې سحر
په خره د علاقې د یو سرکاري اهلکار له خوا خبر راغے چې د دغې میاشتې په
پنځویشتمه نېټه زه د صوبه سرحد وزیر اعلیٰ خان میر افضل خانؒ بللے یم۔ ما د
حکم تعمیل ضروري اوګڼلو او هم په هغه تاریخ د هغوئ په خدمت کښې حاضر

شوم - هلته خبر شوم چې ښاغلي **میرافضل خان** زما د هغه ګذارش په حقله کوم
چې ما د تګلښې نه عفوي ته پیش کړے وو زما سره خبرې کول غوښتل - د دې ملاقات
په نتیجه کښې د هغوئ د محترم نیکه **خان شاد محمد خان** مرحوم او د هغوئ
د مصاحب مولوي محمد رفیق مرحوم د کتابونو د اشاعت معامله ډېره په خوش اسلوبۍ
سرته اورسیدله -

ښاغلي وزیراعلیٰ په د غه موقعه نه یواځې د معراج نامې او د بیر د انش
(د انوار سهیلي) او د مولوي محمد رفیق د کتاب شمس الفلک د اشاعت د پاره مالي
امداد منظور کړو بلکې د دیوان شاد محمد خان د دوباره اشاعت حکم ئې هم
اوکړو - د غه شان پښتو اکیډیمي ته دا موقعه په لاس راغله چې د غه څلور واړه
کتابونه په یوځائے شائع کړي - او د پښتو مینانو او لوستونکو ته ئې وړاندې کړي -

د د غه څلورو کتابونو نه یو کتاب دا دے چې ستاسو د وړاندې دے - زه په
دې موقعه نه یواځې د صوبه سرحد د محترم وزیراعلیٰ **خان میرافضل خان** تشکر کوم چې
هغوئ ډېر په فراخدلۍ د دې څلورو واړو کتابونو د اشاعت د پاره مالي امداد منظور کړو
او پښتو اکیډیمي ئې د دې جوګه کړه چې د غه کتابونه په خپل اشاعتي پروګرام
کښې شامل کړي بلکې ورسره ورسره زه د هغوئ د محترمې خور بیګم **زري سرفراز خان**
هم بې حده ډېر ممنون یم چې هغوئ په خپله په دې کارکښې دلچسپي لرله او زمونږ په
وړاندې به ئې په هره موقعه د دې کتابونو د اشاعت په حقله د خپلې دلچسپۍ
اظهار کوو او په اخر کښې ئې د دې د عملي ثبوت په توګه پښتو اکیډیمي ته د غه
موقعه تر لاسه کړه چې دا کتاب "معراج نامه" او د غه نور کتابونه د چاپ تر حده اورسوي -

په دې موقع زه د وزیراعلیٰ د خصوصي معاون ښاغلي **محمد طارق خان**
هم شکریه ادا کووم چې هغوئ زمونږ په دې کارکښې زمونږ سره په هره مرحله کښې
کُمک اوکړو او کله هم چې حاجت پیښ شو نو یا خو به په خپله راپیښ شو او یا
به ئې مونږ ته بلنه راکړه چې د غه کار پوره په احتیاط اوسم بوړله ترسره شي -

مونږ خپل پوره پوره کوشش کړے دے چې نهٔ یواځې د تحقیق او څېړنې له رویه بلکې د کتابت او اشاعت له مخه هم ددې کتاب پهٔ هر لحاظ ښودنې او خوبې قایمه پاتې شي - او دا پهٔ دا سې معیاري جوړ شائع کړے شي چې هر لوستونکے ددې کتوته خواهش اولري -

ددې غرض دپاره مونږ د کتاب د ترتیب اوتدوین او حواشي د کار او د نظرثاني ذمه واري دپښتو اکېډمي او دپښتو شعبې ګڼواني سربراه او دیونیورسټي ګرانټس کمیشن موجوده چېرمېن ښاغلي پروفیسر **پرېشان خټک** ته اوسپارله۔ هغوي د خپلو بې ګڼه مصروفیاتو باوجود زمونږ د غه خواست قبول کړو او د غه کار ئې پهٔ پوره کوشش او ذمه وارۍ ترسره کړو - مونږه د هغوي ددې خصوصي مينې چې هغوي ئې ددې ادارې سره لري او ددې د مخه زمونږ پهٔ علمي او ادبي کارونو کښې زمونږ سره د فکرو نظر او مالي امداد او اعانت پهٔ لړکښې مرسته او ملګرتيا هم کوي هغوي دا کار هم پهٔ خپله دغه خصوصي مينه زمونږ دپاره ترسره کړو او دغه شان د خان شاد محمد خان نیکي معراج نامه دادی اوس د تصحیح او حواشي او مکملو حوالو سره شائع کیږي۔ زهٔ د ښاغلي پروفیسر پرېشان خټک د مینې او شفقت تشکرکووم او هیله لرم چې هغوي بهٔ لکه د همیش پهٔ دشانګې خپله دغه مینه او تعلق د پښتو اکېډمي سره هم دغه شان قایم ساتي -

زهٔ پهٔ دې موقع د وزیراعلی دپرائیویټ سېکټر ښاغلي **آصف شاه** سی ایس پي هم ډېر ممنون یم چې هغوي د کتاب د ترتیب او کتابت د کار پهٔ لړکښې زمونږه راهنمائي کړې ده او دهغې پهٔ نتیجه کښې دا موجوده انداز غوره کړے شوے دے۔ زهٔ دپېښور یونیورسټۍ د سابق وائس چانسلر **ډاکټر محمد انورخان** او د موجوده وائس چانسلر میجرجنرل (ریټائرډ) **خورشید علی خان** هم مننه کووم چې هغوي زمونږ د کار سره د خصوصي دلچسپۍ اظهار پهٔ هره موقعه کړے

دے او ددې کار سرته په رسولو کښې ئې هم زمونږ حوصله افزائي کړې ده ۔

زه د پښتو اکېډمۍ د خپلو ټولو ملګرو په خصوصیت سره د ډاکټر راج ولي شاه خټک ، محترمې سلمیٰ شاهین ، ښاغلي ډاکټر هدایت الله نعیم ، ښاغلي پرویز مهجور ۔ د پښتو اکېډمۍ د کتاب دار ښاغلي سرفراز خان مروت ، محمد جاوید خلیل ۔ محمد انورخان ، ښاغلي حاجي عارف الله ، قاري محمد طیب ، ښاغلي قاضي حنیف الله حنیف ، ښاغلي احمد علي عاجز او د پښتو اکېډمۍ د کاتبانو لطف الله ، محمد رسول او ارشاد خان ډېره مننه کووم چې هغوئ په خپل خپل ځائے زما سره په دې کار کښې پوره پوره معاونت کړے دے او دغه شان ئې دا کتاب د ترتیب او تدوین د مرحلې نه واخله د اشاعت تر اخري منزله رسولے دے ۔ زه د دوئ ټولو د مینې خلوص او ښې کارکردګۍ مننه کووم او هیله لرم چې دوئ به هم دغسې په خپل خپل ځائے د خپلو ذمه وارو احساس لري او کله هم چې کوم کار دوي ته سپارلے کېږي ئې هغه به پوره په خوش اسلوبۍ سرته رسوي ۔

زه د ندیم یونس پرنټرز لاهور د اهل کارو هم ډېر ممنون یم چې هغوئ دا کتاب پوره په خوند رنګ چاپ کړو او هیله لرم چې بیا د پاره به هم هغوئ زمونږ سره په دې میدان کښې مرسته او کمک کوي ۔

و ما علینا الا البلاغ

پروفیسر محمد نواز طائر

ډائرېکټر

پښتو اکېډمي پېښور یونیورسټي

# مقدّمه

دپښتو اکېډېمۍ د ډائرېکټر ښاغلي محمد نواز طائرؔ صاحب ډېره ډېره مننه چي د ښاغلي شاد محمد خان مرحوم کتاب معراج نامه يې راته د تصحيح، تحقيق او تقديم دپاره حواله کړه - او د پښتو ادب د يو ستر او نامتو اديب سره يې متعارف کړم - هسې خو زما د پښتو ژبي او ادب سره ډېر خوا نه مينه ده او د هغې عملي ثبوت دادے چي ما په پښتو ژبه کښې ډېر شمېره مقالې په "پښتو" "اباسين" او "اولس" غوندې رسالو کښې چاپ کړي دي. ددې کتابونه مې په پښتو کښې ليکلي دي په يو مې د اباسين آرټس کونسل او د اسټر ګلډ نه انعامونه اخستي دي - ددې کتاب نوم روښانه ډوند او په بيل، چي نوم يې سيرت د پاک رسولؐ دے مې د شلو زرو روپو صدارتي انعام اخستے دے دبل نوم ددين د ښادے - ددې زياته برخه د بين الاقوامي اسلامي يونيورسټي د دعوه اکېډېمۍ د وړو وړو مقالو په شکل کښې چاپ کړې ده او په ډېر لوے شمېر کښې يې تقسيم کړې ده - د ابوالحسن علي ندوي د سيرت د کتاب نبي رحمت پښتو ترجمه هم ما کړې ده او چاپ شوې ده - نوم يې سيرة النبي کامل دے - د سيد سليمان ندوي د خطبات مدراس پښتو ترجمه هم ما کړې ده او د مدراس د خطبو په نوم چاپ شوې ده - نور کتابونه د مختلفو کتابونو پښتو ترجمې دي او لا چاپ شوي نه دي لکه زما خپل کتاب ياران د پاک رسول، اسلامي تشخص او اسلام څه ته وائي او د اسلام په حقله څنې اعتراضات او د هغې جواب -

ولې سره ددې دافسوس خبره داده چي څنې خلق دا نمونه کتابونه په ادب

کېږي نهٔ شمارې - نهٔ پوهېږم چې دا ولې ؟ یا خو دوئ د ادب په مفهوم ځان نهٔ دے پوهه کړے او یا هسې د دین او مذهب سره څهٔ مینه نهٔ لري۔ بهر حال دا کتابونه د ادب یوه برخه ده که څوک ئې مني او کهٔ نه۔

د شاد محمد خان مرحوم معراج نامه چې راته محمد نواز طائرؔ صاحب را حواله کړه او یو نظر مې پرې وا چوّ او بیا مې د شاد محمد خان په حقله دغه نور کتابونه وکتل نو راته معلومه شوه چې دے خو د پښتو ادب ډېر لوړ شاعر تېر شوے دے د معراج نامې په کتو راته هغه څېل وروکوالے را یاد شو چې کله به زمونږ یوې نیا اجې وفات نامه، جنګ نامه، خواندُ شریعت، معراج نامه (چې ډېرې ېکلې شوې دي) او رشید البیان د چم کاونډ ښځو ته ډېر په خوش اوازه او خوند وے دې به هم ژړل او هغوئ به هم - ګویا چې د پښتو ادب دا برخه د ښځو انه دا روانه ده په کورونو دننه وِ ټیلے شي او خلق ترې نه عبرت او سبق حاصلوي -

د شاد محمد خان معراج نامه د نورو پښتنو شاعرانو په رنګ رسول د خدائے ته د عقیدت او محبت پېرزونه ده - پښتانهٔ ادیبان کهٔ هر څوک وي خو په څېل ادب پارو کېږي حُبِ رسول (صلی الله علیه وآلهٖ و سلم) ته پوره پوره توجه ورکوي او کهٔ هغه کتاب د حمد نه شروع شي نو نعت رسول (صلی الله علیه وآلهٖ وسلم) ورپسې لازمي وي او دا ځکه چې پښتون اول او اٰخر مسلمان دے کهٔ دے هر څومره ګمراه شي خو اسلام ددهٔ د ختې نه نهٔ وځي - حب رسول خو دوئ اصل ایمان ګڼي او د خوشحال بابا سره په دې عقیده کېږي پوره پوره ملګرتیا کوي چې

د خدائے عرفان مې او شوبهٔ عرفان د محمد

لکه چې ما اووې پښتو شاعرانو په څېلو ادب پارو کېږي د رسول د خدائے صلی الله علیه وآلهٖ و سلم سره د څپلې مینې او عقیدت اظهار ډېر په ښه شان سره کړے دے۔ د مینې او عقیدت یو څو نمونې د یو څو شاعرانو د کتابونو نه وړاندې کوو۔

احمد شاه بابا وائي ـ

دگناهونو شرمنده يم
له خجلت سر افگنده يم
د دې نفس په خوله گنده يم
فرياد رس يا مصطفیٰ

خوشحال خان بابا وائي

د خدای عرفان مې اوشو په عرفان د محمدؐ
پاک دے محمد پاک دے سبحان د محمدؐ
دا شه نظر اوکړه په طٰهٰ او يٰسين باندې
خدای دے صفت کړے په قرآن د محمدؐ
د پر خلق پيدا دي انبياء که اولياء دي
نشته په خلقت کښې يل په شان د محمدؐ

حافظ الپوري وائي ـ

اے داعي هادي برهانه
په ديدار مې مشرف کړه
نوراني بدر تابانه
په ديدار مې مشرف کړه
دا دنيا ده که عقبیٰ ده
ستا د مخ په نور زيبا ده
اے نيره درخشانه
په ديدار مې مشرف کړه

خواجه محمد بنګش وائي

له عدمه يې عالم واړه موجود کړو
لري هسې رنګ توان زما حبيب
بهترين د مخلوقاتو يې پيدا کړو
سر حلقه د کل انسان زما حبيب
دواړه کونه يې دده په مخ پيدا کړه
په مولا دے هسې ګران زما حبيب

عبد العظيم بابا سواتي وائي

مخه ور په خپل مولا يې محمد
د انبيانو مقتدا يې محمد
بيماران د کفر ستا په دم رغيږي
د خوږ زړونو مسيحا يې محمد

رحمان بابا وائي -

که صورت د محمد نه وے پيدا
پيدا کړي به خدائے نه وه دا دنيا
کل جهان د محمد په روي پيدا شو
محمد دے د تمام جهان ابا
نبوت په محمد باندې تمام شو
نشته پس د محمده انبياء
زه رحمان د محمد د در خاکروب يم
که مې نه کا خدائے ددې دره جدا

علي خان وائي -

اے په حق د حق رهبره
لاس درب د پاره راکړه
هم تر کل مخلوقات غوره
لاس درب د پاره راکړه
اے نبي پاکه مُرسله
په مُرسلو کښې افضله
هم اول يې هم آخره
لاس درب د پاره راکړه

کاظم خان شيدا وائي -

اے په فرق د آدم تاجه
د تمام عالم سراجه
ته د هر نعت لائق يې
بې نظير د خلائق يې
ته سيد د مرسلين يې
رحمة للعٰلمين يې

نجيب وائي -

دا د دشت د ژوند انه دا توره شپه دا ورکه لاره
که ته مې رهبر نه شوې لاړبه او نه مو مم ياره
د کور کلي نه لرې مسافر د هر د يار يم
پوهيږم نه چې چرته زه روان په خندا و خاريم

محمد نواز خټک وائي ـ

پهٔ مخ دے پیدا شوے دا جهان د محمدؐ
پهٔ مخ دے نازل شوے هم قرآن د محمدؐ
دنیا کښې بهٔ څرګند وي او سرخ رو پهٔ اخرت
عمل چې دے چا کړے پهٔ فرمان د محمدؐ

میاں سید رسول رسا وائي ـ

د نبا زما د سترګو اے زما د زړګي سره
تیرَ ي خورې چا پېره ورکښې ګېر زهٔ بې شعورٌ
دنیا کړه لږه زیاته لاره نهٔ ویتم تورتم کښې
روان یُم پهٔ توکل تکړې تورمه دم قدم کښې

خان میر هلالي وائي ـ

واه واه امي لقب او بیا صاحب د پاک قرآن
نالوستے او عالم د علمیت د ټول انسان
چې چا پهٔ ژبه ګونګ کړل فصحاء د ټول جهان
چې چا ته فضلاء د زمانې وو ټول حیران
یتیم د عبد الله او پهٔ نبیانو کښې سالار
هغه چې نازول دے د پاک پروردګار

عبد الله جان اسیر وائي ـ

تیلي دو قمې ته مې طلب کړه رسولِ عربي
زما مقصود مدعا ته يُ اے عالي نسبي
فخر انسان دوست د رحمان يُ د نبیانو امام
سردار کل ختم الرسل هاشمي مطلبي

اعظم خان اعظم ليكي -

دې قرارو زړونو قرار دے محمد عربي

د غريب امت غمخوار دے محمد عربي

دا غلے اخرين دے نو معنیٰ کښې اولين دے

پهٔ انبيانو کښې سردار دے محمد عربي

پښتانهٔ اديبان لا څهٔ کوې عام پښتانهٔ هم د رسول د خدا ے سره بې کچه مينه لري ولې کله ناکله سړي له افسوس پهٔ دې ورشي چې دا مينه صرف د زړهٔ د اظهار پورې محدوده وي زمونږ عملي ژوند ډېر کم ددغې مينې او محبت تائيد کوي - بيا هم ډېر خلق داسې شته چې د زړهٔ د اظهار سره سره د خپل عمل نه هم ددې مينې ثبوت ورکوي - د شاد محمد خان معراج نامه هم رسول د خدا ے ته د عقيدت او مينې پېرزوينه ده -

معراج نامه د شاد محمد خان خپل اصلي کتاب نهٔ دے بلکې دا د يو کتاب معارج النبوة في مدارج الفتوت د يو باب منظومه ترجمه ده - دا جدا خبره ده چې شاد محمد خان ځاے پهٔ ځاے او خصوصاً د هر يو فصل پهٔ آخر کښې خپلې نعتيه غزلې هم شاملې کړې دي - دا کلام مونږ ددې مقدمې پهٔ آخر کښې د معراج نامې نه راجدا کړے دے -

د معراج نامې پهٔ حقله ځينې ليکوال وائي چې دا د معارج النبوت مطالعه نهٔ ده کړې - بې د څهٔ تحقيق نه يې دا نظريه قائمه کړې ده - چې دا د معارج النبوة ترجمه ده - شاد محمد خان پهٔ خپله هم ددې د مصنف پهٔ پېژندګلو کښې خطا شوے دے - حقيقت دا دے چې معارج النبوت ډېر لوے کتاب دے يوه مقدمه لري چې يوسل او شپږ اويا (۱۷۶) صفحې ده او څلور فصلونه لري - پهٔ اول فصل کښې تحميدات ذوالجلال دي - پهٔ دويم کښې مناجات ملک متعال دي - پهٔ دريم کښې نعتونه د رسول د خدا ے مناقب بيان کړے شوي دي پهٔ څلورم کښې

د رسول د خدای خصائص او فضائل بیان کړے شوي دي او په پنځم کښې د صلوٰة او درود، مناجات او نعتونو ذکر دے د معراج په حقله ځلوېښت احادیث هم په کښې دي.

د مقدمې نه پس اول جلد شروع کيږي په دې کښې دوه رکنونه دي په اول رکن کښې ۲۴۲ صفحې دي او په دويم کښې ۱۲۰ صفحې ورپسې د مضمونونو فهرست دے د اته صفحې دے - بیا ورپسې دریم جلد شروع کيږي په دويم جلد کښې هم دوه رکنونه دي په دريم رکن کښې ۲۴۰ صفحې دي او په څلورم کښې ۴۷۲ صفحې - په آخر کښې د معجزاتو د عنوان لاندې ۸۸ صفحې دي - ګويا چې دا ټولې صفحې را جمع شي نو په معارج النبوت في مدارج الفتوت کښې يوولس سوه شپږ ديرش (۱۱۳۶) صفحې دي - د شاد محمد خان معراج نامه د دويم جلد د دريم رکن د څلورم باب منظومه ترجمه ده - په دې کښې څليريشت فصلونه دي -

په اول فصل کښې معراج ته د تلو ذکر دے -

په دويم کښې د معراج د شپې د تعين په حقله بحث شوے دے -

په دريم فصل کښې تمثيلات بيان شوي دي

په څلورم فصل کښې د مکې مکرمې نه بيت المقدس ته د تلو ذکر دے (دې ته اسرا وائي او د بيت المقدس نه آسمانونو تلو ته معراج وائي)

په پنځم کښې د بيت المقدس واقعات ذکر شوي دي

په شپږم کښې د اول آسمان او د هغې د عجائبو او غرائبو ذکر شوے دے

په اووم کښې د دويم آسمان د واقعاتو ذکر موجود دے -

په اتم کښې د دريم آسمان واقعات بيان شوي دي -

په نهم کښې د څلورم آسمان حالات بيان شوي دي

په لسم کښې د پنځم آسمان د حالاتو ذکر دے -

په يوولسم کښې د شپږم آسمان د واقعاتو تفصيلات ذکر شوي دي

په دولسم کښې د اووم آسمان واقعات بيان شوي دي -

پهٔ دیارلسم کښې د سدرة المنتهیٰ واقعات ذکر شوي دي

پهٔ څوارلسم کښې د سدرة المنتهیٰ نه د پاس تلو حالات دي.

پهٔ پنځلسم کښې د ثم دنی فتدلی فکان قاب قوسين او ادنیٰ تفصیل بیان شوے دے.

پهٔ شپاړسم کښې د رسول د خدا ے او د الله تعالیٰ پهٔ مینځ کښې د څنې تعلقاتو بیان دے.

پهٔ اوولسم کښې د امن الرسول تفصیل وړاندې کړے شوے دے

پهٔ اتلسم کښې فاوحی الی عبده ما اوحی پهٔ حقله تذکره شوې ده

پهٔ نولسم کښې د جنت عجائب او غرائب بیان شوي دي

پهٔ شلم کښې د جهنم د طبقو ذکر دے

پهٔ یو ویشتم کښې د رسول د خدا ے د دعا ذکر شوے دے.

پهٔ دو ویشتم کښې د قاب قوسين د مقام نه د رسول د خدا ے د واپسئ ذکر دے. د نمانځه او روژې د تخفیف پهٔ حقله تفصیلات پهٔ دې باب کښې موجود دي.

پهٔ دیرویشتم کښې هم د معراج فوائد او لطائف بیان شوي دي

پهٔ څلیر ویشتم کښې هم د معراج فوائد او لطائف بیان شوي دي

د معراج نامې متن د دوېم جلد پهٔ دریم رکن کښې د ۹۸ صفحې نه واخله تر ۲۱۰ صفحې تلے دے گویا چې د معراج نامې متن د ۱۱۳۶ صفحو پهٔ کتاب کښې تقریباً ۱۱۰ صفحې دے

د کتاب ژبه فارسي ده - پهٔ دې وجه د څنې لیکوالو دا وینا چې معراج نامه د معارج النبوت ترجمه ده صحیح نهٔ ده

د معارج النبوت د مصنف پهٔ حقله پهٔ خپله شاد محمد خان هم خطا شوے دے دے وائي چې دا د خواجه معین الدین چشتي اجمیري دے دا کتاب د هند د خلقو کارنامه ده - ولې دا مې نهٔ ده د دې مصنف معین الدین هروي واعظ کاشفي دے د نهمې

هجری یو عالم دے۔معارج النبوت ئې په ۸۹۱ھ کښې لیکلے دے د ابو الغازي بهادر سلطان حسین مرزا د زمانې یو ډیر لوی او شیرین ژبان واعظ تیر شوے دے د هرات روسید و دے روضة الجنت د ده یو بل کتاب دے چې د هرات تاریخ په کښې په ډیر تفصیل سره بیان شوے دے معین الدین صاحب په خپل کتاب معارج النبوت کښې د ډیرو کتابونو استفاده کړې ده لکه زهرة الریاض، روضة العلماء، ریاض المذکرین، تاج المذکرین احیاء العلوم، نوادر الاصول او روضة الواعظین شرح احادیث سید المرسلین وغیره

معارج النبوت د اسلامیه کالج په مکتبه کښې د ۱۲۰۶ او ۱۲۰۲ عدد مسلسل لاندې موجود دے۔کتاب په ۱۲۹۲ھ کښې په لاهور کښې چاپ شوے دے۔د اسلامیه کالج په مکتبه کښې ددې قلمي نسخې هم شته۔

د لته ددې خبرې ذکر هم ضروري دے چې زمونږ په لاس کښې کومه قلمي نسخه ده دا میان سناء الدین کاکاخیل د اصل نه نقل کړې ده او ډیره خوشخطه ئې لیکلې ده۔ ددې نسخې د صفحو شمیر ۳۰۸ دے۔وائي چې اصل نسخه د میرمن زري سرفراز سره ده

شاد محمد خان د خپلې معراج نامې اغاز دا رنګې کړے دے۔

معراج درة تاج الانبياء والمرسلين:۔

اول حمد ثنا کرم زه د قدسي ذات
چې په لاس لري حیات او هم ممات
ورکوي د عزت او د ذلت دے
خود مختاره خود مختار په اخرت دے
دے خالق د هر اشیاء دے پاک اکبر دے
هم رازق د هر جان دار دزنده سر دے
بې مانند ه بې مکانه بې مثال دے
تل تر تله برقراره په یو حال دے

پیدا کړے عرش عظیم لوح قلم دے
د هرچا نصیب په لوح ياندې رقم دے
دوزخونه زحمتونه راحتونه
آسمان زمکه جنتونه نعمتونه
کانې بوټې ونې غرونه دریابونه
شمس قمر ستورې زمین میوې خوابونه
ملائک ځودې پیریان د پیوان آدم
نفس، شیطان، کبر، هوا، خوشحالي غم
علم حلم صحیفې څلور کتابه
دا همه دې د جانبه د ترابه
که ظاهر دي که باطن دي په دنیا
که ناطق دي که بې نطقه دې گویا
دا همه دې پیدائش د پاک ستار
شریک نه لري واحد دے هم غفار
**شاد محمد** که پرې ستړے کړي ځپل ځان
یو صفت به پوره نه کړي درحمان
دریابونه به په څښو نه شي تمام
څه که ډک کړي څوک د ځپلي پوهې جام

په دې حمد پسې درسول دخدا ے نعت و ښکلے شوے دے او بیا ورپسې د
چار یارو ستاینه شوې ده۔

دکتاب د تصنیف په حقله لیکي :۔

د تصنیف ددې کتاب دے دا سبب
چې ما اولید یو کتاب بسیار عجب

د هغه نوم معارج النبوت وو
د معراج په کښې بیان صاف د حضرت وو
زړه مې اوشو چې پښتو کړم دا معراج
چې د خپلې پوهې ورکړمه فراج
پښتانه چې د احواله شي خبر
چې کل حال ورته معلوم شي د سرور
چې څه فضل پرې الله کړے عظیم دے
د لویه په کښې بیان د دوست کریم دے
ډېرو کړي د معراج دي کتابونه
د شمار دې به یې څوک وکړي حسابونه
مالیدلي کتابونه دي کم کم
هسې حال په کښې صاف نشته دے سم سم
معارج النبوت کښې پوره حال دے
چې تصنیف د هندوستان بدر شال دے
چې خواجه دے د اجمیر وکړه یقین
چې تصنیف دے د ملا معین الدین
چې په کل جهان ښکاره لکه د نمر دے
هم اولاد زموږ د پاک نبي سرور دے
زړه مې اوشو چې پښتو کړم دا معراج
چې تمام احوال د ده ته کړم اخراج
هم خلقو ته چې حال تمام ښکاره شي
د معراج چې قیل و قال تمام ښکاره شي

هم یوځو کسه باعث شو په دا باب
چې پښتو کړه کل معراج ددې کتاب
زما زړهٔ کښې لا اول وو هسې خیال
چې پښتو کړم دا تمام د معراج حال
شاد محمد په کښې ؤکړه کو شش ډېر
چې یو ځائے په کښې له تاته نهٔ شي هېر
خیال کوه په کښې و نه کړې زیات وکم
چې څهٔ پېښ نهٔ شي هوس په ځائے کښې غم

ددې پس دکتاب اصل متن شروع کېږي ـ

ددې قلمي نسخې خاتمه داسې شوې ده :ـ




په سن دولس سوه دیارلس کښې عجب
په تاریخ د اتویشتم کښې د رجب
شه تمام کتاب په خیر سره ضرور
په کتوېٔ د مومن زړهٔ شي مسرور
او زما په کښې مطلب وو صرف ثواب
په درگاه دې یٔ مقبول کړي پاک تواب
ھ چې ماکړے په دې دے مشقت
صرف د پاره د ثواب د اخرت
چې په دې کښې کل احوال دے د سرور
چې یللے په محبوب دے پاک اکبر
له فارسی مي پښتو کړ دا کتاب
په زېور د نظم ماکړه انتخاب

شاد محمد نو دیه څهٔ وایې اوس بس کړه
خدا ے رسول پهٔ لارې سم درومه هوس کړه
هر چې سم درومي پهٔ لار ددوئ صادق دے
چې څوک غیر درومي له دوئ نه منافق دے

د معارج النبوت نه علاوه د شاد محمد خان نور تصانیف هم شته . دیوان خو ئې زمونږ پهٔ لاس کښې دے ولې د دوئ دد یوان او نورو کتابونو پهٔ حقله مونږ ته استاذ محمد رفیق سل کاله اګاهو اطلاع راکړې ده . د کتاب پهٔ اخرکښې لیکي:

قد تم من تصانیف لئیق اورنګ جلالت عالي منزلت جناب شاد محمد خان صاحب کثیر المواهب قدوة الخوانین العظام والاکرام رئیس اعظم قریة مردان علاقه یوسفزئ ضلع پشاور . والسلام

بدست خط فقیر محمد رفیق عفی الله تعالیٰ عنه و لجمیع المؤمنین بحرمة النبی و آله الامجاد .

دا خو ټولو خلقو ته معلومه ده چې شاد محمد خان د مردان ډیر لوے خان وو او د سرحد د موجوده وزیر اعلیٰ خان میر افضل خان نیکهٔ وو او محمد رفیق استاد ددهٔ استاذ او کاتب وو . ددې دواړو پهٔ حقله تفصیلي معلومات د دوئ دد یوان پهٔ مقدمه کښې خیال بخاري صاحب لیکلي دي مونږ دلته د هغې تکرار کول ضروري نهٔ ګڼو د معراج نامې دواقعاتو بنیاد څهٔ دے . دا واقعات چې پهٔ کومو اتوالو

---

۱ استاذ محمد رفیق پهٔ دې عبارت کښې اګرچې ښکاري د عرفه ، ډیرې ډېرې دایوځا ئے کړې دي . هم پهٔ کښې عربي ده هم پهٔ کښې پهٔ پښتو او هم پهٔ کښې فارسي ، نورو کتابونو ته اشاره پهٔ من تصانیف ( یعني د تصانیفونه ) کښې شوې ده .

میان سناءالدین کاکاخیل دا نسخه داګست د میاشتې پهٔ دوېم تاریخ پهٔ کال ۱۹۶۱ ء چې د صفرې د میاشتې شلم تاریخ او کال ۱۳۸۱ھ وو کښې نقل کړې ده .

روایاتو او احادیثو بناء دي هغه تر کومه حده مستند دي - ښکاره خبره ده چې د معراج په حقله دا روایات ډېرو مفسرینو په خپلو خپلو تفاسیرو کښې را جمع کړي دي لکه په ابن کثیر تفسیر کښې بنه ډېرې صفحې دي واقعاتو ته ورکړے شوي دي - دغه رنګ روح المعاني هم دے ته بنه پوره توجه ورکړې ده - څنې خلق لکه سید سلیمان ندوي، دا روایات مستند نه ګڼي ولې څنې یې مستند ګڼي ولې سره ددې ما او زما یو ملګري چې د مردان د ضلع د هوسۍ نومې کلي اوسېدونکے دے - په سکول کښې استاد دے او ډېر بنه محقق دے - نوم یې سراج الاسلام حنیف دے - ډېر کتابونه یې هم لیکلي دي، ددې اقوالو او روایاتو څه لږ ډېر تحقیق اوکړو - چې د معراج نامې د واقعاتو په حقله لوستونکو ته حقائق په ګوته کړو - کېدے شي چې زمونږ دا تحقیق څه اخري خبره نه وي دا هم کېدے شي چې مونږ په خپل تحقیق کښې غلطي کړي وي بیا هم مونږ دا کار ډېر په غیر جانبداري او اخلاص کړے دے که صحیح وي نو الله دې اجر راکړي او که غلطي مو په کښې کړي وي نو د هغې د الله نه او د لوستونکو نه بخښنه غواړو -

د شاد محمد خان په معراج نامه کښې د قرآن پاک د ایتونو نه علاوه تقریباً درې سوه او پنځه (۳۰۵) اقوال ذکر شوي دي او دا اقوال ټول یې هوبهو د معارج النبوت نه را نقل کړي دي ددې اقوالو او احادیثو تحقیق نه د معارج النبوت مصنف کړے دے او نه شاد محمد خان او استاذ محمد رفیق - چې څنګه ورله په ګوتو ورغلي دي هغه رنګ یې په خپل کتاب کښې را نقل کړي دي او بیا یې د هغې مفهوم په اشعارو کښې وړاندې کړے دے دا جدا خبره ده چې په څنې ځایونو کښې د عربي متن پوره او ترجمه یې بیله - ولې بیا هم د اکثرو اقوالو او احادیثو منظومه ترجمه یې صحیح کړې ده -

د شاد محمد خان په معراج نامه کښې ددې اقوالو، احادیثو او ایتونو په نقل کولو کښې ډېرې ددې غلطۍ شوي دي څنې عبارتونه په کښې پرېښودي شوي

هم دي او ځنې په کښې د اصل نه زيات شوي دي .

ترکومې چې د قرآن پاک د آيتونو د رسم الخط تعلق دے شاد محمد خان يا استاذ محمد رفيق دا د څهٔ تحقيق نه بغير دا نقل کړي دي د قرآن پاک چې شهره تېکي د عامې عربۍ ژبې په طرز کښې ليکلي شوي دي حالانکې موږ ته دا معلومه دل پکار دي چې د قرآن پاک رسم الخط توقيفي يعني دالله دا رخ نه دے د حرفونو کوم ساعت چې د خدا ے دا رخ نه دا غلط دے په هغې کښې د څهٔ قسم تصرف يا ورکښې د خپل ځانه کمے زياتے ډېره بده خبره ده بلکې که دا تصرف يا کمے زياتے په کښې ارادتاً روشي نو دې ته تحريف و ئيلے شي او دا بيا د يهودو او نصاراوٴ صفت دے او هغوئ به هم په کتابونو کښې تحريف کوو او هم ئې په قرآن پاک کښې د تحريف کوشش کړے وو . د مثال په ډول شاد محمد خان او ملا معين الدين هروي دواړو اَلطَّيِّبٰتُ الطيبات ليکلے دے دا د قرآن پاک د رسم الخط خلاف ورزي ده . د غه رنګ دواړو د اَعْطَيْنٰكَ په ځائے اعطيناك ليکلے دے . دا هم د قرآن پاک د رسم الخط خلاف ورزي ده . غُفْرَانَكَ ئې غفرانك ليکلے دے عَيْنٰهُ ئې عيناه ، يٰعِبَادِى ئې ياعبادى ، يٰاَيُّهَا ئې يا ايها اُولٰئِكَ ئې اولئك او اَلْقٰهُ ئې القاه ليکلے دے . دا ټول تېکي په داسې خط کښې ليکل د قرآن پاک د رسم الخط نه تعرض دے .

په ډېرو ځايونو کښې د آيتونو په ليکلو کښې ډېرې غلطۍ شوي دي په ځنې آيتونو کښې پوره پوره کلمې پرېښودې شوي دي او په ځنې ځايونو کښې نو په کښې د ځان نه تېکي زيات کړي شوي دي . بهرحال دا د کاتب غلطۍ ښکاري . استاذ محمد رفيق صاحب چې ډېر ستر عالم وو ، ته په کار وو چې د قرآن آيتونه ئې د قرآن په رسم الخط کښې ليکلي وې او دا هغه هله کولے شو چې ددې مقابله ئې د قرآن پاک سره کړے وے . په هر څهٔ کښې غلطي معاف کېدے شي ولې د قرآن پاک په الفاظو او رسم الخط کښې غلطي ډېره لويه ګناه ده .

ولې په دې غلطو موږ يوازې شاد محمد خان او استاذ معين الدين يا استاذ

محمد رفیق صاحب نهٔ شو کړولے . نو سبا هم که ځنو دا قسم غلطۍ کولے شي نو د قرآن پاک پهٔ آیتونو او احادیثو کښې کولے شي . او خلق ورته تصحیح ته هیڅ توجه نهٔ ورکوي . پهٔ کار ده چې هر لیکوال پهٔ خپله لیک کښې د قرآن پاک د آیت یا حدیث د صحیح لیکلو ډېر خیال او ساتي او که دا سې اونهٔ کړي نو پهٔ دا رنګې غلطو د یو لیک یا کتاب معیار ډېر را غورځېږي .

څنګه چې ما وړاندې اووې چې د معراج نامې د اقوالو او احادیثو موږ یو معمولي غوندې تحقیق کړے دے هغه تحقیق لوستونکو ته وړاندې کوو :-

د معراج نامې په ۱۷ صفحه چې کوم عربي عبارت درج دے دا د صوفیاؤ قول دے او د کشف الخفا نومې کتاب نه اخستے شوے دے . پهٔ ۱۸ صفحه چې کوم عبارت درج دے هغه د بخاري شریف حدیث دے ولې غلط نقل شوے دے پهٔ الشفاء نومې کتاب کښې دا عبارت لا تفضلوني علی یونس بن متی دے ولې پهٔ بخاري شریف کښې دا عبارت " ماینبغي لعبد ان یقول : انا خیر من یونس بن متي " دے .

پهٔ ۲۷ صفحه چې کوم عبارت نقل شوے دے هغه د ابن ماجه حدیث دے ولې دوه ځاے پهٔ کښې د یوم القیامة تکے پاتې شوے دے صحیح عبارت دا سے دے :-

انا اول من تنشق الارض عنه (یوم القیامة) ولا فخر (وانا اول شافع و اول شفع ولا فخر) ولواء الحمد بیدی (یوم القیامة) ولا فخر .

پهٔ ۳۴ صفحه باندې چې کوم حدیث شریف ذکر شوے دے هغه موضوعي دے پهٔ لسان المیزان نومې کتاب کښې دار قطني ددې ته "متروک" یعني پرېښودلے شوے ویلې دي .

پهٔ ۸۴ صفحه چې کوم حدیث شریف ذکر شوے دے هغه صحیح دے دا پهٔ مستدرک حاکم او فتح الباري کښې ذکر شوے دے د غه رنګ حدیث شریف " اول ماخلق الله نوری " هم موضوعي دے . مولانا اشرف علي تهانوي<sup>رح</sup> دا پهٔ نشر الطیب کښې پهٔ شپږم صفحه نقل کړے دے او د مصنف عبدالرزاق حواله يې ورکړې ده ولې صفحه موږ ته دا حدیث پهٔ نظر را نغے .

د ۶۵ صفحې نه واخله تر ۹۰ صفحې چې کوم عبارتونه را نقل شوي دي د هغې اصل مونږ معلوم نهٔ کړے شو.

په صفحه ۹۱ چې کوم حديث ذکر شوے دے هغه په مسلم شريف کښې موجود دے په دغه صفحه يو بل عبارت هم دے ولې د هغې مأخذ مونږ معلوم نهٔ کړے شو.

په ۹۳ صفحه چې کوم حديث شريف نقل شوے دے هغه متفق عليه دے يعنې هم په بخاري شريف کښې دے او هم په مسلم شريف کښې دغه رنګ هم په دغه صفحه کښې يو بل حديث شريف هم شته چې په بخاري شريف کښې موجود دے ولې عبارت يې دا دے ـ

سبحان الله وبحمده سبحان الله العظيم

د دې نه پس د ۹۹ صفحې نه واخله تر ۱۳۶ صفحې چې کوم عربي عبارتونه نقل شوي دي د هغې اصل مونږ معلوم نهٔ کړے شو لکه چې مستند احاديث نهٔ دي.

په ۱۳۷ صفحه چې کوم حديث شريف نقل شوے دے هغه په بخاري شريف کښې موجود دے ولې عبارت يې دا رنګې دے ـ

افضل الكلام اربع ـ سبحان الله، والحمد لله

ولا إله الا الله والله اكبر

دغه رنګ په ۱۴۲ صفحه چې کوم احاديث دي هغه په بخاري شريف کښې موجود دي ولې عبارتونه يې دا سې دي ـ

الحمد لله الذى هداك للفطرة

ولو اخذت الخمر غوت امتك

د ۱۴۳ صفحې نه واخله تر ۱۴۹ صفحې درج عبارتونه مونږ معلوم نهٔ کړے شول

په ۱۵۶ صفحه چې کوم عبارت درج دے هغه د سورهٔ النجم د ايتونو تفسير دے ـ دا د عربۍ په تفاسيرو کښې خصوصاً جلالين کښې موندے شي ـ د ۱۵۷ صفحې عبارت په ابن کثير کښې موندے شي ـ

پهٔ ۱۶۲ صفحه کې کوم حدیث شریف درج دے هغه پهٔ اتحاف السادة المتقین کښې موجود دے۔

پهٔ صفحه ۱۶۴ او ۱۷۱ کښې درج عبارتونه موږ معلوم نهٔ کړے شول۔

پهٔ صفحه ۱۷۲ او ۱۷۳ کې کوم عبارتونه موجود دي هغه د بخاري شریف روایتونه دي۔

د غه رنګ پهٔ صفحه ۱۷۳، ۱۷۴، ۱۷۵ او ۱۷۹ درج عبارتونه موږ معلوم نهٔ کړے شول۔

پهٔ صفحه ۱۸۴ کې کوم حدیث شریف درج دے هغه ترمذي شریف او ابوداؤد رانقل کړے دے۔

پهٔ صفحه ۱۸۸ او ۱۹۳ کې کوم عبارت رانقل کړے شوے دے ددې مأخذ او اصل موږ معلوم نهٔ کړے شو۔

پهٔ صفحه ۱۹۷ کې کوم حدیث شریف موجود دے هغه ترمذي روایت کړے دے ولې عبارت ئې داسې دے

یا محمد! إرْفَعْ رَأْسَكَ - سَلْ تُعْطِهِ وَشْفَعْ تُشَفَّعْ

پهٔ صفحه ۱۹۸ درج حدیث شریف موږ معلوم نهٔ کړے شو۔

پهٔ ۲۰۱ او ۲۰۲ کې کوم احادیث موجود دي د هغې ذکر پهٔ مشکوٰة شریف کښې شوے دے ولې عبارت ئې دا رنګ دے۔

یَا محمد! هَلْ تَدْرِي فِيمَ يَخْتَصِمُ الْمَلأُ الأَعْلَىٰ؟

قُلْتُ: نعم فِي الْكَفَّارَاتِ، وَالْكَفَّارَاتِ: المكث فی المساجد بعد الصلوٰة والمشي على الاقدام الى الجماعات و ابلاغ الوضوء فی المعاد؛

والدرجات: افشاء السلام و اطعام الطعام والصلوٰة بالليل والناس نيام

(دا عبارت زموږ د کتاب پهٔ ۲۰۳ صفحه درج دے خو الفاظ ئې دا نهٔ دي)

پهٔ صفحه ۲۰۳ نور هم ډیر عربي عبارتونه موجود دي ولې د هغې اصل موږ معلوم

نهٔ کړے شو۔

پهٔ صفحه ۲۰۵ چې کوم حدیث شریف درج دے هغه پهٔ مجمع الزوائد نومې کتاب کښې راغلے دے ولې عبارت ئې دا رنګ دے :۔

قل : اللهم إنّی اسئلک فعل الطیبات وترک المنکرات وحب المساکین وان تغفرلی وترحمنی وتتوب علی ؛ واذا اردت بقوم فتنةً فتوفنی غیر مفتون۔

د صفحه ۲۰۶ نه واخله تر ۲۳۵ صفحې پورې چې کوم عربي عبارتونه درج دي د هغې ماخذ موږ معلوم نهٔ کړے شو۔

په صفحه ۲۴۰ چې کوم عربي عبارت درج دے هغه حدیث شریف دے او پهٔ مسند حمیدي کښې موجود دے۔

د صفحه ۲۴۲ نه واخله ترصفحه ۲۵۴ چې کوم عربي عبارتونه نقل کړے شوي دي۔ هغه موږ معلوم نهٔ کړےشول۔

پهٔ صفحه ۲۵۵ چې کوم عبارت درج دے او عام خلق ئې حدیث شریف بولي هغه (الفقر فخري پهٔ فقیرئ زهٔ فخر کوم) د ابن حجرعقلانی پهٔ نزد باطل او موضوعي دے۔ دا فتوی پهٔ کشف الخفا نومې کتاب کښې درج ده۔

پهٔ صفحه ۲۶۴ چې کوم حدیث شریف موجود دے هغه موږ معلوم نهٔ کړے شو۔

پهٔ صفحه ۲۷۰ او ۲۷۱ چې کوم حدیث موجود دے دا پهٔ دارقطني کښې ذکر دے ولې عبارت ئې دا رنګ دے۔

اللهم اعوذ بک بعفوکَ من عقابکَ وبجنّتکَ من نارکَ ۔ اعوذ برضاکَ من سخطکَ ۔ اعوذ بکَ منکَ۔

د صفحه ۲۷۲ نه تر ۲۷۹ صفحې درج عبارتونه موږ معلوم نهٔ کړے شول۔ البته پهٔ ۲۷۷ صفحه درج عبارت وجعلت قرة عینی فی الصلوة حدیث شریف دے۔

پهٔ صفحه ۲۸۱ چې کوم حدیث درج دے دا پهٔ ابوداؤد او ترمذي شریف کښې موجود دے ولې عبارت يې دا رنګ دے

عن ام حبيبة رض قالت: سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: من حافظ على اربع ركعات قبل الظهر واربع بعدها حرمه الله على النار۔

دا یو معمولي غوندې کوشش وو چې د معراج نامې د عربئ عبارتونو پهٔ حقله موږ لوستونکو ته وړاندې کړو۔

## معراج او د هغې نوعیت:

ددې نه پس غواړم چې د معراج پهٔ حقله هم د یو څو سوالونو جوابونه ورکړم۔

معراج کله شوے دے۔؟

دا جسماني شوے دے او کهٔ روحاني؟

آیا جسماني معراج ممکن هم دے او کنه؟

د اولني سوال جواب دا دے چې د معراج د تاریخ پهٔ حقله مختلف روایات راغلي دي دیو روایت مطابق معراج مدینې منورې ته د هجرت کولو نه شپږ میاشتې اګاهو شوے دے۔

د بل روایت مطابق د معراج واقعه رسول د خدائے ته د نبوت ورکړے کېدو نه پنځه کاله پس شوے دے۔ د یو بل روایت مطابق د معراج واقعه هغه وخت اوشوه کله چې اسلام پهٔ عامو قبائيلو کښې خور شوے وو ددې ټولو روایتونو خلاصه دا شوه چې د معراج واقعه د هجرت نه یو څو کاله اګاهو شوې ده۔

د څنې نورو روایاتو مطابق د اسراء او معراج واقعه د دوېمې خور پهٔ ۲۷ تاریخ د هجرت نه یو کال اګاهو پېښه شوې ده۔

پهٔ څنې روایاتو کښې راغلي دي چې رسول د خدائے ته د نبوت ورکړے کېدو نه اتلس[18] میاشتې پس دا واقعه پېښه شوې ده۔ ددې ټول بحث خلاصه دا ده چې د

معراج شپه دزیږګي میاشتې د ۲۷ تاریخ شپه ده د کال تعین یې ګران دے۔

د قرآن پاک دایتونو او مستندو احادیثو نه معلومیږي چې د اسراء (د مکې نه بیت المقدس ته تلل) او معراج (آسمانونو ته تلل) واقعه جسماني شوې ده - دا سفر روحاني نهٔ دے شوے بلکې جسماني شوے دے دې ته د قرآن پاک پهٔ ولنې تېګي سبحان کښې اشاره شوې ده او دا ځکه چې د سبحان ټکے د تعجب او حیرانتیا دپاره راځي - دا دیولوئې کارنامې دپاره هم راځي کهٔ معراج روحاني یا پهٔ خوب کښې شوے وے نو بیا پهٔ دې کښې د تعجب او حیرانتیا څهٔ خبره ده. ټول خلق پهٔ خوب کښې دآسمانونو او زمکې سیل کوي ولې څوک پهٔ هغې د تعجب اظهار نهٔ کوي.

بل دلیل دا دے چې پهٔ ایت کښې د عبد ټکے راغلے دے - عبد بنده ته وائي - او عبد صرف روح ته نهٔ وائي بلکې روح او جسم دواړو ته عبد وائي -

باقي دا ده چې جسماني معراج څهٔ غیر معقوله خبره نهٔ ده پاتې شوې کهٔ د انسان جوړ شوې بجلي پهٔ یو سکنډ کښې یو لک او شپږ اویا زره میله مزل کولے شي نو خدائے جوړ او ګټلونې نظام نو ددې نه ډیر اعلی پکار دے - کهٔ انسان خلق سپوږمۍ ته پهٔ جسماني ډول پهٔ دا کټوتو کښې ختے شي او دا انسان جوړ الات دي نو د کائنات خالق خپل بنده دیو داسې نظام لاندې ولې نهٔ شي بوتلے چې هغه را ته معلوم نهٔ دے۔

باقي شوه دا خبره چې د خدائے پاک سره د ملاقات پهٔ سدرة المنتهی او نهمې آسمانونو کښې ولې اوشو - خدائے پاک ځان له عرش نومې ځائے ولې ټاکلے دے؟ نو دا نو معلومه خبره ده چې پهٔ دنیا کښې هم د یو ملک مشر د خلقو سره پهٔ یو خاص ځائے کښې ملاقات کوي دے د ملاقات پهٔ دغه ملک د بنده چې کوم ځائے او غواړي کولے شي ځکه چې دغه ملک د دهٔ پهٔ بادشاهۍ یا حکومت کښې شامل دے ولې پهٔ دې کښې پهٔ دهٔ څهٔ داسې پابندي نهٔ شي لګولے چې دے بهٔ د ملاقات پهٔ فلانکي ځائے کښې کوي او پهٔ فلانکي کښې نه - ځکه چې کهٔ پهٔ دهٔ دا رنګ پابندي اولګولے شي نو دے بیا حاکم نهٔ شي پاتې کېدے -

دغه رنګ ټول کائنات د خدائے پهٔ بادشاهۍ کښې شامل دي پهٔ ټول کائنات د خدائے

حکومت دے۔ دهٔ ته دا اختیار حاصل دے چې کوم ځائے اوغواړي دخپل خاص بنده سره هغه ځائے کښې ملاقات اوکړي ۔ خدائے د رسول د خدائے سره د ملاقات دپاره هم دغه ځائے خوښ کړے وو او هم هلته ئې ورسره ملاقات اوکړو۔ په دې کښې د څهٔ اعتراض خبره نهٔ ده چې را پېدا کېدل پکار۔

باقي رسول د خدائے صلی الله علیه وآله وسلم د الله تعالیٰ آخري پېغمبر وو۔ الله تعالیٰ دهٔ ته د خپل کائنات وسعت ښودو ۔ د دوئ خو په هر څهٔ ایمان وو ولې خدائے پاک دهٔ ته د خپله کائنات مشاهده کول هم غوښتل چې د نورو خلقو په مقابله کښې د دهٔ ایمان د علم الیقین نه عین الیقین او حق الیقین ته اورسي اوکهٔ نور څوک په غیب ایمان داوړي نو دوئ به دغه ایمان د مشاهدې د مخې په ډېر کلک والي او مضبوطتیا سره لري۔

امید دے چې موږ د هغه درې سوالونو جوابونه اوکړل امید دے چې لوستونکي به ترې قانع شوي وي۔

لکه چې موږ وړاندې وئیلي دي ـ شاه محمد خان په معراج نامه کښې ځائے په ځائے د خپلو خیالاتو اظهار په خپلو الفاظو کښې هم کړے دے ضروري گڼم چې د منظومې ترجمې نه د هغه کلام جدا په دې مقدمه کښې خلقوته وړاندې کړے شي ـ او دا به د هغه یو جدا کلام وي ـ په اوله او دویمه صفحه د رسول د خدائے صلی الله علیه وسلم ته خپله پېر زونه دا رنگې وړاندې کوي ـ

پس له حمده د ثنا وایم درود
په احمد په محمد او په محمود
د لوی به ئې زهٔ څهٔ کوم بیان
چې محبوب ورته وئیلي دي سبحان
دے مبداء د پېدائش د کل عالم دے
په ظاهر پسر باطن پلار د آدم دے

کل جهان الله پیدا دده د نور کړ
د عدم نه ئې په سبب دده ظهور کړ
د لولاک تاج ئې په سر اېښے دے رب
د شهنشاه د مرسلانو شه عجب
عرش کرسي لوح و قلم اواسمان زمکه
په سبب دده ئې کړه هر څه پیدا څکه
او میم فرق دے د احمد او د اَحَد
د خالق او د بنده دے د غه حد
دا هم واړه کرم پرې د رحمان دے
چې خاتم الانبیاء آخر زمان دے
نبوت کړ پاک الله په ده تمام
شاد محمد له ته ئې سپے اوسه د در
چې ځان ته کړي یوه ذره ترې لروبر
نشته شک په رسالت کښې د رسول
چې څوک شک کړي هم کافر دے هم مجهول

---

له شاد محمد خان په خپل دیوان او معراج نامه کښې خپل ځان ته د رسول د خدا دے د در سپے د یر کرته ویلے دے۔ خلقو ته نو به د خپلې عاجزۍ، انکسارۍ او محبت د اظهار دا یوه ډیره مبالغانه انداز ښکاري او کېدے شي چې ځينې خلق ئې خوښ نه کړي۔ ولې دا سې معلومېږي چې شاد محمد ته د سپي یو صفت ډیر د کمال ښکارېدو چې هغه په انسانانو کښې هم ډیر کم ښکاري سپے چې هر څه د ے خو د خپل مالک سره ډېر وفاداري منلے شوې ده که ډے وږے وي او که تږے خو د خپل مالک دروازه نه پرېږدي۔ که مري هم نو ترڅو چې ورله خپل مالک اجازت نه وي ورکړے د هغه د دروازې پروت وي او په اجازت بیا یو ې غاړې ته شي او سا ورکړي خو انسان د خپل مالک او رازق څومره ناشکره او بې وفادے۔ ددې د وضاحت ضرورت نشته۔

د شاد محمد خان یو صفت دا هم دے چې د رسول ص د نعت نه پس دے د هغه چاریارو ته هم پېرزوني وړاندې کوي - د معراج نامې په دوېمه صفحه یاندې لیکي -

اول یار د چهار یارو نه صدیق وو
چې په غار کښې د حضرت سره رفیق وو
د لویه به دده څه کوم حساب
په کاسه به پیمانه نه شي دریاب
مرتبه کښې وو دا هرچانه بلند
لکه نمر دے په تمام جهان څرګند
دوېم یار د چهار یارو نه عمر دے
چې په عدل مشهور لکه د نمر دے
په دا تلو دده شه دین تمام روښان
په ظاهر بلند آواز شه مونځ اذان
په کافرو دده نه وو رحم ترس
شجاعت کښې وو په وارو خلقو سرس
درېم یار د چهار یارو نه عثمان دے
جمع کړے په مضمون سره قرآن دے
سخاوت کښې پرې هیڅ څوک نه وو دیاسه
هم حیا ئې ده د هرچانه بې قیاسه
سر تر پایه د حیا نه ټول ډک
د ذرې نشته په دې کښې شبه شک
څلورم یار د یارانو نه حیدر دے
هر کافر ترې ځائے ترځایه په خطر دے

چې برکښ په يې د کاتبه کړ ذوالفقار
په غارونو کښې ترې پټ په شو کفار
هم يې علم د هر چا نه لره ډېر
ملقب وو په لقب باندې د شېر
پس له دوي نه باقي نور اصحابان
او بېل بېل د مرتبې وو صاحبان
چې ليدلے د رسول دے چا جمال
هغه کس اصحابي دے په هر حال
اصحاب دي چاليدلي په يقين
او هغوته شي وئيلي تابعين
تابعين دي چاليدلي په نظر
هغه تبع تابعين دي مقرر
**شاد محمد** دے د جمله وُ خدمتگار
چې ځان سپے گڼي د خپل نبي دوئيدار
چې په شرع مستقيم وي د سرور
د هغو هم ځان گڼم خاص نوکر

په صفحه ۹ باندې ليکي:

**شاد محمد ده** دا هم فضل د اکبر وو
دا زموږ په پاک نبي خير البشر وو
کل نبيان خلق نفسي نفسي به وائي
پاک رسول به امتي امتي وائي

په لسلمه صفحه ليکي:

شاد محمده چې پېشوا لري سرور
شفاعت به دامت کړي په محشر
امیدوار اوسه د فضل د کرم
چې دا هسې وسیله وي ځه دے غم

په یوولسمه صفحه لیکي.

محرومه ئې نه ساه غوارم په رحیم
شفاعت مې کړې نصیب الف د میم
شاد محمده ته ئې اوسه خاص غلام
خاوند ننګ په خپل غلام کوي تمام
څوک خاوند لري د دوو کونو صاحب
د غلام به ئې سربالا وي مراتب

په صفحه ۱۴ لیکي:-

شاد محمده چې شفیع لري دا شان
چې دے فخر د زمین او د آسمان
پاک الله ورته وئیلے دے محبوب
کلمه ئې مفرح ده د قلوب

په صفحه ۱۷ لیکي:

شاد محمده که ګناه لرې بې قیاسه
د کریم د فضله نه شې ناشناسه
چې شفیع لري بل هسې دوست د رب
غلام اوسه که دیدار لري مطلب

په صفحه ۱۸ لیکي:-

شاد محمده غم د ځان د آخرت کړه
نور خیالونه فضول کل د زړهٔ او چت کړه

چې پیشوا لري د دوؤ کونو سردار
صادق او سه نور بهٔ خبر کړي پاک سردار

په صفحه ۲۱ لیکي:

شاد محمده لمن تینګه د سرود کړه
ځان د لارې د الله رسول خبر کړه

غیر د لارې د اَحَد او د اَحْمَدْ
قدم کښې نهٔ بدې د حده په بل حد

هم په دې صفحه کښې وړاندې لیکي :-

شاد محمده رب رحمان دے هم رحیم
بل چې ستا دے وسیله رسول کریم

د غضبه د قهار کوه خطر
فضل رحم یې امید کړه سراسر

په صفحه ۲۲ لیکي :

شاد محمده چې پیشوا لري دا شان
چې په خپل امت دے ډیر ډیر مهربان

په درګاه دے د رحیم کریم قبول
لمن تینګه کړه په صدق د رسول

هم په دغه صفحه وړاندې لیکي :-

شاد محمده چې د دوؤ کونو سردار
چې پیشوا لري سرور نبي دوئیدار

او خالق د مخلوقاتو الله پاک
په سر اېښے د خپل دوست تاج د لولاک

پهٔ صفحه ۲۶ لیکي :-

شـاد محمد ه درسول خدمت کاراوسه
دالله نه ددیدار امید واراوسه
مستقیم اوسه پهٔ شرع درسول ؐ ؛ ؛
چې پهٔ در دے د خالق رازق مقبول

پهٔ صفحه ۲۸ لیکي :-

شـاد محمد ه اوسه هاوره د قدم
درسول مقبول پهٔ شرع اوسه سم
پهٔ لقب دے ملقب حبیب درب
دا مطلوب کړه د مطلب خپل کړه طلب

پهٔ صفحه ۳۳ باندې وائي :

شـاد محمد ه چې پیشوا لري رسول ؐ
چې پهٔ در دے درحیم رحمان قبول
ځان غلام لره پهٔ صدق د سرور ؐ
خدا ے به خبر کړي چې ځان نهٔ کړي لرو بر

پهٔ صفحه ۵۴ باندې لیکي:

شـاد محمد ه د غلام اوسه غلام
د سرور خیرالبشر خیرالانام
کهٔ د سپو پهٔ ځاے ئې را غلې پهٔ یاد
هم حاصل به دي دذرهٔ شي تمام مراد

پهٔ صفحه ۵۴ باندې لیکي :-

**غزل د محمدت** محبوب کبریا احمد مصطفیٰ صلی الله علیه وسلم

اے محبوبه او اے دوسته د اکبیره
اے د دوؤ کونو پیغمبره !!
اے چې ستا پهٔ مخ اباده رب دنیا کړه
تاج پهٔ سر دے کړ الله د لولاک غوره
آسمانونه دي کهٔ عرش کهٔ جنتونه
دوزخونه دي کهٔ دا دنیا اکثره
دآدم د پیدائښت مبدا هم تهٔ یې
پهٔ ظاهره یې پسر باطن پدره
جنتونه دي مقام ستا د دوستانو
دوزخونه دي د شمن لـه ستا سروره
خادمان د شرع ستا به پهٔ هوس وي
دشمنان به دي کړي بشکته د سقره
چې آدم ابوالبشر سره بالا شي
خیر د خلقو یې سرور خیر البشره
هم قمر او عطارد زهره او نمرهم
د مریخ دي لاس کوتاه کره دخنجره
مشتري او هم زحل دِ استقبال کړي
نیک نحونیک وو بد دي بنهٔ کړله دشره
شاد محمد خان غلام د شریعت کره
چې پیشوا دي دے رسول مهٔ کوه یره
پهٔ صفحه ۷۴ لیکي:
شاد محمد دا دي فخر دے عظیم
چې لري پیشوا محبوب درب رحیم

دوست حبیب محبوب بیلې په اکبر
ته یې ځان په شان د سپي ګنه د در

په صفحه ۴۸ لیکي :-

**شاد محمده** لمن ټینګه د حضرت کړه
په خدمت یې ملا یسته د زړه په نیت کړه
هر ساعت د زړه په نیت یې غلام اوسه
دم په دم په حمد صلوٰة صبح و شام اوسه

په صفحه ۴۹ لیکي -

**شاد محمده** غلام اوسه د رسول
چې په در دے د الله رحیم قبول
صدق سم په شریعت کړه د اخلاصه
چې دي غاړه شي د طوق د ګناه خلاصه

په صفحه ۵۱ لیکي :

**شاد محمده** اوسه پسې د پاک رسول
کل فرمان یې په دل جان لره قبول
ځان کړه خاوره د رسول د پاک قدم
خاص غلام کړه ځان په شرع اوسه سم

په صفحه ۵۲ لیکي :

**شاد محمده** خپل ځان سم په شریعت کړه
ځان غلام د در د پاک نبي حضرت کړه
غیر د شرعي چرته کښې نه ږدي قدم
د هوس په عوض وا خلي سخت غم

په صفحه ۵۳ لیکي:

**شاد محمده** پاک حضرت په آخرت
د عاصي امت کوي په شفاعت
که هر څو لرم ګناه د حده ډېره
د رسول د شفاعت نه ذرّه سپره

په صفحه ۵۵ لیکي:

**شاد محمده** د حضرت لمن کره کلکه
زړه په آب د صدق اوومنځه چي شکه
هیڅ دې غم نشته چې دا محبوب درب
شفاعت اوکړي ستا هیڅ نه ده عجب

په صفحه ۵۶ لیکي:

**شاد محمده** چې سرور محبوب درب دے
قاب قوسین او په ادنی کښې څه عجب دے
که لري عجب په دې کښې نالائق دے
برابر د منافقو منافق دے

په صفحه ۵۷ لیکي:

**شاد محمده** څه دې غم د اخرت دے
چې شافع دې محمد نبي حضرت دے
لمن ټینګه کړه په صدق د رسول
رب به خبر کړي د ذري سه کوه تول

په صفحه ۵۸ باندې لیکي:

**شاد محمده** غلام اوسه د دوئیدار
چې حبیب د ے او هم دوست دے د ستار

د هر کرم کړي په اُمت د پاک رسول
د دنيا ورته يو کار نهٔ دے قبول

په صفحه ۸۸ ليکي :

**شاد محمد** د سرور خير البشر
لمن نيټنگه کړه په لاسو برابر
ځان دې پيے کښه ددَر د پاک رسول
کل احکام يُ کړه شرعي په ځان قبول

هم په دې صفحه د رسول د خدا ے په صفت کښې يو غزل ليکي - وائي

دا دنيا کړه ستا د مخه رب پيدا
کنده ېنهٔ به وه زمين اونهٔ سما
جمادات کهٔ حيوانات کل موجودات دي
همگي پيدا د مخه کړه رب ستا
چې راضي دي په ظهور غني رحمان شهٔ
پس د هغې کړ پيدا آدم حوا
اول نور يُ ستا پيدا کړ نورځهٔ نهٔ وو
نهٔ جهان وو نهٔ پيدا وو هيڅ اشيا
نور اول وجود آخر دې په ظهور شه
سر آخر يُ کړي ته ختم الانبياء
کهٔ مرسل کهٔ انبياء کهٔ اولياء دي
د همه وارو اللّٰه کړي تهٔ پيشوا
اميدوار دي د خلعت د شفاعت دي
کهٔ عاصيان کهٔ ناستقان دي کهٔ پارسا

دهګوی حساب دي نشة دے سروره
چې یادکړے پهٔ محبوب یې کبریا

دا همه فضل پهٔ تا د خپل خالق دے
چې یې تاج کړ د لولاک درته عطا

ستا پهٔ در باندې پراتهٔ لکه خشاک دي
کهٔ امیر دے کهٔ بادشاه دے کهٔ ګدا

مریضان دې صحت یاب پهٔ لږ نظر شي
تهٔ د رحمة للعٰلمین یې هم دوا

چې آدم ابوالبشر د هر انسان دے
تهٔ الله خیرالبشر کړې د هر چا

کهٔ پهٔ ذرهٔ د چا تور داغ د کفر نهٔ وي
شپه و روز بهٔ پهٔ درود وي ستا ګویا

د رسالت بهٔ دې مني د ذرهٔ د صدقه
کهٔ بالمحض وي اُمي او یا مُلا

چې دې شمار پهٔ غلامانو د محبوب کړم
دا مې فخر دے به تاله ده ثناء

شاد محمد وائي پهٔ سپوږمۍ دي ښکاره
پهٔ عالمو کښې بهٔ شمه سر بالا

پهٔ صفحه ۱۰۱ باندې لیکي:

شاد محمد ده صدق خپل کړه برابر
ځان غلام لره د خپل نبي سرور

شفاعت بهٔ دا مت پهٔ آخرت کړي
کافران بهٔ بې نصیب د شفاعت کړي

هم پهٔ دغه صفحه درسول دخدای په ستائنه کښې ليکي :

وکړه پهٔ ما مهر کرم رسول الله عربي
زهٔ دې غلام يم د عجم رسول الله عربي

نفس و شيطان مې د شمنان دواړه غالب دي پهٔ ما
دوئ مې کړه لاندې د قدم رسول الله عربي

نهٔ پهٔ زمين نهٔ پهٔ آسمان کښې خپل صورت وښه
اوده غافل يمه هر دم رسول الله عربي

سستي غفلت دے پهٔ ما زور بيدار بيدا نهٔ شمه
تهٔ د غفلت مې کړه دور غم رسول الله عربي

د معصيت پهٔ تيغ مجروح تمام بدن دے زما
د شفاعت راکړه مرهم رسول الله عربي

پهٔ دواړو سترګو يمه روند کهٔ مې رهبر شوې تهٔ
پهٔ سمه لاره شمه سم رسول الله عربي

کهٔ دې پهٔ سپو د دَرحساب کړمه خوشحال بهٔ شمه
نشته پهٔ دې کښې زيات وکم رسول الله عربي

ستا پهٔ سبب کړله پاک رب خپله خدائي ظاهره
چرته بهٔ وُ بابا آدم رسول الله عربي

رحيم کريم ورته پهٔ سر تاج د لولاک ايښے دے
هم يې آخر هم مقدم رسول الله عربي

زهٔ شاد محمد دې سپے غلام يم دلاسه راکړه تهٔ
څې مې د دواړو سترګو نم رسول الله عربي

پهٔ صفحه ۱۰۵ باندې درسول دخدای پهٔ صفت کښې يو غزل ليکي وائي

اے د دوؤ کونو سروره راشه راشه
د تمام جهان رهبره راشه راشه
چې تمام عالم دي لاد پهٔ دنیا موي
د ظلمات پهٔ حق کتبي نمره راشه راشه
رب رحیم دي پهٔ سر تاج د لولاک ایښے
د همه خوبانو غوره راشه راشه
چې له تاته بېدلان دي پهٔ غم دوب دي
د عاصي امت جګره راشه راشه
اول خدائے عاشق پهٔ تا پسې جهان دے
د جمله جهان افسره راشه راشه
دلبران دي خادمان حلقه بګوش دي
دلبرانو نه دلبره راشه راشه
چې آدم ابوالبشر د کل عالم دے
د عالم خېر البشره راشه راشه
ټول خوبان د پاک الله د در نیازبین دي
اے د ټولو نیاز پروره راشه راشه
چې خوبان دي د کرمه امېدوار دي
د خوبانو سرد فتره راشه راشه
د شېطان د نفس د شره نهٔ خلاصېږم
ماکره خلاص د دوئ د شره راشه راشه
پهٔ نظر د فیض اثر بهٔ دې سرهٔ زرشي
کره مې لاندې د نظره راشه راشه

شاد محمد دې خاص غلام د دروازې دے
لا ړ به نهٔ شي ستا د دره راشه راشه

په صفحه ۱۰۹ باندې د سید الابرار پهٔ حقله یو نعتیه غزل لیکي وائي

اے زما د زړهٔ تسکینه راشه راشه
خبر زر کړه له مسکینه راشه راشه
چې همه خوبان دې لاندې د قدم دي
د همه و بهترینه راشه راشه
چې رحیم کریم قدیم دِ نازبردار دے
د الله د در نیاز بینه راشه راشه
ستا نوري صورت چې شوے آخرین دے
پهٔ معنیٰ کښې اوّلینه راشه راشه
پهٔ نظر دې سنګین زړونه صیقل کړې
صیقل ګر د زړهٔ زنګینه راشه راشه
کل ملک او جن وانس دې قدم بوس دي
د ستا د پهٔ نور رنګینه راشه راشه
چې دې سوال اول درب نه دامت وو
دامت پهٔ غم غمګینه راشه راشه
شاد محمد دې سپے غلام ستا د کوڅې دے
د ډېر ویرېږي دَ لعینه راشه راشه

پهٔ ۱۲۱ صفحه یو نعتیه غزل لیکي - وائي

اے چې دوست محبوب بلے ئې اکبر
هم ئې تاج کړے د لولاک درته پسر

شهنشاه يې کړي د کل وارو نبيا نو
د مرسلو هم رب ته کړلې افسر
ستا د محمد يې هم پيدا کړه دنيا واړه
ګُنده يې نهٔ به وو آدم ابوالبشر
ته مُبدا کړي رب د واړو پيدا ښو
کهٔ دي عرش کرسي زمين جنت سقر
ملائک پيريان او هم کل حيوانات هم
نباتات او جمادات او غر شجر
هم ولدان غلمان او حوري هم حوران
او هم ستوري باران ابر شمس قمر
نام نشان د هيڅ اشياء نهٔ وو بې ريه
بې ستا نور که خدائ د خپل نوره مظهر
بې د خدايه هيڅ اشيا نهٔ وو ظهور کښې
هيڅ جاندار نهٔ وو بې پره نه د پر
نور يې ستا د خپله نوره مرتب کړ
نور يې ستا د نوره جوړ کړه سراسر
نور اول وجود آخر دِ پهٔ ظهور شهٔ
هم اول يې هم آخر يې پيغمبر
رب د واړو پيدا ښو مبدا تهٔ کړي
ستا د محمد يې کړ پيدا جهان اکثر
هم يې ستا امت بالا پهٔ کل امت کړ
ستا د محمد يې ستا امت کړ بزرګتر

**شاد محمد** غم د ځه دآخرت دے

چې لري پېشوا حضرت نبي سرور[۲]

په ۱۲۵ صفحه د محبوب کبریا صلی الله علیه وسلم یو نعتیه غزل لیکي ـ وائي :ـ

اے محبوبه د الله رحیم سبحان

اے چې رب کړې سته رسول آخرزمان

نبوت ئې په تا ختم کړ رسوله

دین ئې ستا کړ لکه نمر هسې روښان

چې الله په د رسالت باندې مبعوث کړې

د هوسه لاس په سر شو کافران

چې نوري وجود پېدا دې شو دنیا کښې

شول عدم بروج د شاه نوشېروان

اور او به شو آتش دان کښې د کافرو

د او بو نه ورته جوړ شو اور نیران

حق په حق شو باطل کل واړه باطل شو

ملائکو زیرے وکړ د آسمان

که الله دا وسته نه وے په ظهور کښې

نه آسمان نه به آدم وُ نه جهان

ستا د رویه ئې پېدا کړه دنیا واړه

گوند ئې بوئي به چرته نه وه دا شان

هم خدائي کړه الله ستا په مخ ظهور

هم ئې ځکه خپل محبوب کړې د ځان

دالله او ستا یوه لاره ده صادقه

ستا د خدائے د لارې غیر دي مشرکان

امت ستا به ستا د رویه په جنت وي

کا فران به دي دوزخ کښې په زندان

رسالت که پښتو ي ستانه پښتو ي

نه به نور د نمر په گوته شي پټ ان

د حسب او د نسب د عداوته

نصارئ یهود دي ستانه روگردان

د رسالت نه دې خبر بنده برابر دي

د شمنۍ نه دي په بده دي روان

صافه لا رده د انصاف چي خلق وخاره

براسر چي خپله رهبر کړي ځوک قرآن

هم د شرکه هم د کبره توبه گار یم

گنهگار یمه بسیار د خپه رحمان

شاد محمد کا چي پیشوا دي محمد دے

په امت دے د احمد رب مهربان

په ۱۳۳ صفحه ئې یو بل نعتیه غزل یکلے دے وائي -

ستا د رویه خدائے خدائي کړله ظاهره

چي آدم ئې کړ پیدا هم ستا د پاره

په معنئ کښې سر د کل پیدائش ته ئې

په ظاهر پسر باطن د آدم پلاره

د کل وارو مرسلانو شهنشاه یې

د الوئي دې ده موند لي د ستاره!

چي بیلے دوست حبیب محبوب احد ئې

په میم فرق د احد احمد نامداره

زیان او سود د وارو یو دے یو ترېله
دوست دشمن هم ددوئ یو دے یوئ شماره
امر نهي لار د دین اسلام ددوئ ده
بې اسلامه ده غلطه بله لاره!
چې قائم وي څوک په لاره ستا د شرعې
وي به امان کښې د دوزخ د سخته ناره
هر چې ستا متابعت نه کړي کافر دے
سرنګون به وي دوزخ کښې ناقراره
قرب دے مونده "قاب قوسین او ادنی" رب نه
د عربو د عجمو شهر یاره ....
ستا امت د کل امت نه بهترین دے
مسخ فسخ نه شو خلاص د ګودګاره
امت ستا به وي خوشحاله په قیامت کښې
ستا د رویه عربي نبي دو ئید اره
**شاد محمد** خادم د شرعې ستا غلام دے
د غیر شرعو نه کنار دے هم چې زاره

په ۱۳۷ صفحه یو بل نعتیه غزل لیکي وائي۔

سر هم ختم الانبیاء زمونږ سرور دے
چې بلے دوست حبیب محبوب اکبر دے
بخت بلند به وي هغه چې ستا امت وي
غیر امت ستا د امت نه پس کافر دے
چې مبعوث په رسالت زمونږ رسول شه
دین دده شه دے خاتم پیغمبر دے

او هر چا چې قبول کړے دده دین وي
کهٔ صادق وي ترې نه د فـع هر ضرر دے
کهٔ څوک غیر دروغي د شر عې نه په بله
په ظاهر کافر باطن ترې رب خبر د ے
لار د خدا ے او د رسول سره یوه ده
غیر دوانو له سعیر جحیم سقر د ے
څوک چې ستا پهٔ رسالت وي بې یقینه
دا ایمان ئې بې شبې خوف و خطر دے
هر چې ستا پهٔ رسالت ئې یقین نهٔ وي
د هغه نه هم پهٔ تک واره بنهٔ خر دے
نهٔ خلاصیږي بې له فضله د اَحَده
چې کبر کړے څوک شیطان پهٔ دام د شر دے
پهٔ تقدیر سره بنهٔ بد رسي د خدایه
د شیطان د بد نامۍ کا نبے پهٔ سر دے
**شاد محمّد** که غم د دین کوه نور پریږده
د رنګ ساعت دے هر بنده لره سفر دے

پهٔ ۱۴۶ صفحه ئې یو بل نعتیه غزل لیکلے دے۔ وائي۔

سر او ختم الانبیاء دے محمد دے
چې محبوب د کبریا دے محمد دے
د همه پیغمبرانو رسولانو
چې خالق ته دوست سوا دے محمد دے
تول همه پیغمبران د رب دوستان دي
د لولاک پهٔ تاج والا دے محمد دے

چې خالق د خپل مخلوق دے مبدا کړے
مبدا دوست چې د هرچا دے محمد دے
پاک الله دے په محبوب حبیب بللے
چې قریب بې انتها دے محمد دے
حال د قرب ئې رب قرآن کښې دے ویلے
"قَابَ قَوْسَيْنِ اَوْ اَدْنٰی" دے محمد دے
تر قیامته به دو شانه دده دین وي
د ګمراهو د رهنما دے محمد دے
مَنځ عفوه ستا د مخه کړه رب تا ته
چې الله ته سر بالا دے محمد دے
هر نبي د خپل امت په حق خیرخواه وي
د امت خیر خواه اولیٰ دے محمد دے
چې نبیان ئې وو امت ته په پسخاک کښې
دا رسول مقبول و خدا دے محمد دے
**شاد محمده د تیرَ ي خطر دي نشتة**
چې ظلمات لره رنها دے محمد دے

په صفحه ۱۵۶ ئې یو بل نعتیه غزل دا رنګې لیکلے دے.

چې خاتم پیغمبر دے محمد دے
چې د وارو نه بهتر دے محمد دے
که راغلے دے آخر ته په ظهور کښې
چې د کل پیدائش سر دے محمد دے
چې آدم د کل عالم ابوالبشر دے
د عالم خیر البشر دے محمد دے

چې خطاب يې دوست حبيب محبوب موند لے
د الله رحيم اکبر دے محمد دے

چې غادت په اشارت يې ترې جمال کړ
شق چې موندے ترې قمر دے محمد دے

چې شافع به د امت په اخرت وي
د زمونږ ه پاک سرور دے محمد دے

د کافرو خاک په سر دے تل ترتله
د مؤمن مخکښې راهبر دے محمد دے

مريضان د عاصيت به شفاياب شي
چې آرام د خونږ جګر دے محمد دے

**شاد محمده** هيڅ د غم د تيرې نشته
چې ظلمات په حق کښې نمر دے محمد دے

په ۱۷۰ صفحه کښې يو نعتيه غزل دا دے :-

د مکانه مې قدم په لا مکان بږدي
د زمونږ رسول سرور آخر زمان بږدي

هسې قرب يې د خاوند سره بيا موند
چې فکان قاب قوسين يې ځائے سبحان بږدي

او ادنیٰ په کښې صفت د ځائے غائب شه
قاب قوسين ځائے د قبضو د دوو کمان بږدي

سر بلند به وي هغه په آخرت کښې
چې ټوک شايه لارې سر و مال او ځان بږدي

ستا د لارې نه هغه دروې په بله
چې د ځانه لرې بل خواته ايمان بږدي

دموسیٰ ژبه کوتاه دارځي شوه
چې د "لن تراني" مهر پرې رحمٰن بهٔ دي
عرش عظیم يې د پېزار په ګرد لوټې کړي
چې په سر د عرش قدم په ډېر احسان بهٔ دي
صحت یاب يې شه د ګرده د پېزاره
کوز د ز مکې پاس قدم په هفت اسمان بهٔ دي
سوال قبول د میکائیل الله رحیم کړ
چې زین پوش په دوش د دوست چې د ب منان بهٔ دي
ملائیکو مقربو د خپل وسه
په حرمت کښې د سرور لیمهٔ چشمان بهٔ دي
او توریت انجیل زبور نازل د خدا ے وو
شو منسوخ د نسخ حکم پرې قرآن بهٔ دي
د هغه فرقان نازل په دوست الله کړ
فرض واجب چې کس ګردن پهٔ دا فرمان بهٔ دي
**شاد محمد** وائي هغه بهٔ ستا تابع وي
چې پهٔ ځان باندې څوک رسم د انسان بهٔ دي

پهٔ صفحه ۱۸۶ يې يو نعتیه غزل یکلے دے اشعار يې دا دي۔

دوست محبوب د پاک اکبر زموږ رسول دے
خاص مقبول د رب پهٔ در زموږ رسول دے
تمامي پیغمبران دوستان د خدا ے دي
پهٔ کل وارو کښې بهتر زموږ رسول دے
مشهور ابوالبشر بابا آدم دے
د جهان خیر البشر زموږ رسول دے

نازولي دالله تهول مرسلان دي
زيات د واړو ناز پرور زمونږ رسولؐ دے
هر نبي په امت خپل به ډير مشفق وو
مشفق تر زيات پدر زمونږ رسولؐ دے
هم اول هم په آخر باندې بالا شي
دا خاتم پيغمبر زمونږ رسول دے
ملا بسته يې په کمر بند د شفاعت وو
شافع کل په سخت محشر زمونږ رسول دے
لکه نمر هسې خور شوے په کل ملک کښې
نمايان په بحر و بر زمونږ رسول دے
دلبران پيغمبران په در در دي
دلبرانو نه دلبر زمونږ رسولؐ دے
تر قيامته به روښانه دده لار وي
صاف روښان لکه د نمر زمونږ رسولؐ دے
يوه پښه په زمکه بله په عرش پورته
هسې تيز لکه نظر زمونږ رسولؐ دے
**شاد محمد** سپے غلام د رسول ووسه
چې دادګر غريب پرور زمونږ رسولؐ دے

په ۱۹۸ صفحه يو نعتيه غزل داسې ليکي :

چې بلے يې په دوست نامه جليل
تل دے وو مصاحبه کښې جبرئيل
ستا د خدائے سره يو حکم دے بل نۀ دے
ستا د حکم به کافر نۀ کړي تعميل

هر چې ستا لمن کړي ټينګه پرې ئې نهٔ بدي
هاله نوش به کاندې اب و سلسبيل
لار د خدای او د رسول دد هٔ يوه ده
کهٔ شک کاندې څوک دے ځان باندې بخيل
هر ملک دې شاهتره ته اميد وار وُه
فخر ياب دِ پهٔ زين پوش شه ميکائيل
هزار کاله ئې دا سوال وو له بنه خدايه
مشرف پهٔ دا خدمت شهٔ پهٔ تعجيل
چې نازل قرآن شريف الله پهٔ ستا کړ
نو منسوخ ئې کړ تورات زبورا نجيل
شفقت مهربانئ ته چې ستا خيال کړي
کهٔ پهٔ نفس خپل وي ظالم نو شي اميل
سفيد دويه دي چې ستا پهٔ لار وي تللي
د غېر ستلونکو بهٔ مخ تور وي لکه نيل!
ستا معراج کښې ملک کل د خدمت خلاص شو
شپېله لرې کړه د لبو اسرافيل
د جاندارو د ارواح د قبضو لو
لاس پهٔ سرته پهٔ دا شپه کښې عزرائيل
کل نبيان دې مقتديان شوتهٔ امام شوې
کهٔ ادم عيسیٰ موسیٰ وو کهٔ خليل
نافرمانه بهٔ له تا نه څوک اوخروي
فرمان وړونکي بهٔ وي ستا له شمس شکيل

شاد محمد لره صد ق سم کړه خدائے عافي دے
کۀ گناه لرې صغير کبير قليل !!

پۀ صفحه ۱۴۲ يو نعتيه غزل دا دے .

اے بيلے يۀ پۀ دوست محبوب الله پاک اکبر
تۀ شهنشاه د کل نبيانو کړې پاک رب مقرر
ځوک بۀ دې څۀ حساب کوي ستا د لويه رسوله
بحرِ اعظم بۀ پۀ کاسه پيمانه نۀ کړي بشر
نور دې خالق د کل مخلوقه اول پيدا کړ
چې نۀ ملک وو نۀ فلک نۀ عرش کرسي برابر
د تمامې پيدائش تۀ کړې سبب رب رحيم
آخر الله کړلې پيدا تۀ خاتم پيغمبر
تاج د لولاک دې پۀ سر اېښے دے الله رحمان
يوه شپه پۀ ځمکه بله پاس د عرش عظيم دپاسه
سخۀ او فسخۀ رب کړه لرې ستا د محنه پا لکل
اُمت يۀ ستا د نور امت نه سر بالا کړي بهتر
ستا د دوستانو ځائے فردوس مأوىٰ جنت دے مقام
د دشمنانو ځائے دے سعير جحيم او سقر
دشمن دے ستا د خدائے دشمن دوۍ دوى د خدائے
هم امت بۀ تا ته وبخښي پۀ ورځ د محشر
ستا دشمنان بۀ کړي سربنکته کنه پورته پسته
اور د دوزخ کښې بۀ وي لاندې باندې زير و زبر

کهٔ پیدا کړے نهٔ وے تهٔ الله رحیم وقدیم
نهٔ به آسمان وو نهٔ جهان اونه بهٔ شمس وقمر

اے **شاد محمد** غلام او سه د رسول مقبول
صدق محکم کړه ملا ټینګه کړه پهٔ لاس د سرور

پهٔ صفحه ۲۵۹ د شاد محمد خان یو بل نعتیه غزل موجود دے - وائي

پهٔ محبوب نامه بلهٔ چي ستار دے
دا زمونږه محمد نبي دوئيدار دے
مونږ ددهٔ پهٔ رسالت ایمان داوړے
دے زمونږه دآخر امت سردار دے
هغه کس بهٔ پهٔ آخر کښي سربلند وي
چاچي ستا پهٔ رسالت کړے اقرار دے
هرچي نهٔ کوي تصدیق پهٔ رسالت ستا
هم هغوله سقر بجحیم تیار دے
خدائے واحد دے لاشریکه لامکانه
دا زما د زړهٔ پهٔ صدق پوخ ګفتار دے
محمد احمد محمود د خدائے حبیب دے
خاص استاذے د جانبه د جبار دے
دا حد او دا حمد لاره یوه ده
سود او زیان د دواړو یو دے یوئې کار دے
هم ئې دوست دشمن دے یو څهٔ جدا نهٔ دے
دوست د شمن د خدائے رسول سره یوشمار دے

پهٔ هغويُ د جنت بو ئي خدا ے حرام کړے
چاچي کړے د رسول د خدا ے انکار دے
د دوزخ نه هم هغه بهٔ پهٔ اَمان وي
چي څوک سم د شریعت تلے پهٔ لار دے
چي تصدیق پهٔ رسالت د رسول نهٔ کړي
خدا ے بیلے هم هغه کس پهٔ کفار دے
د حضرت د رسالت چي شک شبه کا
یقین اوکړه چي د هغو ا خر خوار دے

چي الله د ے عافي رسول شافع دے
څهٔ شو دا چي **شاد محمد** د بر گنهګار دے

پهٔ صفحه ۲۶۹ شاد محمد خان یو بل نعتیه غزل وئیلے دے۔
کلام ئې دا رنګ دے

یارحمة للعٰلمین یا دوستٌ دالله ستار
یا اول یا ا خرین ا ے یا حبیب کردګار
هم ستا قدر پهٔ نیز د رب زیات دے د کل ساري جهان
ئې تهٔ ورته زیاتي قرین دا ستا پهٔ شان نشهٔ نګار
ارض وسما بالکل تمام خالق ظهور کړل ستا پهٔ مخ
کړي خلق دا اسمان زمین دا ستا پهٔ رسالت قرار
لولاک ا خر ستا پهٔ سر کیښښود پاک الله رحیم
ئې شاه سلطان ته ګزین بالا پهٔ عزت باوقار

نبیان هم مرسل همه حق دي په بنه تحقیق سره
منسوخ دده وې شو لار و دین جاري کړه رب ستا دین ولار
خاص عرش د دپېزار دګرد محکمه که ستا فرخ قدم
دوغ صاف شه زړې هغه حین دورشه تړې نه بانګ دوار
سورشوه دجنت ته په اس په تلوکښې وو تر برقه تېز
مل تاسره روح الامین تله ستاجلب کښې راهوار
شافع به په اخرې ته سوال به د امت کړې د حق
نه کړې چې څوک پرې دا یقین جاهل دے هم ګمراه کفار
ې ته په امت خپل د حده ډېر مشفق هم مهربان
په دربار ې نازنین امت به کړې ازاد د نار

**ماشاد محمد** ستا ملن نیولې ده په لاسو کښې
وکړه نظر په ما خزین ډېر یم د عصیان توبه ګار

په ۲۸۳ صفحه هم یو نعتیه غزل موجود دے - اشعار ې
دا رنګ دي

استه بالا کړې په زمین او په اسمان باندې
لکه د نمر ې کړې ظاهر په کل جهان باندې
اول پیدا اخر ظاهر اول اخیر په ظهور
څکه معلوم ې په نبي اخرزمان باندې
هر چې دوان دي ستا په لارې سم دزړه په صدق
هغه تمام به مشرف وي په ایمان باندې
چې په قدم دې مشرفه کړه دنیا تمامه
پاس د اسمان دوره شوه بنده په شیطان باندې

چې څوک څي ستا دلاري عبر او غواړي خپر درب
جنت حرام دے دهغوخلقوپهٔ ځان باندې
درب رسول ده یوه لار په کښې دويمه نشته
کافر مطلق دے چې عمل نهٔ کړي قرآن باندې
تورات انجیل زبور فرقان درب د لورې نازل
شول منسوخ چې فرقان راغے پهٔ کوم آن باندې
چې پهٔ حضرت آخر زمان راغے فرقان دحقه
هغه بې دین دے چې د شک وي پهٔ گومان باندې
هغه مؤمن او مسلمان دے نشته شک او شبه
چې کلمه ستا هر څوک وائي پهٔ زبان باندې
یو لک څلیر پشت زره زیات وکم پیدا انبیاء
ستهٔ يې بالا د وارو نشته ستا پهٔ شان باندې

زهٔ شاد محمد کومه سوال د ذوالجلال پهٔ درگاه
چې پهٔ آخرکړي ما داخل ستا پهٔ نشان باندې

په ۲۹۸ صفحه شاد محمد خان یو بل نعتیه غزلو ټلے دے وائي:-

د پاک الله او ستا پهٔ اسم زړهٔ فرحت ومومي
نصیب د هغو دے چې دا اعلیٰ نعمت ومومي
چې څوک محروم ددې نعمته وي هغه واړه کل
لکه شیطان به پهٔ سرغټ پند د لعنت ومومي
چې ستا پهٔ لار وي سم روان د زړهٔ پهٔ صدق باندې
هم هغه خلق دالله نه بهٔ رحمت ومومي

چې خدای واحد او محمد د خدای رسول ګڼي څوک
ډېر یقین چې به هغه خلق جنت و مومي
که څوک د حقې لارې څنګ کړي چې په لار د شیطان
هغه کسان به په محشر کښې ملامت و مومي
چې د مکرونو د شیطان نه چا ساتلې وي ځان
د پاک سرور نه د کوثر به ضیافت ومومي
نشته د هغو نه په بخت بلند با لا په نصیب
چې د شیطان اهل لعنت نه چې نفرت و مومي
چا چې د لارې د رسول مخالفت کړے وي
هغه جحیم سقر سعیر به په قیامت ومومي
هغه مؤمن او مسلمان دے په کښې نشته دے شک
چې د الله په هدایت چې شریعت ومومي
نعوذ بالله منها د لار د کفره د شرک
همه کافر به په محشر کښې زیات زحمت ومومي
په کافرانو دے حرام د جنت بوئ قدرله
درب په حکم به دوزخ هغه ساعت ومومي

که **شاد محمد** دې شه حساب په غلامانو باندې
څه به نور وائي چې دا هسې شرافت ومومي

په ۳۰۷ صفحه د کتاب د ختمېدو په حقله لیکي :-

شاد محمده ثنا ډېره د اکبر کړه
درود ډېر په محمد خیر البشر کړه

چي په خېر سره تمام شو دا کتاب
په درګاه دې شي قبول د پاک وهاب

د کتاب د خاتمې په حقله وړاندې لیکي -

شکر دېر کړم دالله رحیم د جهان
چي کتاب مي د معراج آخر زمانے
نن تمام کړ په خپل وسع سره سم
هر چي وو زما فقیر خپل فکر کم
مګر عرض کړم دا په در د رب ستار
چي يې قبول کړي په حرمت د خپل رویدار
زما مراد دے چي هر څوک تري واخلي نفع
زنګ په زړونو چي لري هغه شي دفع
که رضا شي پرې د پاک الله قدیم
په شمه به يې شي دېر خلق شمیم
افغانان به تري نه نفع کړي حاصله
بهره مند به شي تري دېر بچي د جاهله
حال دے دا چي الله ؤکړي هدایت
کافر زر کړي مسلمان هغه ساعت
چي پرده د مخي لرې کړي د شپې
د دنیا بحر زر وو هي چپے
تیاره دا ولې په مخ د دنیا پاندې
مار لرم عمل کا سیر خپله کاري په کښې کاندې

شب داج ظلمت دنیا کاندې په قمر
سیاه ابر په نمر څور کړي پاک اکبر
په لحظه کښې زمانه کاندي بدله
شاه ګدا کړي ګدا شاه کړي په یوځله
د بنهو په ذړه ول کښې نوبت نور شي
که څوک سپین کښې خپل ځان هغه مخ تور شي
نابینا په لارې سم کړي خاطر خواه
روغ په دواړو سترګو پرېباسي په چاه
د قادر دې قدرتونه د حد دبر
د حساب د اندازې د حده تېر

شاه محمد دے ګنهګار عاصي بې حده
ته يې اوبخښې په مخ د دوست احمد
ما حساب کړې په امت د خپل حبیب
ته شافع کړې خپل رسول زما غریب

او په آخر کښې هم په د غه صفحه آخري نعتیه غزل پېش کوي ـ وائي ـ

اے خاتم الانبیاء شاه عربي عجمي
ټول مقتدیان وو ستا کوله تا دوي امامي
تاج د لولاک چې دې په سر کښېښود اکبر سوله
څکه پیدا کړ جن و انس امله جهات تمامي

چې په بللو مشرف کړې رب رحیم د معراج
فضل په تا وو د هرچانه د الله گرامي
چې څوک شي سم د زړهٔ په صدق په یقین ستا په لار
هغه به یوسي د فاني نه ابدي نیک نامي
لکه ظلمات د شب چې و تښتي د نمرد مخې
هسې رو خان به وي دین ستا په تا علی الدوامي
تیاره د کفر په دنیا د اسلام شوه بدله
ته په پیدا کړے يې الله په دې دنیا عظامي
هرچې څوک ستا په رسالت نهٔ کړي یقین د صدقه
هغه کافر دے برابر او بد پدر حرامي

زهٔ شاد محمد بنده د خدائے امتي ستا یم صاف
ستا د غلام مې ده قبوله هم په سر غلامي

---

د شاد محمد خان ددې نعتیه غزلونه دا نتیجه را اوځي چې :-

۱- دے د خدائے دوحدانیت ډیر سخت قائل وو۔

۲- د خدائے او د رسول لاره یوه ده ښکاره خبره ده ۔ قرآن پاک چې د خدائے کتاب دے د رسول الله صلی الله علیه وآله وسلم په واسطه مونږ ته رارسیدلے دے او د خدائے د کتاب عملي تفسیر د رسول د خدائے عملي ژوند یعني سیرت دے ۔

۳- دے ددې خبرې ډیر سخت قائل دے چې د قیامت په ورځ به رسول د خدائے د خپل گنهگار امت شفاعت کوي دا خبره ده په خپلو ډیرو اشعارو کښې کړې ده ۔

٥- دے ددې خبرې هم ډېر سخت قائـل دے چې خدا ئے پاک توبه قبلوُنکے دے نو ځکه دے په خپلو اشعارو کښې اکثر د خدائے پاک د تواب نوم ډېر زیات استعمالوي -

٦- دے د پنځ بنا هم ډېر سخت قائل دے - په نمانځه روژه روزه او زکوٰة نو بې انتها زور ورکوي -

٧- دے ددې خبرې هم ډېر په سختئه سره قائل دے چې علم بې د عمله هېڅ شے نهٔ دے په خپل دیوان کښې ده ددې مثال داسې ورکړے دے چې بې عمله عالم داسې دے لکه ډیوه - د یوه نو نوروته رڼا ورکوي نو په خپله په تیارهٔ کښې ژوند کوي -

د معراج نامې اشعارو ته چې سړے اوګوري نو دا خبره ډېره په ښهٔ ډول رابرخېره شي چې ددهٔ اشعار د بحر متوسط د اصول لاندې لیکلي شوي دي صرف دوه یا درې ځایونه داسې دي چې هغه د بحر الطویل د اصول لاندې لیکلي شوي دي - عام اشعار ئې روان دي او چې سړے ئې وائي نو ډېر خوند ورکوي - دا جدا خبره ده چې په ځنې ځایونو کښې ترې اشعار ورانديې وروستو شوي دي - خو دا څهٔ د عیب خبره نهٔ ده -

په معراج نامه کښې درې نعتیه غزلې داسې دي چې هغه د دهٔ په دیوان کښې چاپ شوي دي - دا جدا خبره ده چې د ځنې ټکو په املا کښې په دوارو کښې فرق شته - ځنې بېتونه داسې هم دي چې په دوارو کښې یو شان نهٔ دي ولې مفهوم د دوارو یو دے

د معراج نامې د اشعارو نه دا هم پته لګي چې شاد محمد خان ډېر عالم فاضل سړے وو یوخو فارسي ډېره ښهٔ ورتله او بیا د عربئ نه هم ډېر ښهٔ خبر وو په خپلو نعتیه غزلو کښې ئې د عنوان

پهٔ دوٖل یو تکي استعمال کړے دے چې دا ما سِل ځائے نهٔ دے لیدلے نورخلق ددې پهٔ ځائے مدحت ئيکي ولې دهٔ دا تکي مُحمّدَاتْ ئیکلے دے۔ پهٔ ښکاره خودا پهٔ غوږونو ډېر دروند لګي او پهٔ اوّل نظرکښې خو ما ددې تصحيح اوکړه او مدحت موکړه خو بیا مو اووې چې داشه دا تکي د عربۍ پهٔ لغت کښې اوګوره او چې اومې کتو نو موجود وو او دستائنې او صفت پهٔ معنو کښې دا غلے وو۔ نورو ډېرو ځایونوکښې ئې هم دعربۍ ځنې ټکي داسې استعمال کړي دي۔ چې هغه ما پهٔ اوّل وار اولیدل۔

د شاه محمد خان یو صفت داسې دے چې هغه دے د نورو شاعرانو نه پهٔ فرق کوي هغه دا چې غزل نورشاعران د خپل مجازي محبوب د زلفو، رخسار، خال و سترګو سرو شونډو و غیره ستائنې ته وائي۔ ددې نه علاوه غزل دځنهٔ بل څهٔ د پاره نهٔ استعمالوي ولې شاه محمد خان پهٔ خپله معراج نامه کښې تقریباً ۲۷ ځائے درسول د خدا ے پهٔ صفت کښې چې کوم نعتونه ئیکلي دي مخې ته ئې نعتیه غزلې وئیلې دي او دهٔ د معراج نامې او دیوان نه دا خبره ډېره ښکاره معلومیږي چې کهٔ دے یو اړخ ته پهٔ خپله مجازي محبوبا پسې لتهاګئن وو نو بل اړخ ته درسول صلی الله علیه وآله وسلم مینه دهٔ د ډونډ معراج وو۔ د معراج نامې د هر هر شعر او نیم بیتي نه دا معلومیږي چې دهٔ درسول د خدا ے صلی الله علیه وآله وسلم سره بې کچه مینه لرله او ډېر پهٔ رښتیا عاشق وو۔

د شاه محمد خان بل صفت دا وو چې سره ددې چې دے د مردان یو لوے خان وو او ډېر جائیداد خاوند وو ولې ډېر متواضع خاکساره او منکسرالمزاج وو۔ داسې نهٔ ښکاري لکه چې یو د ټیس اعظم لګیا دے

شاعري کوي بېکې داسې ښکاري لکه يو ملنګ او فقير د علم او ادب په تخت ناست بادشاهي کوي - زمونږ د پاره دده په شاعرۍ کښې يو ډېر اهم درس موجود دے او هغه دا چې اخلاص او سوچه مينه که مجازي وي او که حقيقي د انسان د انسانيت معراج وي -

و آخر دعوٰنا ان الحمد لله رب العٰلمين

ډاکټر سعيد الله قاضي
ډائرېکټر شيخ زيد بن سلطان النهيان
سنټر

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# معراج دُرّة تاجُ الانبياء والمرسلين ع[1]

اول حمد ثنا کرم زهٔ د قدسي ذات
چي پهٔ لاس لري حيات او هم ممات

ورکوونکے د عزت او د ذلت دے
خود مختاره خود مختار پهٔ آخرت دے

دے خالق دهر اشيا دے پاک اکبر دے
هم رازق دهر جاندار د زنده سر دے

بې مانده بې مکانه بے مثال دے
تل ترتله برقراره پهٔ يو حال دے

پيدا کړے عرش عظيم لوح قلم دے
دهر چا نصيب پهٔ لوح باندې رقم دے

دوزخونه زحمتونه راحتونه
اسمان زمکه جنتونه نعمتونه

کاني بوټي ونې غرونه دريابونه
شمس قمر ستوري زمين ميوې خوابونه

ملائک حورې پيريان ديوان آدم
نفس شيطان کبر هوا خوشحالي غم

علم حلم صحيفې څلور کتابه
دا همه دي د جانبه د ترابه

کهٔ ظاهر دي کهٔ باطن دي پهٔ دُنيا
کهٔ ناطق دي که بې نطقه دي گويا

دا همه دي پيدا ئش د پاک ستار
شريک نهٔ لري واحد دے هم غفّار

شاد محمد کهٔ پرې ستړے کړي خپل ځان

يو صفت به پوره نهٔ کړي د رحمان

درياب ونه به پهٔ څکو نشي تمام
څه کهٔ ډک کړي ځوک د خپلې پوهې جام

## در محمدتِ احمد مجتبیٰ محمد مصطفیٰ صلی اللہ علیہ وآلہ وسلم ع[2]

پس له حمده د ثنا دايم درود
په احمدؐ پهٔ محمدؐ او پهٔ محمودؐ

د لوکه به ئې زهٔ څهٔ کوم بيان
چې محبوب ورته وئيلي دي سبحان

دے مبداء د پیدا ښت د کل عالم دے — پهٔ ظاهر پس باطن پلار د آدم دے
کل جهان الله پیدا د دهٔ د نور کړ — د عدم نه ئې پهٔ سبب د دهٔ ظهور کړ
د لولاک تاج ئې پهٔ سر ایښے دے رب — شهنشاه د مرسلانو شهٔ عجب
عرش کرسي لوح وقلم او اسمان زمکه — پهٔ سبب د دهٔ ئې کړه هر څهٔ پیدا ځکه
او میم فرق دے د احمد او د احد — د خالق او د بنده دے دغه حد
د اهمه واړه کرم پرې د رحمان دے — چې خاتم الانبیاء آخر زمان دے
نبوت کړهٔ پاک الله پهٔ دهٔ تمام — د درګاه نه ئې پرې را ولیږهٔ کلام

شاد محمده تهٔ ئې پسے اوسه د در
چې ځان نهٔ کړې یو ذره ترې لرو بر

نشته شک پهٔ رسالت کښې د رسول — چې څوک شک کړي هم کافر دے هم جهول

## صفت د چهار یار کبارو او د جمیع اصحابو د حضرت

اول یار د چهار یارو نه صدیقؓ وو — چې پهٔ غار کښې د حضرت سره رفیق وو
د لوی به د دهٔ څهٔ کوم حساب — پهٔ کاسه به پیمانه تهٔ شي دریاب
مرتبه کښې وو د هر چا نه بلند — لکه نمر دے پهٔ تمام جهان څرګند
دویم د چهار یارو نه عمرؓ دے — چې پهٔ عدل مشهور لکه د نمر دے
پهٔ راتلو د دهٔ شهٔ دین تمام روښان — پهٔ ظاهر بلند اواز شهٔ نمونځ اذان
پهٔ کافرو د دهٔ نهٔ وو رحم ترس — شجاعت کښې وو پهٔ واړو خلقو ترس
دریم یار د چهار یارو نه عثمانؓ دے — جمع کړے پهٔ مضمون سره قرآن دے
سخاوت کښې پرې هیڅوک نهٔ وو د پاسه — هم حیا ئې وه د هر چا نه بې قیاسه
سر تر پایه د حیا نه وو ډک — د ذرې نشته پهٔ دې کښې شبهه شک
څلورم یار د یارانو نه حیدرؓ دے — هر کافر ترې ځائے ترځایه پهٔ خطر دے
چې بهر به ئې د کاټه کړ ذوالفقار — پهٔ غارونو کښې ترې پټ به شو کفار

هم يُ علم د هر چا نه لرهٔ ډېر — مُلقّب وو پهٔ لقب باندې د شېر

پس له دوئ نه باقي نور اصحابان — او بيل بيل د مرتبې وو صاحبان

چې ليدلے د رسول دے چا جمال — هغه کس اصحابي دے پهٔ هر حال

اصحاب وي چا ليدلي پهٔ يقين — او هغوته شي ويلي تابعين

تابعين وي چا ليدلي پهٔ نظر — هغه تبع تابعين دي مقرر

شاد محمد دے دجمله و خدمت، کار

چې ځان سپے ګڼي دخپل ذي روئيدار

چې پهٔ شرع مستقيم وي د سرور — د هغو هم ځان ګڼم خاص نوکر

## سبب د تصنيف د کتاب مستطاب معراج نامه

د تصنيف د دې کتاب دے دا سبب — چې ما وليد يو کتاب بسيار عجب

د هغه نوم معارج النبوت وو — د معراج پکښې بيان صاف د حضرت

زړهٔ مې وشو چې پښتو کړمه معراج — چې دخپلې پوهې وکړمه خراج

پښتانهٔ چې د احواله شي خبر — چې کل حال ورته معلوم شي د سرور

چې څهٔ فضل پرې الله کړے عظيم دے — د لوئ پکښې بيان د دوست کريم دے

ډېرو کړي د معراج دي کتابونه — د شمارې به يُ څوک وکړي حسابونه

ما ليدلي کتابونه دي کم کم — هسې حال پکښې صاف نشته دے سم سم

معارج النبوت کښې پوره حال دے — چې تصنيف د هندوستان بدر مثال دے

چې خواجه دے د اجمير وکړه يقين — چې تصنيف دے د ملا معين الدين

چې پهٔ کل جهان ښکاره لکه د نمر دے — هم اولاد زمونږ د پاک نبي سرور دے

زړهٔ مې وشهٔ چې پښتو کړم دا معراج — چې تمام احوال له دهٔ نه کړم اخراج

همه خلقو ته چې حال تمام ښکاره شي — د معراج چې قيل و قال تمام ښکاره شي

هم يو څوک سه باعث شو پهٔ دا باب — چې پښتو کړه کل معراج د دې کتاب

زما ذرهٔ کښې لا اول وو هسې خیال　　　چې پښتو کړم دا تمام د معراج حال

شاد محمدهٔ پکښې وکړه کوشش د پر

چې یو ځائے پکښې له تانه نشي هېر

خیال کوه پکښې ونکړې زیات وکم　　　چې څهٔ پېښ نشي هوس په ځائے کښې غم



# باب دے اول پۀ ذکر د معراج او پۀ دۀ کښې څلیرشت

## فصله دي فصل اول پۀ حکمت بیولو د محمّد صلی الله علیه وسلم معراج ته

مصنف ددې کتاب علیه الرحمت — واټي حسې چې معراج د پاک حضرت
د روحانو معجزاتو ته ضرور — مجمل طورۀ کړے دېر و دے مذکور
نورو وارو کتابونو کښې اول — بیان کړے دے پۀ طور د مجمل
د معراج کل حقیقت ددې فقیر — صاف بیان ته حرص زیات وه پۀ ضمیر
چې معراج کښې پاک رسول څۀ عجایب — وو لیدلي د هر شانته غرایب
یا چې شوي وو له دۀ ته اشارات — هم خبرونه هم وارۀ علامات
او دا وارۀ زۀ د صاف بیان پۀ طمع — همه زۀ دي رساله کښې کړمه جمع
او چې څۀ محدثانو روایات — او بیا هم مفسرانو کمو زیات
مناسب چې د معراج وو څۀ پۀ باب — هغه وارۀ شوله درج پۀ دي کتاب
نو د وارو کتابونو د سیَرۡ — دي ممتاز پۀ دا سبب شه برابر
مگر ما پۀ دي مقام کښې شل حکمته — راوړل دا اول حکمت دے بېش قیمته
چې پۀ بعضو روایاتو کښې دا شان — دي راغلي چې رسُولؐ آخر زمان
چې حضرت خیر البشر دوست د پاک ذات — د نزول نه به ئې اول ددې ایات

وَمِنَ الَّيۡلِ فَتَهَجَّدۡ بِهٖ نَافِلَةً لَّكَ عَسٰىٓ اَنۡ يَّبۡعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحۡمُوۡدًا ۝

یعنې اے دوسته زما شپه کښې له وارۀ — د قرات نه د قرآن تَهَجُّدۡ کـڼه اوره

چې دا مونځ شه ستا د پاره نفل تام | زر به کښېنوي تا رب په دې مقام

تا به کښېنوي رب ستا پورته په زود | په هغې مقام چې نوم يې دے محمود

او مقام محمود د نور دے د عرش لاندې | چې خپل دوست رسول به کښېنوي پرې باندې

او کوي به شفاعت د خپل امت | اولين آخرين خلق به سلامت

مشرف به شي دده په ښه ديدار | ستائيش دده کوي به ډېر بسيار

بعضې شپه کښې گذاره مونځ باصواب | بعضې شپه کښې به اوده وو دے په خواب

مگر سترگې به يې په خوب دې زړه بېدار دو | دا مونځ کړے وو يوشپه اوده قرار دو

چې ناگاه د جبرائيل د پر آواز | د اووم آسمان نه يې شه په غوږ وساز

چې آواز يې په غوږونو شه د پر | زړه د خوب نه دا بېدار شه پاک سرور

په خپل ځاے مبارک کښېناسته في الحال | جبرائيل ورسېده په هغه حال

دا يې ووې اے درب دوسته رسوله | په درگاه درب رحيم کريم قبوله

حق تعالیٰ په تا وستلے دے سلام | بيا يې حکم هسې کړے دے تمام

چې اے دوسته زما، ته مې دې د پاره | پيدا کړے يې چې مانه بې شماره

چې بخشش عذر زما د بنده گانو | مانه غواړې د جمله گنهگارانو

او دا کار نه کېږي خوب باندې شه پوره | ووځه لاړ شه د مکې بيابان لور ته

او احوال اعمال وگوره د امت | چې ته پوه شې اوهم داخلې ترې عبرت

چې ستا وخت د بېدارۍ دے يا د خواب | جبرائيل رسول روان کړ په شتاب

لاس يې ونيو د نبي آخر زمان | بيابان ته د مکې يې کړ روان

چې يې راوست قبول امت يې پاک ستار | په خپل حکم يې کړ کل ورته اظهار

د بيل بيل يې ورته عرض کړل اعمال | پاک سرور ته شه معلوم تمام احوال

گناهونه شول شول ددوي ورته شکاره | زيات د حد د اندازې نه بېشماره

جبرائيل ووې چې اے دوسته درب | که لرې د نېک مقام چرې مطلب

پهٔ نمونځونو په کم خوړ دپهٔ رياضت — تېره وه پهٔ بېدارۍ شپه پهٔ محنت

پهٔ امداد د رياضت د کم خوراک — پهٔ درجو د شفاعت به د رب پاک

درجات د شفاعت بهٔ درکړي زيات — دا ايات ئې وو راوړے د پاک ذات

وَمِنَ الَّيْلِ فَتَهَجَّدْ بِهٖ نَافِلَةً لَّكَ عَسٰى اَنْ يَّبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَّحْمُوْدًا ۱۲

تو سرورِ خيرالبشر پهٔ زړهٔ پرهر — کورته راغے کشاده سينه سرور

پهٔ ليدهٔ د ګناهونو د اُمت — د عتاب شراب وو څښلي پاک حضرت

داسې ووې اے الله غني رحمانه — اوس د کومې ګناه عيب عذر له تانه

چې زهٔ وغواړم له تانه دا ساعت — د کوم کوم ګناه ئې وکړم شفاعت

د الله نه ورته دا اوشهٔ خطاب — ګناهونه د اُمت پهٔ بېدار خواب

بېدارۍ پانديې موقوف دے ستا دشپې — کهٔ درېم حصه امت دِ وي مطلب

دريې حصې اُمت بخشش غواړې تيار — اوسه تهٔ درېمه برخه شپه بېدار

بندګي کوه اوتهٔ که نيم اُمت — غواړې نيمه شپه زما کوه خدمت

کهٔ بخشش د نيم اُمت غواړې عيان — تېر وه پهٔ خدمت نيمه شپه پهٔ ځان

کهٔ بخښنه د اُمت غواړې ثُلثان — پهٔ خدمت مې ثلثان ۱۳ شپه لره ګذران

کهٔ د ټول امت بخشش دِ وي مطلب — ملا بسته مې پهٔ خدمت لره ټول شب

هغه دم پرې د جانبه د پاک ذات — له درګاه پرې نازل شهٔ دا ايات

يٰۤاَيُّهَا الْمُزَّمِّلُ قُمِ الَّيْلَ اِلَّا قَلِيْلًا نِّصْفَهٗۤ اَوِ انْقُصْ مِنْهُ قَلِيْلًا اَوْ زِدْ عَلَيْهِ وَرَتِّلِ الْقُرْاٰنَ تَرْتِيْلًا ۱٦

اے د بار بردارنده د نبوت — پورته کېږه شب بېدار اوسه پهٔ نيت

مګر کم د نيمې شپې ټول شب قيام — پهٔ تا فرض وو اول حال د اسلام

چې اول حال د اسلام کښې چې ټول شب — پهٔ تا فرض وو قيام د غني رب

کوه نموځ په ثلث یا نیمه شپه کښې پاسه | یا ثلثان یا زیات په نیم کړه بې قیاسه
مرتبه اعلیٰ ده وکړه اعتبار | دا درې وقته کښې دے تالره اختیار
او هم لوله په ترتیل سره قرآن | د ترتیل معنیٰ ده هسې په داشان
د وقوفو ادا حفظ د حرفونو | په مخرج ځپل کښې سره د صفتونو
نو سرور خیر البشر د وست د تراب | وې چې ګران دے ثلث د نیم ثلثان حساب
نو بالکل ئې واخست فرش دخوب تیار | توله شپه به بیا رسول وو بښه بیدار
ملا ئې وتړله کلکه د همت | په زاری په نموځ مشغول شه پاک حضرت
په خدمت د پاک الله بسته کمر شه | په زاری په نموځ مشغول شه پاک حضرت
د ورځې به کاوه دوئ ځپل آرام | نه د شپې نه په سبا خیر الانام
توله شپه ترسبا پورې به حضرت | تیره وله به ئې په دوه دکعاته نیت
او په دوه رکعته نموځ به ئې کړ شپه تیره | توله ورځ د امت غم وو ترې چاپیره
د امت په غمخواری په ورځ تمام | په دا رنګ به توله شپه وو په قیام
ګل نازکو پښو ئې وکړ دیر پرسوب | شپه او ورځ ئې په ځپل ځان کړ حرام خوب
بلکې دومره ئې ژړا زاري په در | وکړه ده د پاک الله غني اکبر
د همه مقربانو برابر | د عالم ملکوت په پاک سرور
ژړونه شول سره د دوئ په درد غم | او دوئ سوال وکړ په درد رب رحیم
چې یاربه دا څه رنګ دنځ دے بې شماره | او په دې پاک بې ګناه چې دے د پاره
د امت ګناهګار اینے دے په پاک | هر ساعت کوې فریاد دردناک غمناک

طٰهٰ مَآ اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْقُرْاٰنَ لِتَشْقٰٓى اِلَّا تَذْكِرَةً لِّمَنْ يَّخْشٰى ۲۰

یعني اے رسوله نه مې په دا شان | نازل کړے مې په تا پاندې قرآن
او بل تا وته مې حکم نه دے کړے | مګر حق کښې دخدمت جبرئیل در ورے
مضبوط والے په عوښتو کا د استغفار | او د پاره د امت ځپل ګناهګار

نهٔ دے کرے مې دا حکم نهایت — ریاضت نهٔ کړي خپل ځان پهٔ هلاکت

ریاضت نه مرګ ته وغورزوي ځان — د امت ستا مې ګناه کړي درعٔیان

د اُمت ګناه ښکاره شوه درته ډېره — د حسابه د شمارې د حده تېره

او اوس خېژوم پورته زهٔ فی الحال — د عالم ملکوت پهٔ نور سنبال

دریابونه د رحمت زما بسیار — خزانې د مغفرت زما بسیار

زما وګورې چې تا ته شي معلوم — د اُمت د ګناه خیال دې شي معدوم

ګناهونه چې ستا ډېر دي د اُمت — یا زما بحرونه زیات دي د رحمت

زمانه مې پهٔ ګناه تیارهٔ دیجوره — رحم ستا ته سپینه زیاته د کافورٌ

# حکمت دویُم

دویُم وایُ حکمت بعضې دا حکمت — پهٔ بیولو کښې د پاک نبي حضرت[۲۱][۲]

او معراج ته د بیو و وو دا سبب — چې دا رنګ حکم وو شوے د پاک رب

چې شفیع بهٔ د امت د شفاعت — وي غوښتونکے د ورځې د قیامت

محمد علیه الصلوٰة والسلام — شفاعت به د امت کوي تمام

او تړل او پرانستل شو مقرّر — د نېک بختو د بد بختو سراسر

او ددهٔ پهٔ مبارک راتې د ځان — پهٔ سبب ددې آیات د پاک سبحان

# اِنَّ زَلْزَلَةَ السَّاعَةِ شَیْئٌ عَظِیْمٌ ۲۲

پهٔ تحقیق سره هیبت او هول بیم — د قیامت ساعت یو شے دے نویٔ عظیم

نو الله هول هیبت د هر کس ډېر — ولید څهٔ نبیٌ ولیٌ پهٔ دا رنګ سیر

اَیَ و لے نهٔ شي بل کس ته نظر — خواه مخواه پهٔ دا سبب ئې پاک سرورٌ[۴]

پاس عالم ملکوت ته ئې کړ روان — عجائب ئې هغه ځائے کړهٔ ورعیان

غرائب او عجائب ورته پاک خدائے — هلته وښودل تمام پهٔ هغه ځائے

درجات ئې د جنت او د نعمت
د دوزخ کندې کوهي رحمت زحمت

د جنت همه نعمت د هر هر باب
ور بشکاره کړهٔ د دوزخ ئې هم عذاب

چې هیبت دے د قیامت یو شے عظیم
چې حاضر به کړي الله رحمان رحیم

نو هر څوک به شي له خوفه پهٔ لرزان
د عظیم خطرنه دا به کړي زبان

پهٔ نفسي نفسي بهٔ بیا ئې گفتار
مگر یو چې محمد نبيؐ رویدار

هیبتونه دوزخونه سراسر
چې یو ځل ئې وو تیر شوي تر نظر

هیبتونو نه به تیر شي پهٔ آسانه
پهٔ نفسي نفسي نور خلق به وي گویا نه

مګر یو به شهنشاه تاج[۲۳] د لولاک[۲۴]
اُمّتي اُمّتي وائي به دے پاک

چې د دې حکمت دے دا نظیر مثال
هر چې وګوري هر کله ذوالجلال

او موسیٰ کلیم الله چې پاک سبحان
پهٔ طرف يې د فرعون لیږهٔ عیان

موسیٰؑ عرض وکړ پهٔ در د غني رب
معجزه يې کړه پهٔ سوال ترنه طلب

نو همسا ئې معجزه کړه پاک ستّار
دا ایات ئې ورکړ حکم پهٔ یو وار

## اَنْ اَلْقِ عَصَاكَ[۲۵][۲۶]

یعني اے موسیٰؑ همسا خپله دلاسه
پهٔ دې زمکه کړه ګذاره چې وسواسه

چې همسا موسیٰؑ دلاسه کړه ګذار
ترې نه جوړ شه لوئې عظیم اژدهامار

نو موسیٰؑ شهٔ ترې بعد ه پهٔ خطر
او پهٔ تېښته ترې موسیٰؑ شهٔ برابر

نو الله رحیم رحمان غني تواب
دا ایات حکم ئې وکړ یرې خطاب

## خُذْهَا وَلَا تَخَفْ[۲۷]

یعني اے موسیٰؑ دا ونیسه پهٔ لاس
مهٔ ویریږه ویره دور کړه کوز و پاس

ویره دور شوه[۲۸] د موسیٰؑ هغهٔ ساعت[۲۹]
غور زولو کښې د رب وو دا حکمت

کهٔ موسیٰؑ چرې همسا اول کړَت
دهٔ لیدلے چرې نو ے لوئې صورت

نو د وړاندې د فرعون کهٔ يې ضرور | غورزولے وے همسا پهٔ زړهٔ مسرور
کهٔ جوړ شوے له دې اژدهار مار | فرعونيانو هسې دے به هم يو وار
تيښتيدلے وو د دوئ هسې يوځل | معجزه کښې به يې شوے وو خلل
نو پهٔ دې سبب الله غني رحمان | پاس بوتلے وه خپل دوست آخرزمان
چرې ده دا هيڅوک نه کهٔ بسيار | د عالم د غيب نه نوے ورا ظهار
دا څيزونه هيڅوک نه کهٔ حضرت | دهٔ ليدلے نهٔ وے بيا به پهٔ قيامت
پهٔ مثال د نور دد ے بهٔ هم ضرور | ويريدلے به وو دوست د رب غفورؔ
نو سرودِ خير البشر به دُرفشان | پرانستلے به هر ګز نهٔ وو زبان
د عاصيانو ګنهګارو د اُمت | پاک رسولؐ به کړے نهٔ وو شفاعت

شاه محمدؐ دا هم فضل د اکبر وو
دا زمونږ پهٔ پاک نبيؐ خير البشر وو

کُل نبيان خلق نفسي نفسي به وائي | پاک رسولؐ به اُمتي اُمتي ستائي

# حکمت دريُم

بل دريُم حکمت وائي دا وچې بېحان | مشرف پهٔ دې وعده کړهٔ بندګان
د جنت او د شوولو پهٔ ديدار | پهٔ وعدوئې دے کل کړے اُميدوار
او د موراد مجلس ته تول خپل طالبان | دوستي خپلې ته يلے وو رحمان
دا همه فضل وکرم دے د رحيم | او پهٔ حکم صاف ددې آيات کريم

وَاللّٰهُ يَدْعُوْا اِلٰى دَارِ السَّلَامِ

او ددې نعمت دولت تمام حصُول | واسطه لويه زمونږ دے پاک رسولؐ
د يو رخصت دا خپشتو چې خريدار | لري مينه اخپشتوته ئې بسيار
نشي بې تعريف د ښه کامل جلاله | او صفت د هغې رخت بلا مثاله

څوک کولے يې لائق نشي صفت    نو پهٔ دې سبب ز موږ ه پاک حضرت

اول پاس د پتلهٔ اوهغه نعمتونه    طعامونه شرابونه راحتونه

هم رختونه فاخره او زيورات    ورښکاره کړه مرصع پهٔ جوهر زيات

بيا يې موږ ه ته راوليږهٔ سرور[۴]    چې موږ واړه پهٔ ديده کار کړي خير

صفتونه د هغې نعمت بسيار    چې د هغې نعمتونو نهٔ شي شمار

وکړي ز روته کړي مائل زموږ دې لور ته    دا پرده کړي د رند[۳۳] و د سترګو پورته

مګر دا دلالت پاک رب د جانب    او پهٔ ذات د دوئ لازم شهٔ هم واجب

شاه محمد چې پېشوا لوي سرور[۴]

شفاعت به د اُمت کړي پهٔ محشر

اُميد وار او سه دفضل د کرم    چې دا هسې وسيله وي څهٔ دِ غم

# حکمت څلورم

څلورم حکمت وائي دا و چې سرور[۴]    معشوقه او هم حبيب وو د اکبر

او دا رنګ حبيب پهٔ ټول جهان اکثر    باطني او ظاهري ته سراسر

پهٔ دا واړو خبرول يې وو پکار    بلکې تاسو وکړئ دا فکر تيار

مجازي شاهان د دې دنيا يو کس    پهٔ دوستي حامي چې وُينسي پهٔ وَس

خزانې ورته ښکاره کړي پهٔ اخلاص    حکومت ورکړي د ملک چې کړي څوک خاص

پهٔ دا شان سره سلطان لم يزل    خپل حبيب ته خزانې ټولې يو ځل

او غايبې او حاضرې هغه حين    ورته وُښوولې خپلې د زمين

پس له هغه يې اسمانونو ته روان کړ    او عالَم ملکوت يې ورعيان کړ

او کُنجي د جنتونو نعمتونو    ورکړه هم د دوزخونو زخمتونو

دې دپاره چې هر څوک چې پهٔ دولت    مشرف چې شي دده پهٔ شفاعت

د هغو به وي د حده بلند بخت    پاس به کښېني پهٔ دېرښهٔ فيروزه تخت

اوس څوک له سعادت د شفاعته — چې محروم شي د غضب په اُخوري لته

هيڅ ېري به مخ د مراد او د مقصود — ځپل به وُنه ويني څڅکله د بود

محروم دې پناه غواړم په رحيم — شفاعت يې کړي نصيب الف د ميم

**شاد محمد** ته يې اوسه خاص غلام

خاوند ننگ په خپل غلام کوي تمام

څوک خاوند لري د دوو کونو صاحب — د غلام به يې سربالا وي مراتب

## حکمت پنځم

او پنځم حکمت وائي دادے چې کوم دم — هر يو څيز و جودته راغے د عدم

چې د ملکه د عدم هر څيز عيان شه — په جګړه شره د زمکې وائي آسمان شه

آسمان زمکه وو په دا جګړه څرګند — کنه ځان آسمان په زمکه خپل بلند

زمکې ښکته او فراخ کنه خپل ځان — نو په دا رنګ ورته وويل آسمان

زه بخشش لرم چې ماله هر ګوهر — شي عطا نو زه يې وُ بخښم اکثر

زمکې وې هسې وجود لرم تيار — که هر رنګ کښېسود شي مابانديې دروند بار

زه يې پورته کړم په ځان بانديې د پاسه — هيڅ پروا پرې زما نه وي چې وسوا

آسمان وې زرين پنده و سکے ددې نمر — رب دے ايښے ماکښې هم روښان قمر

د قلعې قلعې د نګي نه مې د رب — غورزولے دے سخت کاڼے د غضب

په ښکر ددې کافر شيطان لعين — شکست وخوري شي داخل په سرزمين

په ماڼيه لاجوردي زما ښکاره — هر ماښام تياره خوره کړي په واره

په اسونو د نورونو تمام فوج — شي سواره ښکر د ستورو کوي موج

په ميدان کښې يې زما زغلوي صاف — پرې ښکاريږي عجائب زما اطراف

او هر کله سلطنت چې د شپې تير شي — سلطنت چې د سياح هر ګاه برسير شي

نو سلطان د خورشيد تاج د نور په سر کړي — تخت زما فيروزه رنګ ټول جلوه ګر کړي

زمکې دوې اے آسمانه څوېه مثل
سرکشي صفت کوي به د ځان خپلے
صفتونه چې د ځان کوي خپل زيات
اوربدلے نهٔ دے تا جوړ دا ايات

## اِنَّا جَعَلْنَا مَا عَلَى الْاَرْضِ زِيْنَةً لَّهَا

دحکيم مطلق پهٔ حکم دا خلقت
رنګا رنګ سره دا فرش زما زينت
قسم قسم پهٔ نقشونو سراسر
پهٔ رنګونو دے او دلې برابر
او تهٔ نهٔ وينې پهٔ فصل د بهار
چې رونق د لاله زار مخ د ګلزار
کوي څرنګه جلوه زما د پاسه
د صبا نسيم فرحت ورکړي بې قياسه
او دا سترګې د غنچو پهٔ مخ د باغ
د ګلرويو چې پهٔ زړونو کښې بهٔ دي داغ
غړېدهٔ کوي پهٔ څرنګ مست خمار
بلبلان دا ثنا وائي پکښې بار بار

## سبحان ذی الملک والملکوت

هغه رب لره پاکي ده چې صاحب
او د ملک او ملکوت دے هم غالب
دا ګلزار کښې د مطربو پهٔ مثالے
وي هم ساز سرود کوي پهٔ دا مجال
سود د زړونو پرې کوي پهٔ هر ساعت
دا همه واړه زما دے دېر زينت
اسمان دوي چې اے زمکې دباغونو
د ګلونو خوش آوازو د مرغونو
صفتونه تهٔ کوي پهٔ دا ساعت
څهٔ حاصل بهٔ شي له تا نه څهٔ لذت
کهٔ د دوي پهٔ ښهٔ آواز کوې تهٔ ناز
هيڅ لائق نه دے د ناز د دوي آواز
ماکښې شته د تسبيحاتو ښې نغمې
چې پهٔ زړونو لګوي د شوق نغمې
زاهدان د ملائکو پاکو زيات
بهٔ دي نغمې پهٔ زړهٔ نغمې ئې تسبيحات
د چرچنو د آوازنه ستا ضرور
د مرغانو پهٔ آواز کوي سرور
څهٔ کے دي مکر وکړ فکر خپل
چرته مانه زينت دارڅيز شته دے بل
اوس لاهم نهٔ کړې زما متابعت
پهٔ فراخ غولي نقاش چې د قدرت

ماکښې سل زره شاخونه غني رب　　پیدا کړي دي په برګ زینت عجب

د هر ستوري د ګلاب شکل احمر　　څرنګ پانې د هر شاخ نه سراسر

دي په ما اویزان کړي رب رحمان　　په فراخ غولي جلوه یې کړي شان شان

او سپوږمۍ په دې درجې څېمه د نو　　ده وهلې په مجلس زما مسرور

عطارد عطر په شان د عطاري　　د حکمت ماکښې ګډ کړے دے جاري

او زهره سره د دې جمال زینت　　نو طنبور د خوشحالۍ د عیش عشرت

په بساط د بلندۍ کښې زما تل　　دے نیولے د هوس یې په لاس چل

نمر د نوره سرا پرده شعاع له مانه　　د هر کس او د هر څیز په سر یو شانه

قربان کړي ده په هر څیز دي نور شید　　هم په سر د هر یو کس خورشید جمشید

او مریخ په دې صفحه د تواریخ　　په ما کړي منقش دے دے مریخ

مشتري انګشتري د سعادت　　د اقبال یې په ما بانې د دولت

او په ما جلوه ګر شوے دے سنبال　　مشتري په سعادت او په اقبال

او زحل د بد بختانو توره ختیه　　په مخونو یې مبتلي ده بچې و ته

او سهیل په شان د ناوې د یمن　　په خندہ سحر سره رابښکلي ده لمن

او جوزا امېل[۳۵] د غاړې زرنګار　　ظاهر کړے دے په عین نور بسیار

او بل هم بنات النعش په بڼه شان　　په نګار په نقش نا وو هسې ځان

چې په دې فیروزه رنګ زما د تخت　　پاس یې پښې پرې اوږدې کړي دي د بخت[۳۶]

او دا ټول دي پیدا شوي برابر　　په عالم یې د وجود سره اکثر

په درجه لویه بلنده غني رب　　او دا واړه پیدا کړي دي عجب

هم په بڼه شانې تلا[۳۷] زه فلکي　　هم لوم عبادتګاه بڼه ملکي

او هم زه یم محل د عرش عظیم　　فراخه کښې د کرسۍ یمه سلیم

او یم ځاے د جبرائیل[۴] د میکائیل[۴]　　او بل هم د اسرافیل[۴] د عزرائیل[۴]

او یم ځاے د عبادت عمر تمام　　د عیسیٰ علیه الصلوٰة والسلام

او محرم یمه د لوح او د قلم — د ذري نشته په دا کښې بیش وکم

مدرسه یم د ادریس په ډېر هوس — هم خاصه د بیت معمور مقدس ے

القصه لا في آسمان د خپل جمال — د لوئي په زمکه اوکړي په هر حال

شوله زمکه شرمنده او خجالته — سر يې خپل شرمندګۍ نه کړ زر ښکته

او څو ذره کاله زمکې په خوارۍ — چې کړل تېر په هسې رنګ شرمسارۍ

نو هر کله محمد صلی الله علیه وآله وسلم دوست د رب پاک — شهنشاه لائق د بنه تاج د لولاک

د عدم نه د عالم په وجود بس — عنایت چې کړ تشریف شریف اقدس

زمکې سر کړ ورته پورته ناګهانه [۳۸] — نو آواز يې ورته وکړ اے آسمانه

دا دے هغه مبارک ذات شه عیان — دا دے هغه د نبیانو شاه سلطان

په طفیل دده او یا ذره عالمه — پیدا شوي دي هیڅ نشته زیات وکمه

زمکې ناز او فخر لوئي د هر هر بابه — په آسمان باندې ډېر وکړې حسابه

دوباره يې ووې اصل پاک اګر — که دده د آسمانونو وے اکثر

وجود پاک وُ ز ببر په ده او سکونت — او ژوندون ے هم په ما د پاک حضرت

هم بنیاد يې د ے زما نه برابر — هم په ما کښې ده روضه د پاک سرور

حاصل دا زمکې د رچې کړلې حصول — د لمن په واسطې د پاک رسول

په آسمان عالي بنیان يې فضیلت — بیا موندہ ډېر بالا له حده نهایت

نو آسمان عاجز په کُنج کښې ملامت — کښېناست غلے پنه په سر د خجالت

پس له هغې آسمانونو په دربار — په ژړا زارۍ سوال وکړ د جبار

چې ددي صاحب په نیک قدم ضرور — زما غوږے منور کړه هم مسرور

پاک الله د آسمانونو سوال قبول کړ — آسمانونو نه يې لرې د غم نول کړ

او معراج يې د خپل دوست نبي سرور — آسمانونو باندې پاس کړ مقرر

ښکته والے د زمین نه يې په اعلیٰ — او درجې ته يې د دنیٰ فتدلیٰ [۳۹]

پاک الله ته شه نیژدې بشه نیژدې ترپا — په اعلیٰ درجه داخل کړ قدسي ذات

پهٔ ختو ددهٔ دذات مبارک مراد / آسمانونوته حاصل شهٔ مراد ازاد

ډېردې د خجالت ئې سر بهر کړ / دا کوم پهٔ اسمانونوچې اکبر کړ

**شاه محمدٌ ه چې** شفیع لوی دا شان

دے فخر د زمین او د آسمان

پاک الله ورته و ئیلے دے محبوب / کلمه ئې مفرح ده د قلوب

# حکمت شپږم

بل شپږم دے دا حکمت چې پاک سرور / آسمانونو ته داخل کړ پاک اکبر

هم بلند وو درجو ته چې رسولؐ / الله وُرسوهٔ خپل رسول مقبول

چې دیاره پاک الله د شفقت / د بل کس د وسیلې نه چې اُمت

پهٔ دوست خپل باندې چې وسپاري تمام / لکه خدائے هسې وئیلے دے کلام

یا رسولؐ امت ستا پهٔ زمکه لاندې / کل پهٔ زمکه کښې سپارمه پهٔ تا باندې

مګر زمکه کښې پهٔ دا رنګ حال اکثر / ته دوئ وینې پهٔ نظر فیض اثر

ته زما دقرب مقام ته راشه خاص / چې زهٔ وسپارم دوئ تاته پهٔ اخلاص

هر چې وُوینې سپارد نګے د امت / نهٔ یوائې چې سپارلې سلامت

څوک دي دا چې تاته دوئ سپاري جاري / او چې څهٔ درته د خپل فضل سپاري

اے رسوله د سپارلو نه اول / چې سپارلې نهٔ وو تاته مې یو ځل

او اول چې دوئ بالکل وو ما سره / د تمام وارو عیبونو ما ښکاره

تول عیبونه وو مقبول ماته اکثر / ما سره ددې عیبونو سراسر

بنده کړې مې پرې نه وه مهماني / ته پرې هم مهماني خپله لا ثاني

بندهٔ وه مهٔ ته بالکل پهٔ خپل اُمت / نو پهٔ دا سبب پهٔ ورځ به د قیامت

توربه تول څکه نفسي نفسي به وائي / دوست درب به امتي امتي ستائي

یو عجب سردے لطیف پهٔ دې مقام / چې نفسي نفسي به تول وائي تمام

او نفسي نفسي به وائي ټول په لب — حال دے داچې نفسي نوم نهٔ دے درب

امتي چې زمونږ وائي پېغمبر — امتي هم نه دے نوم د پاک اکبر

مناسب وو چې دوئي وارو هسې شان — او ربي ربي و ئلے په زبان

ليکن سرېکښې وائي دادے بنهٔ عجب — د ربي په احاطې کښې غني د رب

امتي کښې دے درج کړے پاک ستار — ربي لفظ په امتي کښې صاف تيار

اُمتي ويلو وخت کښې پاک حضرت — بالکل نهٔ دے منتظر د خپل اُمت

ودکوونکي د امت ته انتظار وو — چې الله رحمان رحيم جبار قهار وو

گويا وائي پاک رسول زمونږ داشان — چې هغه وعده د مهر مهرَبان

په مقام کښې چې د قرب دې ماسره — چې وه کړي دا امت وو صاف ښکاره

دا وعده مهرباني چې په مقام — د قرب کړي وه د ټول امت تمام

نوکه اوس د خپل امته اخلم لاس — اوکهٔ لاس کړم د اُمته خپله پاس

نو سيکوالے د بخشش به برابر — به مې کړے وي د خپل دوست سراسر

خواه ناخواه ئ اُمتي اُمتي خپله — وظيفه ئ هر ساعتې د ځان کړله

په دا ځائے کښې لطيفه بله ده بناڼي — او شرحه د تعرف کښې هسې وائي

چې الله رحمان رحيم پاک غني رب — دے امت سرَه دوه کاره بنهٔ عجب

وکړه هسې دا دوه کاره په بنهٔ شان — يودے داچې پاک الله رحيم رحمان

امتونه ئ ټول د دوئ په سبب پرېښو — نو هغو زُنار د کفر ته سر کېښو

زنارونه ئ د کفر کړهٔ په غاړه — ماتي کړي وعدې د قَالُوْا بَلٰى واړه

پس له هغې چې د دوئي پيغمبران — او د منځه چې ټول ووتل اَمانے

ځائے د ځلې او د دوئي اود امت — تو ذرې نه پاتې نهٔ شهٔ سلامت

ځکه نور پيغمبران به ټول تمام — نونفسي نفسي ويل به کړي کلام

لياقت د صلحيت يوَه ذرّه — امتونو کښې وه نهٔ ليده ښکاره

او د وارو مرسلانو شهنشاه — په راستي په امت خپل لره نگاه

اصله غوټه د صادقې ښې راستې — وي له دوئ سره په ځائ به د دوستي

نو په دې سبب رسول زمونږ حضور — امتي امتي وائي به ضرور

او دو ئمه لطيفه دا ده اظهاره — چې که څرې دې امت ګناه بېشماره

که د نورو امتونو په نسبت — ګناهونه دې زيات کړي دې امت

مګر ځائ د صلحې خپل ئې لره سم — وو په ځائ د صلحيت ثابت قدم

او د دې امت دا زياته ګناه ډېره — د خوارګه د پاره نه ده د دوئ شمېره

بلکې دا د ے حال ضرور له دې د پاره — چې له دې دنه شي ظاهره دا دوه کاره

يو د دوستي خپله ظاهره کړه پاک رب — او د دو مره ګناهونو په سبب

دا امت د مغفرت ئې اميدوار کړ — کرم فضل پرې دا ډېر غتي ستاد کړ

دو ئم دا چې ترقي د پاک سرور — د درجې پکښې ظاهره شوه اکثر

بلکې هسې بزرګانو دي وَمثَلي — ما په خپله په کتاب کښې دي ليدلي

## التجاوز على الجفاء على قدر المحبّة

## وعظم الجفاء على عظم جاه الشفيع

او بخښل د ګناه ډېرې نهايت — د زيات والي د ے دليل د محبّت

او ګناه بخښل شفيع ته د حد ډېره — د ے دليل د ترقۍ بهر له شمېره

د شفيع د ترقۍ د ے دا دليل — د درجې لويي په دوست د رب جليل

**شاد محمّده** که ګناه لرې بې قياسه

د کريم د فضله نشې ناشناسه

چې شفيع لري بل هسې دوست د ربّ — غلام اوسه که ديدار لرې مطلب

# حکمت اُووم

بل اووم حکمت دے دا چې پاک سرور — دهٔ خلوت وُلره پاس پهٔ زمکه بر

د هغې خلوت ئې دا کاوه تعبیر — چې رسول مقبول دے کړے دا تقریر

## لی مَعَ اللّٰہ وقت لایسعنی فیہِ مَلَکٌ مُقَرَّبٌ وَلَانبیٌّ مُرْسَلٌ

یعني ماله دے سَرَه د رب ستار — او یو وخت دے مبارک د حق بسیار

نهٔ ځائیږي پهٔ هغهٔ کښې بل یومل — نه ملک مقرب نه نبي مرسل

نو رسول د دې خبرې تل طالب وو — پهٔ درګاه د دې خبرې مناسب وو

چې ما ورسوي خدائے پهٔ هسې ځائے — نهٔ ځائیږي هغه ځائے بې ما او خدائے

او هغه دے د دې وخت حاصل مقصود — نقد د وخت چې شي زما د دیر بهبود

عبارت د مقرب ملک دا تمام دے — جبریل علیه الصلوٰة والسلام دے

او نبي مرسل نه هسې مراد عجب دے — ابراهیم خلیل الله خلیل د رب دے

نهٔ ده نهٔ ده عبارت نبي مرسل — د قالب د رسول مراد دے مُفَصّل

عبارت د مقرب ملک دے صاف — د روح پاک د پاک رسول نهٔ دے خلاف

نو پهٔ دې وخت کښې دا بزرګ ځیزونه دواړه — پکښې هم نهٔ ځائیدل پهٔ عمر واړه

خواه ناخواه پروردګار نبي سرور — د خلقت د شش جهاتو نه بُهر

بوتهٔ ځکه چې مقصود کامل بسیار — چې دده ئې کړ ښکاره دهٔ ته ستار

او یونس علیه الصلوٰة والسلام — دګردش د زمانې خفه شهٔ تمام

بلکې چرته زمانې نه چې جُدا — لټاوهٔ چې چرته کنج کاندې پیدا

چې د رب سره وُکاندي دے راز — چې پهٔ منځ کښې نهٔ اغیار وي نهٔ غماز

حقیقي بادشاه ته خپل د عجز عرض — چې کل وکړي عینې فرض لکه قرض

نو الله دده د پاره پهٔ قدرت — پهٔ ماهي کښې جوړ کړ ځائے د عبادت

کېده ځائے دعبادت شۀ د ماهي　　رفع دفع ترې پۀ نورشوه سیاهي
پۀ تسبیح سره مشغول شۀ د ودود　　هغه ځائے ورته حاصل شۀ خپل مقصود
د یونس نه د احوال اخر زمانے　　هسې رنګ خبر ورکړے دے دا شان

## تفضلوني علی یونس بن متی

او معراج زما بلند وو مشرف　　او معراج وو د یونس پۀ کوز طرف
پۀ کېدو سَره د وصل د ستار　　توجّهٔ د فوق العرش او کوز بسیار
یعني کوز تحت الثراده یوه سمه　　هېڅ پۀ دې کښې ذره نشته زیات و کمه
او احوال د ابراهیمؑ خلیل د رب　　هم ددۀ دے پۀ دا رنګ خلوت عجب
او پۀ منځ د نمرود یا نو د اور سور　　بشۀ خلوت مقرر کړے وو غفور
د اغیارو د زحمته بې‌ځې نول کړ　　پۀ بل اورکښې دۀ خپل ځان سره مشغول کړ
او پۀ لویو درجاتو هغه آنے　　پۀ مقصود کامل رسید کړ پاک سبحان

**شاد محمدؐ** غم د ځان د آخرت کړه
نورخیالونه فضول کل د زړۀ اوچت کړه
چې پیشوا لرې د دوؤ کونو سردار　　صادق اوسه نوربه خبر کړې پاک سردار

## حکمت اَتم

بل اتم حکمت دے دا چې پاک اکبر　　مشرّف پۀ محبوبې کړ پاک سرور
چې الله پـه محبوب خپل مشرّف　　اوازه شوه دا خوره پۀ هر طرف
هم عالمِ ملکوت کښې رب رحیم　　کړه خوره دا آوازه د دوست کریم
ټول خلقت پۀ محبت د پاک حضرت　　پۀ لویه لوګو نکي شۀ پۀ نیت
نور او هغو ملایکو چې اولے　　سوال وو کړے پۀ ګفتار دا تجعل

## أَتَجْعَلُ فِيهَا مَنْ يُفْسِدُ فِيهَا وَيَسْفِكُ الدِّمَاءَ

یعني ته به پیدا کوې په هسې شان — په دُنیا کښې اے الله هغه کسان
چې کوي به فسادونه په زمین کښې — او ناحق به تویوي وینې هرحین کښې
فسادیان به وي د زمکې په طبق — تویه وي به سره وینې په ناحق
نو الله رحمٰن رحیم غني تواب — وا پس وکړ ورته هسې رنګ جواب

## إِنِّي أَعْلَمُ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٢﴾

یعني زه یم ښه عالم او خبردار — په هغو پټو رازونو زه ستار
اے ملکو چې پرې تاسو سراسر — علم نشته نه یې هیڅ په دا خبر
نو اکثر مفسرانو په صاف نیت — ددې علم غیب نه هسې اشارت
پاک وجود ته یې دے کړے د رسول — نا قبول یې نا قبول مقبول مقبول
اے ملکو تاسو نسل د آدم — ګناهګار مفسدان وینئ په هر دم
زه هغې مبارک کس ته کړم نظر — چې زما دے دوست محبوب خیرالبشر
ټول خلقت مې د هغه دوست په سبب — پیدا کړے دے مطلوب دهر مطلب
څوک چې جام ته د مقصود رسیږي کس — نو قطره د هغه جام به یې په هوس
او نوش کړي به یې آب د هغه جام وي — مقصودونه به حاصل ورته تمام وي
نو عالم ملکوت چې پاک وجود — د احمد او محمد او د محمود
چې سبب د کل تمام آفرینش — ولید دے آفرینش او د بینش
خواه ناخواه یې شول مشتاق د دیدار د زیارت — او د پاره یې د ده د ملاقات
په درګاه د رب رحیم پاک ذوالجلال — د رسول د ملاقات یې وکړ سوال
نو الله رحیم رحمٰن غني ستار — خپل محبوب یې محمد نبي روئیدار
او د پاره د تمامو مشتاقانو — هم چې وشي تسلي د عاشقانو

چې د زړونو نه ئې لرې شي وسواس — نور عالم ملکوت ته ئې بوته پاس
چې سبب د پیدائش نبيٌ سرور — د اوُیا زرو عالمو ئې برابر
ملائیکو ولید دوست د ذوالجلال — سر په عذر ورته شول د هغې سوال
اَتَجْعَلُ سوال چې ووکړے دوئي په رب — مستعد شول د حکمت په دا سبب
نظیر دا دے برابر د دې حکمت — د بي بي زلیخې زیات وو محبت
په یوسف علیه الصلوٰة والسلام — نهایت وو محبت د حد تمام
نو هر کله ملامتګرو چې جمال — د یوسف لیدلے نه وو په هیڅ حال
چې منکرې وې هر څو د مصر ښهر — زلیخې ته ئې ملامت کاوُه هم قهر
او دا نیت زلیخې وکړ چې زبانے — کا تدې بند د ملامتې په خپل ځان
هغه دم هغه ساعت په ډیر شتاب — نو یوسف ته ئې هسې رنګ وکړ خطاب

# اُخْرُجْ عَلَیْهِنَّ

اورا وو څه په دوئي باندې ئي الحال — ورښکاره جهان آرا کړه خپل جمال
دې منکرو ته ښکاره کړه بې حجابه — چې خبر شي ستا د حُسن بې حسابه
نو هر کله چې یوسف شهٔ راښهر — ددې ښځو چې دے راغے په نظر
په سبب د ډیر جمال حسن د جوشه — واړه ښځې د هوشو نو شوې بېهوشه
د خوراک په چړو ډیر بیکړل وارو لاس — هیڅ د ځانه خبر نهٔ وې کوزو پاس
لکه هسې قدسي ذات والاصفات — په قرآن کښې دے ویلے دا ایات

فَلَمَّا رَاَیْنَهٗٓ اَکْبَرْنَهٗ وَقَطَّعْنَ اَیْدِیَهُنَّ وَقُلْنَ

حَاشَ لِلّٰهِ مَا هٰذَا بَشَرًا اِنْ هٰذَآ اِلَّا مَلَکٌ کَرِیْمٌ

یعني هر کله چې ښځو ملامت ډیر — په بي بي زلیخې وې په هر ساعت ډیر

نو یوسف ئې ولید بزرگ پهٔ ډېر جمال — چې جمال ئې وو بېحده پهٔ کمال
او لاسونه پرې کول سره دوئ خپل — او پهٔ هغې درد خبرته وې بالکل
پهٔ دا رنګ شولې چې هوشه سراسرې — چې بالکل نهٔ وې د ځان پهٔ درد خبرې
او دوئ ووې پاک د عجزه دے ودود — د دا رنګ پیدا کولو د وجود
پاک له عجز نه دے پاک لوئ غني رب — پیدا کُش نه دې پاک وجود عجب
نهٔ دے دا بشر او کس بني آدم — نهٔ دے بل ئې مګر دے ملک اکرم
پهٔ دې باب کښې دي و ئیلي پاک رسولؐ — چې پهٔ در وو د الله رحمن قبول
د یوسف علیه السلام الله غفور — پیدا کړے د کرسي نه ئې وو نور
او زما نور پاک الله رحیم قدیم — پیدا کړے معزز د عرش عظیم

**شاد محمد** ره لمن تینګه د سرورؐ کړه
ځان دلارې د الله رسول خبر کړه
عبر دلارې د احد او د احمدؐ — قدم کښېږ نهٔ بږدې د حده پهٔ بل حد

# حکمت نهم

بل نهم حکمت دے دا چې پاک سبحان — دي د پاره بوتهٔ دوست آخر زمان
آسمانونو ته ئې بوتلو پاک حضرت — چې دے ووینی خدمت او عبادت
هم چې کل ګوشه نشین د ملکوت — او هم ترې د شربت چې د لاهوت
طریقه د عبادت کښې پهٔ مقام — د قربت کښې پهٔ هوس نژدې شي تام

**شاد محمد** ره رب رحمن دے هم رحیم
بل چې ستا دے وسیله رسول کریمؐ
د غضبه د قهار کوه خطر
فضل رحم ئې امید کړه سراسر

## حکمت لسم [۱۰]

بل لسم حکمت دے دا چې پاک اکبر
د خپل دوست معراج کړ پوره ته برابر

په عروج د آسمانونو غني رب
مقرر کړ د رسول په دا سبب

پیوست والے چې د وارو تجلیاتو
جلالي او جمالي د حده زیاتو

د مقامه دیو بل د اوڅېدو
چې ور ورسي منزل ته د لیدو

مرتبې نه چې د علم د یقین
د سرحد عین الیقین ته په یو حین

ترقه وکاندې د برې سراسر
اراسته د صاف یقین شي په زیور

## حکمت یوولسم [۱۱]

بل حکمت یوولسم دے هسې شان
په معراج د محمّد آخر زمان

اسمانونو ته وو دا د پاک حضرت
لطیفې وګورې دے د آخرت

او لمن چې د همت د دې مکارې
دې دنیا نه کړې کل تموله په یو وارې

او په دې جهات فاني باقي جهان
د خزر د په سترګو غوره کړې عیان

## حکمت دولسم [۱۲]

بل حکمت دولسم دا وو چې د لال
واسطه او رابطه وي د وصالے

د عاشق د معشوقې کړي رابطه
او د لال د رابطې وي واسطه

نو هر څو د معشوقې که د بر صفت
دلال وکاندې عاشق ته هر ساعت

په وېل د پښتي شا سره عاشق
په کمال محبت لایق صادق

د و مره ته رسي تحقیق ته په کمال
څو وُنه وېني د خپل معشوق جمال

معشوقه چې په زیور د جمال ځان
اراسته کړي د هر بابه په ښه شان

د عاشق مقام له رانشي په خپله
تجلیات د جمال خپل بغیر د بله

خپل جمال چې ور ښکاره کړي بې اغیاره
او د وصل خپل طالب ته دیو واره

هم دا رنګ یا محمده (صلی الله علیه و آله وسلم) مده د پره ... وشوه اوري آوازه د حدله شمیره
دبدبه حسن جمال جاه و جلال ... جبرائیل تنه زما اوري په هر حال
او چې تنده د شربت په دي چینو ... چې پېرشي د تشنه وُ د سینو
لکه هسې پاک الله والاصفات ... په رسول یې رالیږلې دا آیات

## قُلْ رَّبِّ زِدْنِیْ عِلْمًاهْ[۵۱]

یعني ووایه اې دوسته پېغمبره ... چې اې رَبّ زما علم مې کړې بَرَه
اې رسوله هسې ووایه په حِلم ... چې اې رَبّ زما زیات کړه زما علم
دحیات اوبه زما د وصالت ... لتهوې پوره شه اوس په دا ساعت
نو په دا واسطه اوس شه راروان ... نه ده نه ده بلکې هسې ده داشان
واسطه د منځه اوباسه هم خیال ... چې زما حسن جمال دې په کمال
او جمال حسن زما په بنه زبور ... دکمال وي آراسته صاف سراسر
او د ناوي د لوګه نه مې ضرور ... د پېتوالي پرده مخ نه کړله دور
دریا بوند د فضلو نو مالا مال ... موج سخا او د کرم کړي عدم سیال
دې راوړې د عالم ظهور پوره ته ... موج د فضل د سخا کرم هر لورته
مرغلره د وحدت د ذات زما ... د صدف د شفقت صفات زما
د صدف نه مجرده چې شي تا ته ... مرغلره د وحدت زما د ذاته

## حکمت دیارلسم[۱۳]

دیارلسم حکمت دې داچې په معراج
رب چې سر کړ د رسول د لولاک تاج

دا رشا وه دالله چې خپل حبیب — په معراج سره کړي دوست ځان ته قریب

اود وحي په اقسامو چې په ځپله — مشرف کاندې خپل دوست بغیر دبله

وحي داده د اقسامو نه بهتره — چې بغیر د واسطې وي برابره

جبرائیل چې پکښې نه وي واسطه — بې سببه چې حاصل کړي رابطه

واسطه د رابطې بغیر د مُلهُ — لکه هسې چې تېر شوي دي اوله

نوهمه مفسرانو دا آیات — آمَنَ الرَّسُولُ[52] هسې کړي بات[53]

چې بغیر د واسطې دجبرائیل — د معراج شپه کښې رسولؑ د رب جلیل

اورېدلي آیات د آمَنَ الرَّسُولُ — له درګاه نه د الله رسولؑ مقبول

مراد یې خپل غوښتهٔ دربار نه دَستار — زیرے بنهٔ د اجابت اورېد تیار

اوپهٔ باب کښې د معراج یې دحد تېرې — ذکر کړې لطیفې دي د حد ډېرې

وراندې رابلشي نوپس دا دوحکمت — پهٔ بیولوکښې زموږ د پاک حضرت

دا آیات چې الله ووایهٔ پهٔ ځپله — دوست ته یې د وسیلې بغیر دبله

شاه محمده چې پېشوا لري داشان
چې پهٔ خپل امت دے ډېر ډېر مهربان

پهٔ درګاه دے درحیم کریم مقبول — لمن ټینګه کړه پهٔ صدق د رسول

## حکمت څوارلسم

څوارلسم حکمت وو هسې پهٔ معراج — د رسولؑ رسولؑ له داکړ رب حراج

۲ سمانونو کښې معراج د پاک سرورؐ — مقرر کړے دے دپاره پاک اکبر

چې پهٔ منځ د ملائیکو کښې جګړه — پهٔ یو څو سوالو پربوتې وه تکړه

ملائیکو کړه جګړه پهٔ مسئلو — دیوبل زرهٔ نه ووصاف پهٔ تسلو

دا جګړه وه څلور دره کاله پاتې — وې پرتې دا مسئلې پهٔ مده زیاتې

يو ملک کامل کوله نهٔ شو جواب — نو الله رحيم کريم غني تواب

خپل حضورته ئې طلب کړ خپل محبوب — د تمامو مخلوقاتو دل مرغوب

مشرف ئې پهٔ بللو کړ سرور — حضور خپل ته ئې کړ طلب غني اکبر

او وطن ئې د دولت او د عزت — او پهٔ شان ئې د ساړه د سعادت

نو دده ئې غورزولے وو پهٔ سر — د ملکو خاکسارانو سرابو

د صفاتونه دده غني سبحات — يو شمه کړه ملائيکوته بيات

ملک پوه شو چې د سختو مشکلاتو — زمونږ حل به شي دده پهٔ اشاراتو

او ددې سرور صاحب د کائنات — او افضل د صلوات د تحيات

حل ددې مسلو سختو بهٔ حضرت — زمونږ وکړي برابر چې يو ساعت

نو جبار قهار ستار پاک غني رب — دې د پاره بوته دے ددې مطلب

د ملکو مقربو دا صاحب — او ددې دوارو جهانو مناسب

آسمانونو د يامونو نهو پورته — الله وُخېژاوه زمکې نه پاس نورته

د ملکو چې جواب آخر زمان — لکه غواړي چې ملک پهٔ هغه آن

جواب وُکړي د ملکو برابر — پاک سرور خير البشر دوست د اکبر

دا مشکلا چې د دوئ پرا تې تمام — شي جواب د مسائلو پهٔ انجام

پهٔ محل شامل کبنې راشي پهٔ تجويز — زدشي وړاندې نوان شاه الله العزيز

**شاه محمد** لا چې د دوُ کونو سردار

چې پېشوا لري سرور نبي رويدار

او خالق د مخلوقاتو الله پاک — پهٔ سرا يښے د خپل دوست تاج د لولاک

## حکمت پنځلسم ۱۵

---

پنځلسم حکمت دے دا چې پاک اکبر — آسمانونوته خپل دوست خيرالبشر

په معراج د رسول دا ووصاف لایق
دي وثلي چې الله غوښتل دا شان
چې سلطان د انبیاء علیه السلام
هم شو قطع عرش کرسي لوح وقلم
دې پردې نه یو ملک شهٔ راښهر
لکه روس چې شي د مېلے پهٔ قرار
بلکې دا [٥٧] واقعه واړه به ضرور

لکه هسې چې امام جعفر صادق
چې خپل دوست ته تعلیم وکړي د اذان
د طبقو د اسمانونو تېر شهٔ تام
پردې خاصې ته ور ورسېدهٔ سم
د نمانځه اذان ئې وکړ برابر
تر پېښه واورېدهٔ زمونږ نبي رویدار
ان شاء الله [٥٨ع] پهٔ خپل ځائے کښې شي مذکور

# حکمت شپاړسم [١٦]

شپاړسم حکمت معراج کښې د سرور
چې لویې او بزرګي او هم عزت
هم بزرګان د انبیاؤ هم ارکان
چې بزرګي لویې عزت د دوست کریم
نو پهٔ بیت المقدس غني اکبر
پاک رسول زمونږ ئې هلته کړ امام
دے امام او انبیاء ئې مقتدیان کړل
د پر عزت او فضیلت غني ستار
پس له هغې نه الله رحیم غفور
هلته دے د ملایکو ئې کړ امام
او دده لویې عزت او فضیلت
هم ئې وکړ زاوهٔ دے غني پاک رب
او خپل دین ئې همه خلقوته بیان کړ

آسمانونو ته پهٔ دا وو مقرر
ټولو خلقوته ښکاره کړي د حضرت
د ملکونوته چې دوست خپل کړي عیان
ټولو خلقوته ښکاره کړي رب رحیم
چې اول ئې کړ داخل نبي سرور
د همهٔ انبیا علیه سلام
فضیلت عزت ددهٔ ئې دوئي ته عیان کړل
کل مخلوق ته کړ ښکاره د دوست رویدار
کړ داخل ئې پهٔ مسجد بیت المعمور
مقتدیان ئې ملائک کړه رب تمام
کل ملکوته ښکاره کړي د حضرت
د مشرقه د مغربه پهٔ دا شب
جن او انس او کل مخلوق ته ئې عیان کړ

دې دپاره چې د انس او جن اکثر ... شهنشاه وي پاک سرور خپرا بشر

پس حکمت د فضيلت چې پاک ستار ... پهٔ معراج کښې کړي ښکاره د دوست رويئ[۱۶]

چې کل جمع پېدا ئُش ته د حضرت ... چې ښکاره کړي شرافت او فضيلت

# حکمت اوولسم[۱۷]

بل حکمت اوولسم دے پهٔ معراج ... چې پهٔ سرئ اېښے رب د لولاک تاج

آسمانونو ته وو دا د پاک رسول ... چې ددهٔ مبارک ذرهٔ ووپهٔ دا نزول

پهٔ دنيا کښې محنت، رنځ او ډېر خفګان ... د کفارو نه ليد لے وو عيان

چې هغه خفګان د پاک نبيؐ سرور ... بې ختو د آسمانونو برابر

نه ته بې د هغې خاصې حرمسرائے ... هسې وُغوښتل الله غني پاک خدائے

چې د خپلې لوئ شان ورته ښکاره کړي ... چې خفګان ئې پهٔ بخشش تبول اواره کړي

او چې ذرهٔ نازنين ئې د پاک رسول شي ... ترې نه لرې ګرد غبار خفګان، نزول شي

او چې لرې ترې د رنځ د خفګان جال وي ... او سره ددې محنت بسيار خوشحال وي

**شاد محمد** د رسول خدمتګار او سه

دالله نه د ديدار اُميد وار او سه

مستقيم او سه پهٔ شرع د رسولؐ ... چې پهٔ دردې د خالق رازق مقبول

# حکمت اتلسم[۱۸]

اتلسم حکمت معراج کښې د سرورؐ ... آسمانونو ته واېئ دا وو برابر

چې ساقطئ درجه شي د نظره ... والله اعلم دوست د[۵۹] سرورؐ ه

او بيان ددې خبرې دا دے صاف ... پهٔ کښې نشته د ذرې قدرې خلاف

چې دا واړه بخښښونه د حد ډېر | خلقتونه خداوندي بهر د شمېر
بخښښونه شاهانه او ډېر خدمت | لکه نوم د بلندئ او د عزت
او بېرغ د حمد او هم بابا آدم | او هم کل واړه خلقت او ټول عالم
وي دا ټول به د بېرغ د رسول لاندې | او بېرغ به د احمد وي په دوئ باندې
او هم بل حوض کوثر او شفاعت | سپين او سور پورته کېدل اول حضرت
ټول مخلوق نه به د قبرنه اول | پاک رسول به زمونږ پورته کړي يوځل
د همه پېغمبرانو نه اکثر | او اول جنت ته تلل د پاک سرور
او سل زره مصافحه دا رنګ بهترې | رب په نوم دخپل محبوب کړي مقررې
د درګاه نه د الله غني ستار | دے په اسم مقرر د دوست روېدار
دا قاعده ده همېشه چې بادشاهان | د دنيا چې يو نوکر خپل ته عيان
خلعت ودکړي يا ېې ځه مهرباني | وکړي ودکړي خلعت ډېر ښه لاثاني
تو هغه نوکر په دې خلعت عجب | ډېر نازېږي د خاوند خپل په سبب
سبب دا په دې خلعت د خاوند خپل | عزت ومومي د حده يو په سل
چې نازش ددې څيزونو کل اکثر | هم د کل خلقت زمونږ دے په سرور
او احمد ئې کړ عزيز په خپل قرب خاص | نو خود کل واړو څيزونو په اخلاص
ګاوه فخر ئې زمونږ په رسول پاک | بلکې فخر د زمين او د افلاک
هم د کل خلقت چې فخر پاک سرور | په خپل ځان باندې چې وليد مقرر
لکه هسې دي وئيلي پاک رسول | په سرستر ګو مې ويل دده قبول

## انا اول من تنشق الارض عنه ولا فخر

## ولواء الحمد بيدى ولا فخر

اول هغه ځوک چې پاڅي به د قبر | هغه زه يم نه کوم په دې فخر

او بېرغ د حمد په لاس کښې دے زما — نه کوم پرې باندې فخر کم سوا

بلکې دا څيزونه واړه سلامت — کوي فخر په ما باندې هر ساعت

هميشه کم په لوئې فخر کوي تل — لوئې په کم نه کوي فخر څه بالکل

او دا تول په ما نازش کوي هر څيز — چې زه ئمه په دا واړو کښې عزيز

زه نازين مه په هغې قدسي ذات — چې زما دے مکرم معزز زيات

چې مې مراد دے ترې الله پروردګار — چې خالق دے هم رازق د هر جاندار

دا سبب وو په معراج د پاک حضرت — په بوتلو د اسمانونو نوته اوچت

ورته عجز ئې د کل پيدا اُنښ صاف — بنه ښکاره کړ په کښې نشته دے خلاف

تول عالم ئې دورغوې په مثال — د خپل دوست د قدم لاندې ذوالجلال

کړ ښکاره ورته عيان د موتې خاورې — ورته شول لکه عيان د پوتې خاورې

چې په ده باندې په ورځې د قيامت — بنه آسان شي پرې کول د شفاعت

بعضې وائي چې هر کله پاک سرور — تشريف قاب قوسين نه برابر

نو رب ووې ورته تول امت ستره — د اولاد دې رحاطې کښې به ښکاره

همه واړه به وي ستا د قدم لاندې — ستا قدم به وي په واړو خلقو باندې

د قدم مبارک ستا چې ده دا خاوره — نو که چرې په قيامت له مانه واوره

چې په قدر د دې خاورې د قدم — خپل که وعوارې زمانه په کوم دم

هيچرې به منع نه کړم لره طمع — اے حبيبه زما اوسه خاطرجمع

زړه خوشحال لره کوه همت په ځان — په دې باب کښې به له تا سره عيان

په دې باب کښې تا سره په کم وزيات — هيڅ نيکي مضائقه نه کړي پاک ذات

**شاد محمد** اوسه خاوره د قدم

د رسول مقبول په شرع اوسه سم

په لقب دے مُلقّب حبيب د رب — دا مطلوب کړه د مطلوب خپل کړه طلب

# حکمت نولسم[۱۹]

نولسم حکمت معراج کښې د سرورؐ     واڼۍ دا دے اسمانونو نوته پاس بر

چې هر کله د رسولؐ چې الله نور     د تمام خلقت اول چې پاک غفور

د نور خپل دا حدیث ئې دا بهر کړ     درې مقام ئې دده نور ته مقرر کړ

د هیبت مقام اول دے لا ثاني     او دویم مقام د لطف امانئے

او په دې مهربانۍ د لطف تل     بل دریم واڼۍ مقام د قرب خپل

نو زد کاله ئې په مقام کښې د هیبت     وساته چې ادب زده کړ پاک حضرتؐ

او زد کاله ئې د لطف د کرم     په مقام کښې وساته فراخ خرّم

په مقام د قرب کښې وساته زد کاله     چې الله سره ئې الفت و نیو خوشحاله

نو هر کله چې هغه نور د روح صاف     له مقام نه ئې د قرب نه په اطراف

کړ د نه ئې په جسې د قالب پاک     د رسول مقبول لائق د تاج لولاک

نو دا روح شه بیا مشتاق د قرب مقام     او دا رنګ شه بېقرار او بې آرام

لکه اوړ چې سرے بل کړې دے اوچت     او کوي پورته اوچت دے حرکت

یا مارغه د باغ صیاد چې کاندې صېد     په پنجره کښې ئې د ننه کاندې قېد

لکه دے غوزدوي زمکې ته خپل ځان     د اصلي وطن په شوق وي سرګردان

خود ضرور وي بېقرار د زړه په نیت     ځان روباسي د پنجرې نه هر ساعت

نو دا رنګې نور د روح د پاک سرور     هم په شوق د خپل وطن اصلي اکثر

بېقراره هم بېحده بې آرام     او یوا ځې روح د قرب په ځاے مقام

بې بیولو دید ن نه کم و زیاته     وجه نه لرله هیڅ څه بې حیاته

دا سبب که نور د روح د پاک سرورؐ     ترې بیولے وے پاک رب غني اکبر

نو قالب به ئې بې روحه د رسولؐ     پاتې شوے به وو پاک نبي حضرت

۶۳

نواه مخواه يې نفس دده په دا سبب — هلته بوته په دا سر غني پاک رب

او هر کله چې يې نفس لذت بېشمار — د مقام د خوشحالۍ بيا موند بسيار

هم په هغه ځاۍ کښې خوښ شه په لذت — هسې وې وښيل چې دا د بې نهايت

ځاۍ دې شه چې بل هر ګز نشته بېچرته — له دې ځايه نه ځم هيڅکله په بېرته

نو د رب نه ورته وشه دا خطاب — اې حبيب يې قريب زما ثواب

چرې ته که طالبا نو ته ضرور — په طرف زما لار ونه شاې حضور

نو به څوک ورته بيا شاې زما لار — څو ونه شاې ته لار زما ستار

او که چرې دروازې د معرفت — زما وارو عاشقانو ته په نيت

ته پرانځې نو څوک به دروازې — بې له تا نه به يې پرانځې په مزې

# سبيل تمثيل

د بې تمثيل ته اې فقيره غور کړه ساز — د رسول مثال په مثل دے د باز

لکه باز په زر دوچه واخلي ښکارې — او په دا رنګې کوې پرې ښکار جارې

يا په مثل د چرچنې ما مرزه — ديوې پېسې قيمت نه وې عاجزه

نو رب ووې يا رسول ته يې باز — بلکې باز زما د سرې او د راز

او زه غوارم چې په تا ياندې دا کار کړم — او يو څو چرچنې زه در باندې ښکار کړم

لکه مراد ددې چرچنو نه امت دے — نو هر کله چې دې دلته پاتې نيت دے

نو امت به دې څوک دلته راولي — په څو ول زما د لار به يې څوک پا لي

اې فقيره دې دنيا کښې پاک سرور — هم وو ښکار او هم ښکارې دوه برابر

د انا من الله د اشياڼې سره — د مارغه په شان د هغې خزانې ته

پرواز کړے وو ددې دنيا په لور — په مطلب د ښکار يې پرېښود هغه کور

يعنې زه ئم د جانبه د پاک رب — د ښکارې په شان ددې ښکار په مطلب

دالبرزے وو الله د اسلام دین ته / اوسره د نبوّت د تورو سپین ته

چې ددې دوارو جهانو پاک سرور / چار چاپېره الواته په برابر

شاه محمد ده اوسه ښکار د پاک حضرت

چې الله دې د خپل دوست په برکت

کل گناه د رته بخشش کړي بخشنده / که اکو یې د سر پښو په کښې گنده

(۲۰)

## حکمت شلم

یل شلم حکمت معراج کښې د رسول ؐ / اسمانونو ته دے دا دوست مقبول

اے فقیره هغې ورځې نه پاک خدا / چې دا واړه آسمانونه کړل پیدا

نو طبقې د اسمانونو یې په سپینو / آراسته کړلې په دې ستورو زرّینو

او دا میاشت یې د ذرّې ټکمې په شان / په قمیص فیروزه رنگ ددې آسمان

ښه پرې ونګوله پاک غني اکبر / او پندوسکے یې زرّین یل ددې نمر

په میدان ددهٔ کښې وغورزاوه صاف / پرې روښانه یې کړه کل واړه اطراف

او هم کله دا اسمان چې په مثال / د کشتۍ د مرغلرو هغه حالے

په گردش شه او د ستورو واړه فوج / په اسونو شوه سواره په اوج د موج

نو په شان د سیارانو د ظهور / بېرغ ودراوه په شین ځنګل د نور

نو هر یو به دوئي کاوه خپل خپل صفت / او اعلی تره له دوئي نه شرشدت

د سپوږمۍ د تمر جگړه واقع شوه سخته / کله لاس به دې سپوږمۍ له خپله تخته

د اول آسمان نه لاس به یې کړ بر / په جگړه په لمن واچاوه د نمر

کله نمر به د قبّې چارم آسمان / د سپوږمۍ به یې په لاس ونیو گرېوان

او دا اوږد یې کړ لاس د عداوت / د سپوږمۍ گونبا یې ونیوه په نیت

سپوږمۍ وې زه یم سلطان د ملک د شب / شهریار به د رقمر لرم لقب

او هر کله چې زنګي د شپې تورتم — د مجرې د مغرب مخ ښکاره کړي سم

تورڅادر چې شپه په سر باندې کړي نور — هغه خېل د مغرب پرېږي دي خالي کور

نو دستورو همه وار ه د کاندار — د دنیا رخت د اسمان ئې په بازار

خرڅوه به دوئ ضرور د دنیا رخت — دکاندار د دې ستورو په یکلخت

خطیبان د منبرونو دا د نوس — په مجلس کښې دا خطبه ایات حضور

په نامه لولي زما خطیبان زیات — د خطبې په مثال دا درب ایات

## يُخْرِجُهُمْ مِنَ الظُّلُمٰتِ إِلَى النُّورِ

یعني زهٔ خارجوم د ځاۓ د تیرې — مؤمنانو لـه د کفر د تیرې

په طرف باندې د نور د ښهٔ اسلام — را و باسم د تیرې په ښهٔ هنګام

هغه وخت چې زهٔ په تخت د سلطنت — تاج په سر مرصع کېږدمه اوچت

او څادر ملمّع ښه د نور په ځان — زهٔ را خورکړم کښېنم زهٔ سید ر سلطان

نو زحل په بلند ترځاے کښې څادر — اطلسي یاقوتي شان باندې په سر

اچولي وي زحل په لوې مکان — او څادر ښهٔ اطلسي یاقوتي شان

کهٔ شمه ئې د لوئې دېرې اکثر — او آئین د سکونت ئې سراسر

بلندیه د برج اووم کښې ئې مقام — دي نیولي په خدمت زما مدام

ملا تړلي وي هېش مې په خدمت — کهٔ اګر په اووم برج کړي سکونت

مشتري شاهي اغوستې وي لباس — او په تخت د سلطنت د قضا پاس

ګولي ده تکیه په ډېرا خلاص — رسوي زما هر حکم په عام خاص

او مریخ د غلبې په لاس خنجر — دے نیولے د الماسه ډېر تېز تر

او نېزه په سست سلیم ښهٔ زنګاري — سمه کړي ده کوي مدد ګاري

په مدد زما ئې غشي د تقدیر — په لینده باندې ئې ایښې د تدبیر

اوشکست ئې دے دشمن لره ورکړے
د طاعت زما پهٔ غاړه لري پړ ے

زهرې تنبل د وهلو پهٔ اختیار
پهٔ مجلس دخوشحالۍ هَوَس بسیار

اوپهٔ لاس باندې نیولے دے ضرور
دق مجلس کښې دهوس او د سرور

پهٔ نغماتو دلنوازو وایي غزل
خوش گفتاره خوش الحانَ خوش منزل

عطار دسره د مال د لوټ عیان
پهٔ دبلي کښې دے دینهٔ گوهر پهٔ شان

ښکې نه د مرغلرې پهٔ مثال
اوپهٔ برج کښې د اسمان پهٔ تخت خوشحال

پهٔ درجه د دیوانۍ صاحب دفتر
چې پهٔ دې درجه دے مانه مقرّر

ښکاره کړي ې ده مانه خوشحالي
د ببرۍ کښې بالکل نهٔ لري سیالي

معشوقو بنات النعش ده گویا
او مجلس سلاح دارانو د ثُرَیا

ملا تړلي وي زما د تخت د وړاندې
لري ځان زما د حکم د لاس لاندې

نوکرانو د دربار زما مراد خپلے
لا شطرنج ئې کړے نهٔ وي د یو بل

د سبا بېرغ ناگاه د مشرق لورته
پهٔ دبدب اوپهٔ قوت شي زد رابوته

قراول سیمین کلاه زرین قَبا
د جمشید د دې خورشید ښکر زیبا

د پودې د کنارې د دې آسمانے
پهٔ قلعه زبرجدي وکړي جولان

او د نور گوټې د ستورو د گردون
پهٔ پیاله کښې د فلک تېز روه یُون

حکمتیانو د آسمان قمار خانې
همنشین همه تمام د کارخانې

د ملکو غورزولي وي پهٔ نام
زما و تبنتوي لوټ سَره تمام

او میدان د دې آسمان د قوج ښکر
د طالع نېکي زمانه سراسر

چې خالي زمانه پهٔ تدبیر
چې سپوږمۍ هر کله وکړه تقریر

نو سلطان فیروزه بخت د روز آفتاب
منور او جهانگیر او عالم تاب

د سپوږمۍ پهٔ رد کولو د دې سوال
د زبان طوره کاټه نه ئې فی الحال

بهر را ښکه د کار نټه د امتحان
دا ئې ودې هغه ورځ چې پاک سبحان

مرغزار ئې نوراني د حد بسیار
د اسمان د ے پیدا کړے پاک ستار

دا زما دا س د پاره د دولت — دے جوړ کړے چرا گاه د سلطنت
د مشرق د طبیلي نه سر بهر کړي — او سره د زرّین سازه لا شاني
نور و سیا د لښکر د فوج ضرور — د سپاته حکم ورکړم دا ظهور
دا وارهٔ کانڼي د ستورو پهٔ دا حین — ددې ځائے د مرغزار د سبزه شین
چې دے ځائے د ځرپد و زما دا س — د دولت واره را تمول کړي پهٔ چل دسۡ
نو حتيچې مشتري منشي د بیں — چې صاحب دے د دفتر عجب تقریر
د ملکو د اسمان دے برابر — دا دعوه د فریقینو ټې سراسر
و لیکله دا جګړه د دوئ تمامه — او وکیل د حکم خدائے ته ئې د ناکامه
و سپارله نو جانب نه د پاک رب — مشتري ته حکم وُشه دا عجب
چې د دا رنګ مشکلاتو سختو حل — ملتوي ولړهٔ ځان څخه یو ځل
بلکي زهٔ به شهنشاه د ولایت — او د شرع شریف هم د شریعت
یوه شپه به ئې سور پهٔ اس باندې دنور — او پهٔ دې مانهٔ زریني به ئې ضرور
زهٔ را وخېژوم چې وکړي تحقیقات — او پهٔ عدل چې دا کل مقدّمات
چې جُزیه کلیه څو ذره کاله صاف — او پرتې وې دا همه پهٔ اختلاف
زهٔ پهٔ رائې جهان آرائې د تسلّي — د هغه باندې به کرمه فیصلي

شاد محمدؐ چې پیشوا لري رسولؐ
چې پهٔ درد دے درحیم رحمان قبول

ځان غلام لره پهٔ صدق د سرورؐ — خدائے به خبر کړي چې ځان نهٔ کړي لروبر

بیان د څو اشاراتو مجملاً چې د واقعې د بیان د
معراج نه روميے په تفصيل سره هم څو خبرې
عام خاص ته اَوُرَوُم ۔ او مانبې ددې کتاب پلندبیان
لکه چې بناېې تمام به کړم ۔ وَبِاللّٰهِ التَّوْفِيْق ۔

يوه شپه دا چې جبرائیل علیه سلام ۔ دا دلته په حکم راغے زر تمام
او د پاره د طلب د پاک سرور ۔ او براق د اشتیاق ئې بنه په در
د حجرې د پاک رسول یې ودراوه ۔ او صاحب ئې پرې زمونږه سوراوه
نو زمونږ صاحب قدم خپل د همت ۔ په رکاب د براق کېښود ده دولت
او پوښتنه پاک سرور آخرزمان ۔ جبرائیل نه هسې وکړه په دا شان
چې ما بیا ئې په کوم ځائے په کوم طرف ۔ جبرائیل چې په دا سوال شه مشرف
جبرائیل ووې چې اے درب رسوله ۔ په درګاه د پاک ستار غفار قبوله
او د هلان ددې اوو وارو سرایونه ۔ هم لري هفت منزله د آسمانونو
او په هر منزل کښې څوڅو دي مجلسه ۔ منتظر د راتلو ستا دي زيات تراوسه
انتظار د قدم ستا کړي زيات تمام ۔ نو زمونږه پاک سرور عليه السلام
تازیانه د همت ونیوه په لاس ۔ په براق برق رفتار سور شه زر پاس
او هر کله چې سرور آخر زمان ۔ چې ور ورسید په دې اول آسمان
نو سپوږمۍ له یې پښتې د نیک بختۍ ۔ ورکړي لري کړې ترې کل واړه سختۍ
سپوږمۍ کله په درجه شي د هلال ۔ کله بدر په درجه شي بې مثال
په ځواځه په نو خپرنه په استقبال ۔ راغله واګه یې د اس ونیوه فی الحال
سپوږمۍ ودراوه براق د پاک رسول ۔ ورته ئې ووې چې دا سوال مې کړه قبول
کور مې خپل آراسته کړے دے په نیت ۔ ما څخه وکړه دمه یو لک ساعت

متور د نور انورخپل نه مې کور کړه ‌ ‌ ‌ پورته داغ زما د زړهٔ نه د غم تور کړه

چې لاسونه د لمنې نه د غم ‌ ‌ ‌ خپل کړم پورته د دېر غمه پهٔ دادم

ورته وُوئیل زمونږ نبي سروُر ‌ ‌ ‌ منزلونه راته ورانه دي دي اکثر

ماته مخکښې ورانه دي شته دے منزلونه ‌ ‌ ‌ راته پاتې نور دي واړه آسمانونه

فی الحال وایه هرچې وايې وایه زود ‌ ‌ ‌ سپوږمۍ ووې اے محبوبه د ودود

زهٔ رنګریزه د سپرلي یم د دُکان ‌ ‌ ‌ کاریګره هم زهٔ یم د نوې مکان

هم رنګونه څوڅو زړه قسما قسم ‌ ‌ ‌ دې دبهار کښې د ګلونو اسما اِسم

یاد ونو د میوُو دے رنګ تجبیر ‌ ‌ ‌ نو دا ټول دي د جلوې زما تاثیر

هم ترونکي یم د نقش کامل تره ‌ ‌ ‌ هم اوستاده اوهم یمه کاریګره

نو صاحب ورته زمونږ ووې دا کرم ‌ ‌ ‌ اے سپوږمۍ نهٔ لرې هیڅ قدر له شرم

دا څې ورانه دي کوته رخت عرض کړې ماته ‌ ‌ ‌ چرې ته وې رنګ ورکړونکے کم و زیاته

د دکان د سپرلي زهٔ هغه عامل یم ‌ ‌ ‌ ورکوونکے د رنګ هم استاد کامل یم

چې د دوو اویا رنګونه یو د رنګ ‌ ‌ ‌ او د دوه اویا فرقونه بهٔ زهٔ رنګ

دامت خپل نه به زهٔ کړم رابهر ‌ ‌ ‌ او هر څوک چې ستایهٔ شان وې قوال تر

استاده خپلې برانځې ته دکان ‌ ‌ ‌ او هر څوک چې استادي کړي ستایهٔ شان

پهٔ مجلس او پهٔ محفل کښې د فلک ‌ ‌ ‌ او پهٔ جمع پهٔ مجمع کښې د ملک

تهٔ دُرې به د وَانشَقَّ القَمَر[۶۵] وخورې ‌ ‌ ‌ خپله غوښه بهٔ د ځان برابر وخورې

پس له هغې د دوېمې قبې نیست ‌ ‌ ‌ نو دوېم آسمان ته وکړ پاک حضرت

عطارد ..ې برابر شهٔ پهٔ نظر ‌ ‌ ‌ چې همه دیوان خانه تمام دفتر

ځان ته اېښې دي دا مرتهي ورانه دي ‌ ‌ ‌ د تمامو اسمانونو لانه دي پانه دي

کله سوکې د قلم پهٔ تور دریاب ‌ ‌ ‌ د تدبیر کوښه د شپې بهٔ یې پهٔ شتاب

د خالصو مښکو رابښکله د شب ‌ ‌ ‌ او پهٔ سوګه د قلم پهٔ خپل مطلب

ګاه ګهې د قارورې نه د کافور ‌ ‌ ‌ پهٔ زرین سلاځې سپین نقش ضرور

دیباچه باندې د ورځې په قلم    نقش سپین ظاهر وه د ورځ رقم

نو هر کله عطارد چې کړ نظر    په براق برق رفتار د پاک سرور

عطارد د رسول وکړ استقبال    ورته پیش یې کړ د عجز دا سوال

په جونګړه کښې زما یو بل ساعت    دمه وکړه دا په ما دے شفقت

چې خپل عرض درته وکړمه تمام    ورته ووې دا رسول علیه السلام

عطارده فی الحال وایه هر چې وایې    معطلي ده زما ګرانه په دا ځایې

عطارد ووې د فتر دیوان خانه    چې د صدر د فتر کل آسمان خانه

دي زما هم کاغذونه فیصلې    د ملکونو واړو زه کړم تسلې

شي لیکلے په قلم زما تمام    ده کنګره د برج جوزا زما په نام

د وړو لویو افعالو جواهر    دے د بلي کښې د حکمت زما ظاهر

کاغذونه د کمال د فضیلت    په نامه د صاحبانو د حشمت

زه لیږم د فضیلت او د کمال    په نامه د هر صاحب د جاه جلال

اوس خدمت کښې ستا په شابه د قلم    د سرخیل ته به زه جوړ کړمه قدم

نو زموږ نبی سرور آخرزمان    عطارد ته هسې شان وکړ بیان

چرې صدر د دیوان او د دفتر    د اوو واړو آسمانو برابر

که لړے چرې تا دیوان د صدر    عطارده ځان په دا ته کړې په قدر

نوکرم سبع مثانی[66] د رب سبحان    چې دي تخت د کاغذاتو د قرآن

زه لرم د کاغذاتو قرآن تخت    تابعدار دي د دې تخت تمام نیک بخت

که کنګره د جوزا برج ده په نوم ستا    عطارده دا دے خیال فکر اوم ستا

نو باغونه د اتو کل جنتونو    هم د سلو زرو حورو نعمتونو

او مانۍ د باغ د هر جنت بهتر    دي په نوم زما کمتر د یو نوکر

نعمتونه د هر یو جنت تمام    مقرر دي د نوکر زما په نام

نو لا تا د خزانې ته د عدم    سر دِ نه وو ښکاره کړے په عالم

چې اول ما خلق الله نوري | لم يزل ما خلق الله نوري

او اول کل پيدائش نه دستار | نور زما وو پيدا کړے کردګار

مېلمستيا عالي عزيز طعام شراب | وخوړلے ومې ځکلے د ثواب

نو په دې ځېز عاجز ستا باندې ضرور | ځوک سرښکته کړي په مثل ستا حضور

د براق واګې ترې پاک نبي سرور | وه وهلي عطارد نه برابر

او د دريم آسمان ته راغے پاک حضرت | زهره يې وليده په ډېر عيش و عشرت

چې سرود د خوشحالۍ يې وو جوړ کړے | خپل مجلس يې په سرود وو ښه موړ کړے

په سرود او په نغمو طرب انګېزو | همه پېغلې يې دستورو د نوخېزو

وينې کړي وې د ښه خوبه شيرين | او تمام سبز پوشان د آسمان شين

د اوازه زړه ايستونکي وړونکي خپل | سرخېږو باندې راوستے وے بالکل

کله کله به يې د نمر د قلم سر | عطارد خپلې دائرې له د چنبر

او اوبه به ورکولې ورته وراندې | کله کله به يې په ډېر تاؤ د نمر باندې

تو دَ وله به يې ځرمن د تمبل خپل | مشغولا يې وه سرود ترانه تل

او هر کله چې آواز د بزرګ قدم | د رسول مقبول په غوږ شه ددې سم

نو زهرې د خوشحالۍ نه د صفت | دا بېتونه کړه بيان د پاک حضرت

اے چې دوه کونه فدا دي د قدم ستا | آسمان نه رسي درجې ته د کرم ستا

مرحبا په کوځه راشه د فقيرې | چې د زړه دستر کو جوړ کړمه حرم ستا

پاک سرور واګې د اس راښکې في الحال | ورته يې ووې چې هر څه لرې خپل سوال

في الحال وايه په د ښلو کښې تلوار کړه | عرض معروض خپل په تلوار راته تکرار کړه

زهرې وې بالا خانې د سلطنت | دي په لاس مې د دريم آسمان د چت

او سرود د سرود يانو برابر | د ګنبد د آسمانونو سراسر

د نغمو وارو زما دي د لاس لاندې | دبدبه د حکومت پرې زما باندې

مُلَمّع زرّين پوشان د عبادت | د هُمايونو لويو واړه امانت

د سرود سره دي زما په رقص سر
او د کل عبادت کا هو سبلند سر

هم د ستورو تمام واړه مجلسیان
اشرفه او روپه خپلې د خپل ځان

څودزدي واړه زما په دابره
په نن شپه به دا ټول واړه زه زهره

د قدم مبارک ستانه به قربان کړم
دا لا څه دي اول ستانه به خپل ځان کړم

نو سرود په اشارت نرم سُره
جواب ورکړ دي زهرې نوره ښکاره

۶۲

اے زهرې په دې نغمې بې نفعې ستا
هغه څوک به پرې غولیږي هم خطا

زهره ولې چې لري څوک په خپل کور
هغه کس به څه حاجت لري په نور

چرې ته که د سرود دولس مقامه
او څلویښت راګه واړه نام د نامه

د نغمو او د اواز لري سنبال
زهره والے دے زما د پوره کال

دولس میاشتې دي او دهره میاشت تیاره
دیرش دیرش ورځې ده پوره د خپله شماره

هره ورځ او شپه څلویښت ده ساعته
او همه نمونځ ګذاران مې د امته

۶۸

چې دوه دیرشو رکعاتو سازیه ستا
زما دا رنګې حلقه د عجز نیاز

او چې ونځوزدي هر نماز ګذار
چې په هر دوه دوه رکعاتو کښې ستار

سل سل زره مرغلرې د رحمت
ډیرې به ئې په لړه کښې د همت

د پاکوالي اشرفه روپه سل زره
کړي قربان په سر د عفوې دده غوړه

اے زهرې دا اشرفه روپه ضرور
چې په لاس دګه ادا عجز حضور

تا راوړي زه به ئې څه کړم دانا کاره
دبراق واګې ترې وه د هلې دواره

څلورم قبېته ونوت د آسمان
نو جمشید ئې د خورشید ولید عیان

قطعه کړونکي د آسمان د میدان ولید
نور پاسونکي ئې په واړه جهان ولید

او سل سل زره نیزې روح اخیستونکي
د نور وړاندې وروستو وې ترې ځلیدونکي

د شعاع او د جلوه نه د قمر
او د دا رنګې جمال حسن بهتر

په پرده کښې پټه شوې وه د شب
او مریخ ئې د ګرمه وو جان په لب

هم سره د بنه غباره ذر نګار
جوشیدو کښې وو را غلے په تلوار

او دسل ذرو کونګرو د سپینو ذرو
ځخیرونه دخپمې ذرّین سل ذرو
اویزان پهٔ طنا بونو وو سنبال
دخپمې د ذرو سپینو عدم سیال
او هم واګه د تعلق ده نوربسیاره
د خلط والي وشلولي د اغیاره
نو هر کله د تشریف شریف خبر
د راوړلو د رسول خپرا لبشر
ورته وُرسیږد د پاک رسول فی الحال
پهٔ دوو داغه د رسول پهٔ استقبال
رباعي یې کړه پیشکش د پاک رسول
پهٔ هغه محبوب رسول درب مقبول

# رُباعي

اے چې پنګه دې تل عشق رحماني دے
عرش عظیم دې د لوړه کله ثاني دے
چې دې قد د نور لطیف نه لري سورے
نمر د سوري لاندې ستا کل اماني دے
بیا دوهمه رباعي ورته دا نمر
پیشکشي کړه پهٔ حضور د پاک سرور

# رباعي دوهمه

ذرهٔ غلام مې ستا د زلفو بند پهٔ دام ستا
د آبدارو لبو ستا مې روح غلام ستا
ما تشنه سره د وصل کهٔ لږ کښیښې
ذر فدا مې ځان او روح دهر کلام ستا
رسول واره دو خپل محمّٔ مبارک نمر ته
ورته یې ووې منزلونه مې دې سرته
او د وراندې آسمانونو شته منزل
چې څهٔ واېې وایه نشته دے معطل
نمر وې زهٔ یم شاه د تخت چارم آسمان
هم دوارو اسمانونو یم سلطان
کهٔ زما چرې دا ځله نهٔ وے نور
پهٔ دنیا باندې پهٔ هر اشیا ضرور
پهٔ ذرهٔ تنګ کښې به د کانې برابر
کانې څرنګ به خلعت یاقوت اَحمر
آغوشتهٔ به یې احمري یاقوت خلعت
پهٔ تنګ ذرهٔ دکانې کانې د صفت

او عقیق په شان د ګل چې آتشین ... د یمن د باغ لائق د ښه نګین
د عزت سبب یې زه غني پاک رب ... ګرځولے زه الله بمه سبب
سرو طلاو ته جامه د غوړي سره ... بدکې زه اغوستے وم ورته ګره
او مېوې و نو کښې زه پخوم تل ... دا طاقت راکړے رب دے نه چې بل
او د ژمي په یخنه کښې کوزو پاس ... د زرنفتو زرّین ښه ګرم لباس
یخ و هلو ته زه اغوستے وم سنبال ... ګرم د ظلمه د سړو نه فارغ البال
حاصل دا چې که هر څه لرم د ځان ... ټول به ستا د قد مونو کړم قربان
رسوّل وُوې ورته دا په خاطر جمع ... آسمانونو د قلعو که ته یې شمع
او زه نمر د اسمانونو دلواک یم ... دوست محبوب رسوّل هم زه د الله پاک یم
بېرغ دار هم د اسمان د جلالت یم ... هم سلطان زه د کاروان د رسالت یم
ځکه چې نمر د نبوت زما تمام ... د آسمان د څوا نمر دی نه د اسلام
بېرغ وُ دراوه د ښه اسلام د دین ... سیاه زړونه په لیدل شو دده سپین
د ځنګل د ګمراهۍ سر ګشتګان ... جهالت نه د تیرو خلاص شو لو امان
او د لار د ګمراهۍ نه امانت ... شول پیوست د مصلي د هدایت
بلکې اے نمره ته صاف د دال په شان ... په پرده کښې د وریځې شي پنهان
چې یو غشے د شعاع ترې نه بهر ... را و یستلے نه شي مه بوله ځان نمر
او نمر زه یم نمر روښن د شریعت ... له پردې نه به زما د طبیعت
ته به څه و کړې سبقت زمانه وایه ... نمر دو ښان د شریعت یم زه له خدایه
دا یې وُوې نو کمیت د سلطنت ... پاک سرور کړ په جولان او په لغت
د مریخ په منزل راغے په یو آن ... چې سلطان وو د پنځم فلک آسمان
وا ګې را ښکې د مریخ په ځائے مقام ... پاک حضرت زمونږه ولیده بهرام
چې خنجر د غلبې یې وو په لاس ... او نظر چې په سرور وُ لګید پاس
په تلوار سره او چت شه په شتاب ... بوسه زن شه په ډېر عجز د رکاب

بهرام بنکېل کړ زر رکاب د پاک رسول ... ورته ووې دا د رسول په رب مقبول

اے بهرام خه فی الحال که لرې عرض ... په تلوار ئې دې وېل دربانديې فرض

مریخ ووې چې زه یم سپه سالار ... د بنکر د فوځ د ستورو برقرار

او هم زه یم پهلوان د پنځم صف ... هم صاحب د فوځ لښکر په هر طرف

هم صفدر په مېنځ د ستورو برابر ... او وهونکے هم د تورې سراسر

قتلوونکے د دشمن په احاطه ... آسمانونو کښې یم زه باضابطه

پاک سرور ورته زمونږ ووې دا صاف ... اے قاتله ته نه لرې انصاف

ظلم کښېږه ته ځله په شمشیر ... خونریزي بې انصافي کوې پرې ډیر

منصفانو سره جنګ ته په هر دم ... کوې تل د جفا جور د ستم

که اګرچرې ته طاقت توانے ... په نېزه باندې دخپل تېره زبان

په زړګونو د ګناه کفر مرده ... په مېدان ئې کړې ژما په شان زنده

هم ئې زر په رابللو کښې هوښیار ... زدکړه وګرزوه زدکوه متلوار

دا ئې ووې زر بدل ئې کړ مقام ... په خپل ځاے باندې ترې پاتې شه بهرام

رسول راغے په قبه شپږم آسمان ... مشتري ولید سرور آخرزمان

مدرسه کښې تکیه د حکومت ... نګولي وه په تخت د سلطنت

په مقام کښې ئې د ځان خپله رضا ... وه سپارلي په الله سره قضا

او سنګین د حکومت ئې ووپه لاس ... او خادر د عدالت ئې په شا پاس

اچولے وو په شا باندې سنبال ... سرېکار ئې وو د عدل هر محال

هرچې زبرې د قدم د پاک سرور ... په غوږونو د برجیس شه برابر

نو رکاب ئې کړ زر بنکل بلاتکلیف ... د سردار د شهنشاه شرعي شریف

ورته دا دباعي نذر مشتري کړه ... په وېل دربا عي ژبه جاري کړه

# رُباعي

دواړه کونه د طفیل ستا د قدم دي
د مسیحؑ معجزې ستا د نفس له دم دي

د کرم له تانه ډک ملک ملکوت دے
فوق تر عرشه هم آثار ستا د علم دي

بیا ئې ووې اے درب په در قبوله
شهنشاه د مرسلانو اے رسوله

یو ساعت په همایون شمع رُخسار
کور تیاره مې منوّر کړه په دیدار

پاک سرور ووې هر څه که کړي سوال
راته وړاندې کړه معطل مهٔ کړه فی الحال

چې تمام مقرّبان د مقامونو
د پاکه په انتظار د قدمونو

دي زما په انتظار واړه تمام
مشتري ورته بیا دا وکړو کلام

چې قاضي یُم زهٔ د ملک د آسمان
هم شاهد د انصاف عدل په ښهٔ شان

په مجلس کښې د ملکو یُم زهٔ صاف
یُم قاضي د عدالت عدل انصاف

او کاغذ دے د قضا زما په نوم
واقعه د کاغذاتو ښهٔ معلوم

د فتوې ظاهر احکام کښې زما
په مجلس کښې د ملکو د سَمَا

رسول ووې کله قاضي د ولایت
د آسمان ئې ته کوې قضا حکمت

زهٔ بادشاه او معلم د ښه مکتب
الرَّحْمٰنُ علم القرآن کړمه پاک رب

او قرآن حکمنامه ده زما ضم
او هم فرق د حق باطل د کاږهٔ سَم

دا دستور دے همیشه زما په خوښه
او بېرغ د شریعت ده زما نخښه

بېرغ نخښه ده زما د شریعت
دا بېرغ دے بزرګ زما د وراثت

او بېرغ د وراثت علامه بزرګه
ده زما د علامت علامه بزرګه

فتویٰ څه څیز دے زما دے شریعت
تقویٰ څه څیز دے زما دے طریقت

دنیا څه ده ځاے زما د عبادت دے
عقبیٰ څه دے ځاے د تخت زما روحت دے

مولیٰ څه دے دے مقصود زما مقصود
پس له هغې د تلونیت ئې وکړو زود

يو ساعت کښې په تيه اووم آسمان
رسول راغے د زحل په ځلے مکان

کيوان وليده زمونږه پاک سرور
تاج يې اېښے وو جوهر نګار په سر

او خادر يې وو په شا په شان د برق
او مريخ يې په خدمت ولاړ وو غرق

ووه ولاړ توره اېستلي په لاس چاق
تېز بنکاره شه د رسول ورته براق

زحل ذوق کړ د رسول په استقبال
دا ابيات يې پيشکش کړل ورته في الحال

# رُباعی

غلامان اووه افلاکه دي د درستا
د خرد ستر ګې دنيا شوې په نظر ستا

که هرڅو مې په اووم آسمان کښې ځلے دے
زه د زمکې په شان کوز يمه نوکر ستا

نو سرور خير البشر آخر زمانے
هسې شان حکم يې وکړ هم فرمان

چې مقصود زما ختل دي پر محل ته
نه حلوا لے وو زما کور د زحل ته

القصه لاس يې د درد په تندي پاس
د آسمان په هودج ناستوي کښېښه لاس

بدکې اس يې د همت د برق په سېر
د اوو دارو آسمانو يې کړ سېر

لکه شيخ نظام الدين عليه رحمت
په فارسي کښې دا حالات د پاک حضرت

بيان کړي دي چې مثله لا ثاني
ما غريب ترې ترجمه کړ افغاني

محمد صلی الله علیه وآله وسلم چې په براق برق رفتار
نفه اوراق د اسمان قطع کړه يو وار

منزلونه د اسمان يې واړه پرېکړه
په شهپرو د براق د شاه په لار

ګوره مياشت يې خاص د خط د حمائله
کړه سر سبزه په خصلت بنه بزرګوار

عطارد يې په براق د سپينو زرو
خاص په لطف يې ملکي کړده ابدار

په زهره يې د فروغ د مهتابه
برقع را بښکه سيمائي ګوهر نګار

چې په تخت د څلورم آسمان سلطان شه
زرين تاج کښېنود نمر په سر سردار

په شين پوش يې خليفه جوړ د ما بنام کړ
او بهرام کړ سرخروي هغه شهسوار

زړه سره د مشتري په برج د قوس کښې — په منډل یې شه د لطف د سټېردار
چې کیوان یې د رکاب بوس د قدم بوس شه — په عنبرو یې بېرغ شه استوار
چې حېران یې په خرم باد سیا شه — د کښېنو نهه آسمانو لارې هوار
دا دے نقل چې هم کله پاک رسول — د اووه آسمانو تېر شه بېلا نول
پس له هغې د درګاه درب جناب — جنتونو ته یې دا و شه خطاب
چې اے وارد جنتونو دا ساعت — په ښه شان کامل د ځان بوره کړي زینت
په راه ږو کښې د نظر فیض اثر — د محبوب زما ښکاره شي برابر
که نور څېره نا ستو نکي په ښه شان — د اووه وارد آسمانو بېل بېل ځان
چې یې و لید هٔ عالي همت بسیار — د حبیب قریب زمانې دو یټدار
تا سې هم و ګورئ حال مې د حبیب — چې په څه شان دے زما سره قریب
جنتونو کړ په سر د نور څادر — هم جامه روښنه یې وا غوسته د زر
او رانجه د تا وو یې کړه په سترګو پورې — رنګ ګلګون قدسي یې ومښه په مخ ګورې
او خپل ځان یې په جلوه کرشمه ډېر — پاک رسول ته یې ښکاره کړ په دې خبر
نو حضرت عالي همت څه کم و زیات — ورته و نه کړ نظر څه کم و زیات
جنت ووې ورته یا پاکه رسوله — په درګاه د قدسي ذات الله قبوله
په کمال حسن جمال سره رضوان — هم هغه دے برابر زما دربان
استبرق سندس سره د لطافت — د پاکه دے فرش زما بالا او چت
او ښهرونه او مانیه لرم د نور — هم په لو ښو کښې لرم شراب طهور
آسائش او خوشحالي زما اکثره — تا ته صافه ده معلومه سراسره
نو د بې اتفاقه دے څه سبب — چې رسول را ته و نه خوځوو لب
نو حضرت ورته دا ووې اے جنته — د خپل ځان ډېر صفت مه کوه د نیته
او ښائست ما ته خپل مه ستایه بې شمېر — بیا ستا د کلیمې نه نه ده ډېره
چې غمجن د سر درد ده په خپل ژبان — چرې ووې یو ځلې هسې شان

# ثَمَنُ الجَنَّةِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰہِ

چې قیمت جنته ستانهٔ دے هیڅ زیات — کلیمې نه څهٔ زیات نفي د اثبات

جنت ووې یا رسولُ زهٔ جنت — کهٔ لائق نهٔ یم دا ستا د بندهٔ خدمت

حواله کړه ما د یو خپل خدمتګار — نا اُمید چې پاتې نهٔ شم د رویدار

نو حضرت وائي چې وُم د عرش پهٔ ساق — چې آواز مې د پښو واورېدهٔ چاق

نیمه شپه بانديې راته بلال حضرت — او پهٔ لوري پهٔ طرف د جماعت

نو جنت مې حواله کړ د بلال — جنت وُژړل او وې کړ هسې سوال

یا رسوله ما سپارې پهٔ داسې کس — چې اخښتے دے پهٔ بیعه پهٔ هوس

پرې ورکړے دے قیمت صدیق اکبر — د مکې ښځې ئې نهٔ قبلوي اکثر

نو حضرت ورته زمونږ ووې داشان — ته کوې دا رنګ خبرې پهٔ ژبان

کوم مېړه چې بلال څهٔ لري نیت — او څهٔ وائي قبلوي یا نهٔ جنت

نو تور رنګ د بلال ته ګورې څهو — مګر نهٔ پوهېږې ته هسې ضرور

چې تور خال او توري زلفې تار پهٔ تار — زیب د دېرو دلبرانو د رخسار

کهٔ هر څو مره توري زلفې وي تور خال — ښهٔ ښکارېږي زیب زینت دے د جمال

هر سحر چې بلال سر کړي پهٔ ګرېبات — پهٔ بازار کښې د سینې پهٔ هغه ان

رخت د درد چې پهٔ کښې وُغوړوي نحور — پهٔ سینې پاکې کښې سر کاندې ښکور

پهٔ روپوبه نه ضروربه پهٔ یو آه — پرې به داخلې سل جنته سحرګاه

او هر کله درد آمېز ژړا فریاد — چې درب پهٔ در کښې وکاندې آزاد

نو سُور او رپهٔ درد مندې سرې یوځل — پهٔ ملکو مقربو کاندې بُل

القصه هر کله غوښته د نکاح — د معراج پهٔ شپه پهٔ منځ کښې پهٔ صلاح

نکاح او شهٔ د جنت او د بلال — حضرت زمکې ته تشریف راوړ فی الحال

نو بلال حضرت له راغے برابر
سرئې کېښود پهٔ قدم د پاک سرورٌ

عرض ئې وکړ ورته یا پاکه رسوله
پهٔ درگاه د رب رحیم رحمان قبوله

اے صاحبه د لوئے ځائے د رسالت
او اے ستوریه د آسمان د جلالت

پهٔ طرف چې د لوئے د سلطنت
تشریف یوړو تا چې لاړې تهٔ حضرت

ستا پهٔ تللو پیاله لاس کښې دساقي شوه
دهر چا درجه پهٔ اوج د ترقي شوه

څهٔ سبب دے مرتبه زما د ځان
ده راشلې پهٔ زوال او پهٔ نقصان

پاک سرور ورته زمونږ ووې في الحاله
چې پهٔ کوم یوه معنیٰ سره بلاله

بلال ووې چې زما پهٔ شانې کس
ستا دیودید ار د پاره پهٔ هوس

د دنیا ناوې پهٔ درې طلاقه صاف
پهٔ یو دم طلاقوي نهٔ دي خلاف

او حواس خمسه ئې څېل د شش جهاتو
معزول کړي دي د واړو نعماتو

هم اوو واړو اسمانونه بزیات
د ذرّې قدر چې هم نهٔ کړي التفات

پهٔ څلور گوشه خېمې پهٔ کم سوا
د اتو جنتو څهٔ به کړي پروا

څهٔ پوره او څهٔ نیمگړې پرې سرکېږي
ځوک به څهٔ کړي جنتونه کهٔ ورکېږي

چې دیدار د الله غني ستار
جنتونه مې ذرّه نهٔ دي پکار

شاد محمدؐ د غلام او سه غلام
د سرورؐ خیر البشر خیر الانام

کهٔ د سپو پهٔ ځائے ئې راغلې پهٔ یاد
هم حاصل بهٔ دې د ذرّه ئې تمام مراد

## غزل در محمدت محبوب کبریا احمد مصطفیٰ صلی الله علیه وآله وسلم

اے محبوبه او اے دوسته د اکبره
اے د دوو کونو صاحبه پیغمبره

اے چې ستا پهٔ مخ آباده رب د نیا کړه
تاج پهٔ سر دې کړ الله د لولاک غوره

آسمانونه دي کهٔ عرش کهٔ جنتونه
دوزخونه دي کهٔ داد نیا اکثره

د آدم د پیدا ئش مبدا هم تهٔ ئې
پهٔ ظاهره ئې په سر باطن پدر ده

جنتونه دي مقام ستا د دوستانو — دوزخونه دي د شمن له ستا سروره

خادمان د شرعې ستا به پهٔ هوس وي — د شمنان به دې کړي بنکته د سقره

چې آدم ابوالبشر سره بالا شي — خیر د خلقو ئ سرور خیر البشره

هم قمر او عطارد زهره او نمر هم — د مریخ دې لاس کوتاه کړ د خنجره

مشتري او هم زحل دې استقبال کړ — نیک نو نیک وو بد دې ښهٔ کړله د شره

شاد محمد ځان غلام د شریعت کړه

چې پېشوا دې دے رسول مهٔ کوه یره

# فصل دی دوئم په حکمت د مقررو الی د شپې کښې د معراج

اګرچې حکمتونه بزرګانو ډېر ویلي دي مګر فقیر ئې څه وویل

## حکمت اوّل

اول حکمت وائي دا دوه چې دوه نمره — یو آسمان کښې جمع نه شي لړو بړه

نو هر کله چې دا نمر په شان مثال — منوّر لکه په شکل ببدر و ډالے

په خلاف کښې د مغرب چې شه پنهان — جامه وا غوسته د شپې تمام جهان

هغه شپه وه په دا رنګ چې په صفت — بنه وېلي دي جامي علیه رحمت

دغه شپه چې د معراج وه د حضرت — دیباچه وه د صباح د سعادت

وه تر قدر یې یو مثال لیلة القدر — وه تر نوره یې برات لیلة البدر

خجالت به تر ینه وړو زلفو د حورو — هم بیاض یې د مخ نور علي نور دو

په شبنم یې سنبل زلفي کړې شانه — شوې پرې اوښکې د شبنم دانه دانه

په هر مخ د ثوابت فلک سیّار — په جهان تړلے دروو دا د بار

د طرب پرې د سحر خندان وو لب — ورځ د غم ترې تېښتېده په شبا شب

جبرائیل علیه الصلوٰة والسلام — د براق سره خلوت له په یوه ګام

د رسول مقبول ته راغې برابر — مګر نه پوهېده وو ولاړ بېهَر

حق حیران وو دې چې څه شان یې بیدار کړم — د سرور په بېداري کښې څرنګ کار کړم

سبب دا چې وو مأموره د سبحان — بېداري کښې د رسول آخر زمان

جبرئیله هسې وېښ مې کړه محبوب — په نرمه چې یې آزار نه شي قلوب

بلکې نه په ګستاخۍ سره سرور — په نرمه سره یې وېښ کړه برابر

نو راغلي روایت دوه دا ځای — یو دې دا چې حکم وکړ هسې خدای

ته شه بېرته ترینه اوس اې جبرئیله — چې زه خپل بنده په خپله یې تعجیله

په دېر لطف خپل حبیب چې کړم بیدار — ګرد د وهم د خفګان نه شي اظهار

په زړه پاک او مبارک د پاک سرور — هم کښېني ګرد په زړه پاک د خطر

نو هغه وخت پاک سرور کړې سترګې پورته — جبرائیل یې ولاړ ولیده یو لور ته

بل په دویم هسې شان وایي روایت — جبرائیل نه دې دا نقل سلامت

وویل په هسې شان یې جبرائیل — ما ته وحي نه معلوم وو د جلیل

د قالب ترتیب ترکیب زما ستار — د کافورو د جنت نه کړ تیار

پیدا کړې د کافورو د جنت — مګر نه یې وه معلوم دا ته حکمت

نو چې ولې مې قالب په څه سبب — د کافورو پیدا کړې دې پاک رب

دا سبب را ته په شپه د معراج صاف — را معلوم شه په کښې نشته دې خلاف

حق حیران دم چې په دې کښې څرنګ کار کړم — چې په کوم دستور نرمه رسول بیدار کړم

زړه له راغله په شبو د پاک سرور — د ښنو دوارو به د مه مخ پرې برابر

نو هر کله چې مې مخ د پاک رسول — په تلو د ښنو مې ومښه یې تول

کافوري وجود زما ځني قریب — بیا نه نېژدې شوه ګرمي خوب ته د حبیب

او د خواب نه جناب سیّد مرسلین — په نرمه سره بیدار شه هغه حین

هغه وخت پهٔ پېدا ئښ دخپل وجود　　د کافورو شوه پوه پهٔ زيان وسود

شاد محمدهٔ دا دي فخر دے عظيم
چې لري پېشوا محبوب درب رحيم

دوست حبيبٌ محبوب بللے دے اکبر　　تهٔ ئې ځان پهٔ شان دسپي ګنه د وَر

# حکمت دويم

بل دويم حکمت واي داوه پهٔ تحقيق　　چې فرق وُشي د صديق او د زنديق
نو پهٔ دې سبب پهٔ وړځي کښې سرورٌ　　چې معراج ته وې ختلے پورته بر
او هر چا به ووليدلے پهٔ هوس　　پوره شوي به شبه وه دهر کس
جدا يي به د صادق د منافقے　　هر ګز نهٔ به وه راغلي د صادق
لکه مشر يار حضرت صدّيق اکبرؓ　　پهٔ بيان کښې د معراج د پاک سرورؐ
زر ېې وُويُل صدَّقتَ پهٔ زبان　　چې د شتينے ئې رسُولؐ د سبحان
عتبه ابن ابي لهب کافر　　وې کذّبتَ يعني واې دروغ ظاهر
نو رسول مقبول درب هغه ساعت　　پهٔ هغه باندې ئې وکړ د بر لعنت
هم دا وُويُل زمونږه پاک رسُولؐ　　پهٔ تصديق مې دے پهٔ زړهٔ باندې قبول

## اَللّٰهُمَّ سَلِّطْ عَلَيْهِ كَلْباً مِنْ كِلَابِكَ

اے خداونده مسلّط کړه پهٔ دهٔ باندې　　سپے د سپو خپلونه دے کړه پرې راولاندې
او قصه ددهٔ به راشي پهٔ خپل ځائے　　ان شاء الله تعالیٰ د غني خدا ئے

شاد محمدهٔ لمن تينګه د حضرت کړه
پهٔ خدمت ئې ملا بسته د زړهٔ پهٔ نيت کړه

هر ساعت د ذرهٔ په نيت ئې غلام اوسه　　دم پهٔ دم پهٔ حمد صلوٰة صبح و شام اوسه

# حکمت دريم

بل دريم حکمت وايې دا دے د سرور　　چې دا هسې رنګ قاعده ده برابر

چې د سَرَ مستوراتې مدام ځان　　پهٔ پرده کښې د سرونه ساتي ځان

چې پهٔ وخت د را د توکښې وينې نر　　دوئ خپل ځان ترې پټوي پهٔ پرده ندر

نو هر کله چې دا رنګه جنګي ځوان　　او هم مرد د مردې مرد د ميدان

د تلک پهٔ سبزه زار کړل تيريدهٔ　　نو مستورې د مجرې چې وليدهٔ

د مجرې د څلورم آسمان اکثر　　چې له دې مستورې مراد دے هم دا نثر

پهٔ طرف د کنج د خپلې چينې ګرمې　　لا رشهٔ وه ننيتيد پهٔ آب د خپلې نرمې

نو هر څوک بيشک د نواست چې لري نور　　دا رنګ نورې حقيقي سره حضور

لکه هسې دي وښيلي پاک سرورٌ　　دا ويئل مې دي قبول پهٔ ستر ګوسر

# اول ما خلق الله تعالیٰ نوری

چې اول د کل خلقت نه غني رب　　پيدا کړے زما نور دے بنهٔ عجب

# حکمت څلورم

څلورم حکمت وايي دا دے چې هميش　　دا قاعده پهٔ منځ د خلقو کښې ده پيش

يعني عقد د نکاح چې د سلطان　　او د ناوې چرې و شي درميان

نو ترشپې پورې کوي صبر هم زغم　　دا ده لار پهٔ منځ د هر بني آدم

هر چې شپه شادر د دِ پرې تيرې تور　　او پهٔ مخ د جهان وُغورځوي نور

هغه ناوې نهايت صاحب جماله　　آراسته کړې په زېور سره د لاله

کړې داخله يې د شاه په ځائ خلوت　　بې تکليفه د اغيار په محبّت

ريو يل په ګردن وا چوي دوئ لاس　　د وصال په تخت قرار شي سره پاس

نو سرور خير البشر محبوب د خدائے　　دُرد تاج د ناوو دے د حرم سرائے

نو د قدس د حرمسرائے د ناوو مراد　　نور تمام پيغمبران دي لره ياد

درد تاج نه مراد زموږ دے پاک سرورئے　　چې خاتم د انبياؤ مقرر دے

هغه شپه د قدرت د مو د پاک رب　　توري زلفې يې د ناوې د تور شب

کړې خوشبويه يې په مشکو په عنبرو　　چې روان پکښې معراج ته پاک سُرورو

نو هغه حبيب د رب خلوت نشين　　دے د واړو د لبرانو نازنين

په خلوت د نيز ديکت کښې برابر　　په سنه تخت د قربت کښيناوه اکبر

## حکمت پنځم

يل پنځم حکمت وايي دادے چې ضرور　　او د شپ مقرر واله رب غفور

دي د ياره د معراج د پاک سرور　　مقرره کړله شپه غني اکبر

بنکې شپه ده د رازونو پرده داره　　ده محرمه د يارانو غمګساره

هم پرده ده د پاکه د محبّت　　هم جذبه د شفقت د مرحمت

تخت او تاج ده د تمامو اولياؤ　　او هم بخت ده د معراج د انبياؤ

سجده ګاه ده د هر چا د عبادت　　خلوت ګاه د زاهدانو ده په نيت

شاد محمدؒ [82] غلام اوسه د رسولؐ

چې په در دے د الله رحيم قبول

صدق سم په شريعت کړه د اخلاصه　　چې دې غاړه شي د طوق د ګناه خلاصه

# فصل د دریم په هغو تمثیلاتو کښې چې غبار د زړونو

# د منکرانو صیقل کوي - او په حقیقت د معراج احمدي اقرار کوي

---

پوه شئ دا چې بعضې بعضې عاقلان کوتاه فکره کوتاه خیال بداندیشان

په دامونو کښې د وهم او د شک بندي شوي دي په کښې نښتي کلک

د ذره ستر ګي په قدرت د قدسي ذات پرانستلي[83] نه دي دوئ په دې آیات

وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ [84]

خدا ے تعالیٰ په هر یو څیز باندې قادر دے که غائب دے که باطن دے که ظاهر دے

باورنه کوي په صدق باندې سپین نو په شان د ابوجهل سخت لعین

دا رنګ وائي چې دا رنګ جسّه درنه په هوا لطیفه پورته تلل دي نه

ممکن نه دي په هوا پورته ختل په لطیفه هوا پاس لورته ختل

نو په دا حیله سَرَه تمام کفار د معراج نه د رسول کوي انکار

مونږه کل اهل سنت او جماعت په معراج کوو تصدیق د پاک حضرت

منکرانو د کوهي د ضلالت دا جواب ورکوو مونږ اهلِ سنت

که ختل پورته د جسم درونده باد په لطیف نه دي ممکن ختل آزاد

نو راتلل د لطیف جسم د هوا هم په زمکې له ممکن نشي سوا

د ختو د آسمانونو چې هر کس د حضرت چې څوک منکر شي وي نحس[85]

جبرائیل علیه الصلوٰة والسلام هوایي جسم لطیف لري تمام

نو بېشک دده د زمکي په طرف کوزېدو نه شو منکر دا بدخلف

هر منکر ترې نه دے زمکي ته کافر دے ضرور دا سبب د کفر یې ظاهر دے

غوارم العياذ بالله العظيم | يعني غوارمه پناه په رحيم

دا دے نقل د حضرت صديق اكبره | چې په وخت کښې د تصديق د معراج غوره

له حضرت نه وو په وخت حال د دليل | هغو هم ددې دليل د جبرائيل

نو ان شاء الله[٨٦] العزيز چې به ضرور | په محل خپل کښې به راشي پېش حضور

لس تمثيله مونږ دې کښې اکثر | چې دليل دي د معراج د پاک سرور[۴]

اسمانونو ته راوړي دي دا شان | لس تمثيله مخکښې رابه شي عيان

# تمثيل اول

يو اول تمثيل دے دا يوه شئ په نيت | صاحبانو چې د علم د هيئت

د نجوم په دلائيلو کم و زيات | هندسه سره دا رنګ کوو اثبات

چې جُسه د نمر يو سل شپېته څلور[٨٧] | او په بل روايت دوه زياتوي نور

برابر ددې دنيا دے نمر کلان | هره ورځ په ميدان سيل که د آسمان

چې په يو لمحه کښې هسې په تلوار | د څو زرو کالو قطع کاندې لار

او مراد د حرکت نه دے د نمر | حرکت دے د آسمان دده اکثر

نو هر کله چې دا رنګ رفتار تېز سم | په تلوار چې وهي لار نمر په يو دم

دا دوا په تيز د عقل ده عَيَان | هم منونکي ده د عقل په بنه شان

چې دا نور نمر و نه سل زره په زور | فايده ي هم دده د پاک وُجود

که الله رحيم کريم قديم سبحان | په کمال قدرت خپل سره د ځان

چې مقام د قاب قوسين[٨٨] ته بوځي رب | محبوب خپل څه به کوي دې کښې عجب

شاد **محمد** او سه پسے د پاک رسول[۴]
کل فرمان په دل جان لره قبول

ځان کړه خاوره د رسول د پاک قدم | خاص غلام کړه ځان په شرع او سه سم

# تمثیل دوېم

بل دوېم تمثیل دے هسې شان تحریر ۔۔ جادوګر تول د کشمیر پلید ضمیر
او د خُم نه برابر جوړ کړي خپل اَس ۔۔ د لوګي جارو چابک جوړ کړي خپل بس
رهبري کښې د شیطان لعین خنزیره ۔۔ لږ ساعت کښې د حدود د غرهٔ کشمیره
د حدودو د کشمیر روان شي تند ۔۔ ورشي وُرسي تر کوهِ د ماوند
نو هر کله چې د خُم په اَس فی الحال ۔۔ د لوګي جارو چابک کاندي سنبال
رهبري کښې د شیطان لعین لعنت ۔۔ قطعه کیږي ډېره لاره په لږ ساعت
نو هرګاه سوار چې سید المرسلین وي ۔۔ او براق د مرغزار د علیّین وي
او چابک ئې د یاقوت خُلد برین وي ۔۔ او را هبر یې برابر جبرئیل امین وي
لا س په واګو یې اسرافیل بالیقین وي ۔۔ او بیوونکے حضرت رب العٰلمین وي
کهٔ رسول طرفته العین[۸۹] کښې په یو اٰن ۔۔ د مسجد حرم نه پاس په هر آسمان
چې ئې وګرزوي پاک غني اکبر ۔۔ هیڅ عجب نهٔ ده خپل دوست محبوب سرور

# تمثیل درېم

بل درېم تمثیل دے دا ابلیس لعین ۔۔ چې مردار دے او بد تر کافر بد دین
یو ساعت کښې د مشرق نه غرب ته لاړ شي ۔۔ او مغرب نه زر مشرق ته لاړ و لاړ شي
نو هر کله چې دا رنګ لعین شیطان ۔۔ ده ممکنه چې په یو ساعت عیان
د مشرق نه چې مغرب ته تلے شي سم ۔۔ نو سردار د کل او یا زره عالم
بهترین د عالمونو دوست د رب ۔۔ ولې دهٔ لره به نهٔ وي دا منصب
چې یو شپه کښې دوست لانُق د تاج لولاک ۔۔ او چې وګرزي په کل واره افلاک

شاد محمد خپل ځان سم پهٔ شریعت کړه[۹۰]
ځان غلام د در د پاک نبي حضرت کړه
غېر د شرعې چرته کښېږدهٔ نهٔ بردې قدم　　　　د هوس پهٔ عوض واخلې سخت غم

# تمثیل څلورم

څلورم تمثیل دے هسې صاف تمام　　　　چې عیسیٰ علیه الصلوٰة والسّلام
پهٔ امداد د پاک الله غني سبحان　　　　وختو پاس پهٔ څلورم اوچت آسمان
او بل هم حضرت ادریس پیغمبر　　　　پهٔ طبقو د آسمانونو برابر
سېل ئې وکړ لا ر جنت تهٔ پهٔ حیات　　　　بلکې دا دواړه ثابت دي پهٔ آیات
د عیسیٰ پهٔ حق کښې هسې شان ضرور　　　　دا آیات دے رالېږلے پاک غفور
پهٔ شپږمه سیپاره کښې پاک اکبر　　　　پهٔ سورت د مائدې کښې برابر

وَمَا قَتَلُوهُ يَقِيْنًا بَلْ رَّفَعَهُ اللّٰهُ إِلَيْهِ [۹۱]

یهود یا نو عیسیٰ هیڅ نهٔ دے وژلے　　　　بلکې پورته خدائے پهٔ خپل طرف بیولے
مراد طرف خپل نه طرف د کرامت دے　　　　د لوی هغه اسمان چارم اوچت دے
او پهٔ حق کښې د ادریس علیه السلام　　　　دا آیات دے د الله رحیم کلام

إِنَّهُ كَانَ صِدِّيْقًا نَّبِيًّا [۹۲] وَّرَفَعْنٰهُ مَكَانًا عَلِيًّا [۹۳]

پهٔ تحقیق سره ادریس پیغمبر　　　　راست ویونکے وو کل خلقو ته اکثر
هم ورکړونکے د خبر دوئ ته یار بار وو　　　　د جانبه د حق پاک پروردګار وو
پورته بوتهٔ موږ هغه پهٔ لوي مکان　　　　چې د لوی مکان دے مراد چارم آسمان
لوئ مکان درجه د قرب ده ترې نه مراد　　　　یا جنت دے یا چارم آسمان کړه یاد

او دوئ دواړه د جُسې او روح سره — دي ختلي آسمانونو ته کړه
نو حضرت چې دوست محبوب د پاک اکبر دے — مراتبو کښې له دواړو بلند تر دے
څهٔ رنګ پاس به آسمانونو ته روئیدار — خېژولے بیا راوستے نه ئې ستار

## تمثیل تخُم

بلا تخم تمثیل دے داچې لرګے لُوني — پهٔ سبب د لوني ذاتي باندې وي دُروني
نو د باز پښنو سره وترړي چې باز — د دروني والي پهٔ سبب نهٔ کړي پرواز
مګر هغه لرګے وچ کړي تاؤ د ثمر — چې هغه لوني والے لاړ شي ترې اکثر
سپک شي باز ورسره والوځي ضرور — هم دا رنګ سرور عالم خیر الاُمورؐ ۹۴
یو شهباز وو د الله غني سبحان — وه دا الوتې اشیاني د لا مکان
او د پاره د عالمو د رحمت — نازل شوے وو دنیا ته پاک حضرتؐ
لرګے دروني د بشریت الله رحیم — پهٔ پښنو بزرګو چې تړلے وو دیم
پهٔ سبب د بشریّت نفسانیت — قرار وُنیسي پهٔ تخم کښې دا اُمت
کهٔ پهٔ تاؤ د عنایت د رب پهٔ ثمر — او دروني والے ترې نه وُچ شي سراسر
دا دروني والے بشریت دے ترینه مراد — هم ترې لاړ نفسانیت شي لره یاد
طبیعت د آب و خاک د پاک وجود نه — هر ګړیه د محمدؐ احمدؐ محمودؐ نه
او سره د جُسې پاکي د رسولؐ — هم د روح د ذرهٔ اقدس رسولؐ مقبول
آسمانونو ته چې وُخېژدي رب — نو به څهٔ کېږي پهٔ دا کښې څوک عجب

**شاد محمدؒ** پاک حضرت پهٔ آخرت
د عاصي اُمت کوي بهٔ شفاعت

کهٔ هر څو لرم ګناه د حده ډېره — د رسولؐ د شفاعت نه ذرّه سپره

# تمثیلِ شپږم

بل سپږم تمثیل دے دا حکمت پازان
او هګه د چرګې وا خلي په ښه شان

او د ستن د سم په قدر برابر
سورے وکړي هګه تشه کړي اکثر

پس له هغې د سپرلي پرخه شبنم
دا هګه کړي ترې نه ډکه په یودم

سورے بند کړي هګه کېږدي نمرته سمه
چې شبنم هګه کښې ګرم شي بې غم

او هګه په شبنم ګرمه شي بسیاره
په کشش د نمر هغه هګه بسیاره

پورته والوځي هګه هغه ساعت
په کتاب د حکمت درج دے دا حکمت[95]

اے عارفه څه پوهېږې وجود پاک
د رسولؐ په دې عالم د مکې خاک[96]

ملکوت کښې وو هګه مرغ د لاهوت
دے د نیاته وُو نازل د ملکوت

حکمت پازو د تقدیر ازلي
او په ښه کاریګرۍ لسم یزلي

چې په ستنې د اَلَمْ نشرح سینه
وُشلوله یُې سینه ښه بې کینه[97]

طبائع بشریت او اختلاط
جسماني یُې ترې بدل کړه په نِشاط

او کوونکو دا آواز په شوق بیان
پاک رسول ته یُې په دا رنګ ووې عیان

چې څنګوک نشته دے ستا په شانې غوره
اے حبیبؐ د رب دوسته پېغمبره

پس له دې په سحرګاه د رب رحیم
دے د اسمان د قدیم والي نه قدیم

د کرم شبنم په واړه سبزه زار
د قدس وه ورېدلي په قرار

په شیشه د شوق هغه تمام شبنم
سر یُې واخست او په کېدره کښې پاسم

د هغې هګه سیمرغ د کبریا
کړد نته پس له هغې نه یُې بیا

نو هګه د وجود پاک د رسول پاکؐ
چې ورکړي وو الله تاج د لولاک

او په تاؤ د تجلّه خپلي غفور
کېښودله په ګرمه د عشق ضرور

بلکې جوش یُې وو سره د محبت[98]
د دپر شوق یُې کړ را پورته پاس اوچت

نو د پاک پروردګار په بنسه امداد | نېت يې پاس د الوتو وکړ د لشا د
او په دې اوو ګنبد دشنو چې مراد | اسمانونه دي اووه واړه کړه ياد
د اوو اسمانو وز غلېد سرور | او په تخت د قاب قوسين او ادنٰى تر
تکيه ونه هېڅ نه ده عجب | چې ګڼي په کښې عجب دي بد مذهب
په صفت دده کښې شيخ نظام الدين | ګڼجوي هسې ونيلي دي صاف سپين
محمد ﷺ ووت د عرش روحاني | په نظر کښې خاص د سرّ سبحاني
چې خطر کړ ورپېدا ورله حيرت | نور يې واګې ونيوې د رب رحمت
قاب قوسين له ده نه پاتې په ادنٰى شه | بلکې قرب يې له "دنٰى" په " او ادنٰى " شه

شا د محمد د حضرت لمن کړه کلکه
ذره په آب د صدق ووينځه بېشکه

هېڅ د غم نشته چې دا محبوب د رب | شفاعت وکړي ستا هېڅ نه ده عجب

# تمثيل اووم

بل اووم تمثيل دے هسې شان ضرور | شريعت شريف کښې حکم دے حضور
او هر کله چې دوه څيزه چې شي جمع | هر يو څيز چې غلبې ته وکړه طمع
غلبې لره دے حکم برابر | په بنه لار د شريعت د پاک سرور

# مسئله

مسئله شال چې هغه بڅه شير | خپل اُبو کښې سره ګډ کړي په تدبير
هر هک لره چې ورکاندي مطلق | ثابتېږي او يانه د رضاع حق

# جواب

جواب دا دے پدے کہ شول غالب دتجلي
کہ اوبۀ پۀ کښي غالبې وي پدے سپک

حق ثابت شۀ د دفاع ددي عاجزي
خلاص دحقه دفاع شۀ دا هلک

# مسئله

مسئله دوېمه داده کۀ پۀ هغه
کۀ غالب وو زر کره حکم لري

د روپئه کښې چې سره وي خیرے گړه
کۀ غالب وو خیرے ده کوټه جاري

# مسئله

مسئله درېمه داده شۀ شیرینه
اوکۀ وینه وي غالبه پرې پوخښ

کۀ توکا نهي وي غالبه نۀ ماتېږي
پۀ دې قیاس سره چې روح مبارک پاک

پۀ جسه ددۀ غالب شه روح بسیار
او پۀ غولي د عالم ملکوت

والوت څۀ به عجیبه دې کښې لري
بل اتم تمثیل نه دادے روایت

دبدنه د مؤمن چې روح جدا شي
پہ یودم طرفة العین کښې برابر

وه رسېږي پۀ کورونو کښې د نور
نو هغه جسم لطیف گو هر شریف

چې پۀ سل زره کرته بخلاف

کۀ توکا نو کښې د تولي شي گړه وینه
پرې ابدست واوره ماتېږي شي غسل

اوکۀ وینه پۀ توکا نونه زیاتېږي
د رسول مقبول لائق د تاج لولاک

نو دا روح زموږ د پاک نبي دویدار
بلکي هم د جبروت او د لاهوت

کۀ لري منافقان به وي جاري
د مؤمن بنده چې روح وکاندې نیت

خیال ئې پورته دا سمان ضرور پیدا شي
د پنډیه د عرش عظیم ته سراسر

بدن و نیسي آرام وکړي ضرور
د سرور خیر البشر جسم لطیف

اود روح نه وو هم پاک اوهم ووصاف

چرې یو ساعت د شپې کښې له یو واره — د اتو زرو کلونو شپه کښې لاړه
وُ وهي څهٔ عجیبه ده پهٔ دا حق — منافق وي چې عجب[103] لري مطلق

شاه محمد چې سرور محبوب د رب دے
"قاب قوسین" پهٔ "او ادنیٰ" کښې څهٔ عجب دے

کهٔ لري عجب پهٔ دې کښې نالائق دے — برابر د منافقو منافق دے

## تمثیل نهم[9]

بل نهم تمثیل دے دا کوتا نظر — ولي دا نهٔ کوي فکر برابر
او هم نهٔ راولي دا عقل د ځان — چې پهٔ یو نظر د سترګو پهٔ یو آن
چې تهٔ یو کوت کتل سره ضرور — اسمانونه واړه وُویني حضور
د اول نه دا تم آسمان سنبال — ستوري وُویني پهٔ یو نظر فی الحال
نو کهٔ جسم د رسول د نوره سم دے — نور د سترګو د نېتو د عالم دے
او د سترګو د نظر نه دے لطیف — هم د کسونه د سترګو دے شریف
کهٔ الله غني سبحان پرې پهٔ یو شب — ددې لارې قطعه وکړي څهٔ عجب

## تمثیل لسم[10]

بل لسم تمثیل دے دا چې عرش عظیم — د جهان آخري حد دے پرې تسلیم
او سره د لویه دومره بې شمارې — هم سَره بلکې د دومره دا پُرې
چې پهٔ دهٔ دي د جسو دومره سره — یوه شپه کښې ختمه وي خپله دوره
چې د هغه اندازه د لار انسان — د هغه هیڅ مهندس چې پهٔ میزان
د خپل عقل او د فکر پهٔ ادراک — راو ستلے نشي هیڅکله پهٔ واک

پس هم هغه خداوند پاک رحیم
چې خالق دے هم ددې عرش عظیم

د جُسې پاکې جوهر د پاک سرور
پهٔ لوحه د آسمانونو چې پاس بر

چې الله خپل محبوب وخېژوي پاس
کهٔ عجب ګڼې څهٔ دې کښې وي خناس

حاصل دادے برابر د دې کلام
چې هر کله محمد علیه السلام

احاطې نه چې د کون او دمکان
او دا بُرې نه چې د دور او دزمان

ترقي وکړه او هرچې ما سوا
ورسره ووې درنبه بې پروا

هغه واړه تر پې ښپې ارشو سراسر
تردې حده پورې واړه برابر

چې لباس ئې دهستۍ هم د رسول
د وجود مبارک وویسته بې نول

ورته ئې واغوستوهٔ بنهٔ عجب خلعت
پاک الله زمونږ رسول ته د رحمت

او دنیا ته چې راولیږهٔ پاک ذات
هم رحمت وو دالله پهٔ دې آیات

وَمَا اَرْسَلْنٰكَ اِلَّا رَحْمَةً لِّلْعٰلَمِيْنَ ۝ [۱۰۵]

او دنیا ته مالیږلے نهٔ ئې بېکاره
اے رسوله زما ما یلځهٔ د پاره

مګو تهٔ رحمت د پاره د عالم
مالیږلے ئې رحمت دنیا ته تم

شاد محمد څهٔ دِ غم د آخرت دے
چې شافع دِ محمد نبي حضرت دے

لمن ټینګه کړه پهٔ صدق د رسول
رب به خیر کړي د ذرې مهٔ کوه نول

## غزل در محمدت محبوب کبریا دُرّۃ تاج الانبیاء [۱۰۶]

ستا د رویه دا دنیا شوه مرمّت
نه دنیا وه نهٔ دوزخ وه نهٔ جنت

چې الله ورته پهٔ سر د لولاک تاج کړ
څکه ئې درکړ د دوو کونو سلطنت

کهٔ تمام عمر دِ صرف کړم پهٔ صفت کښې
وُبه نهٔ کړم ستاد یابه یو صفت

د الله د نوره پوره[107] د رب دوسته ‌ ‌ ‌ خدای د خپل نوره جوړ کړې ستا صورت

اولین او آخرین محبوب د رب یې ‌ ‌ ‌ ځکه ختم رب په تا کړ نبوت

هرچې ستا په لاري سم ځي دیقینه ‌ ‌ ‌ سربالا به وي په ورځې د قیامت

که څوک ستاد لارې غېر درومي په بله ‌ ‌ ‌ شرمنده مختور به وي په آخرت

ته الله خېرالبشر یې پیدا کړې ‌ ‌ ‌ هم دوا یې[108] د هر درد د هر زحمت

رب په تا دے مهربانه د حد ته پوره ‌ ‌ ‌ هسې ته یې مهربان په خپل امت

دومره مهر دپیدا ریه پسرنه وي ‌ ‌ ‌ لکه ستا دے په امت د پر شفقت

که چا ستا دے قبول کړے دین دصدقه ‌ ‌ ‌ په قیامت به هغه نه شي ملامت

شاد محمد لمن نیسه د رسول کره

چې سبا دې شفاعت وکړي حضرت

## فصل دے خلورم پهٔ بیان د بیولو د احمد صلی الله علیه وآله وسلم له مکې معظمې نه بیت المقدس ته

روایت کنندګانو د اخبارو[109] — او تمامو ناقلانو د آثارو[110]

پهٔ معراج کښې بې د سید المختار — پهٔ سند کښې د محبوب کردګار

روایات حکایات ډیر کړي دي صاف — د تلو وخت کښې هم دي کړي اختلاف

او اکثرو عالمانو دي وئیلي — پهٔ معراج کښې راویانو دي وئیلي

چې معراج د پاک رسول مقبول سرور — د ربیعُ الاول میاشت کښې وو اکثر

او پهٔ کال د دولسم د نبوّت — بعضې وائي چې معراج د پاک حضرت

چې یو کال او نیمڅه میاشتې وائي اکثر — له هجرت اول معراج وه د سرورٌ

له مکې نه مدینې ته برابر — چې سرور د هجرت کړے وو سفر

واقع شوے وو معراج د پاک رسول — چې پهٔ در وو د الله رحمٰن قبول

او پهٔ دي انداز سره پهٔ میاشت ضرور — د واړهٔ اختر پهٔ میاشتې کښې حضورؐ

او پهٔ کال یوُ لسم د نبوّت — راغي کال د نبوت د پاک حضرت

پهٔ یو قول پهٔ دغه کال کښې بنهٔ عجب — او ویشتمه کښې دا میاشت وه درجب

بلکې زیات د حده تبېز محد شان — پهٔ دي قول باندي تللي دي روان

او پهٔ یو روایت وائي هسې شان — چې پوره پهٔ شپه اووه د رمضان

بلکې وو د نبوّت دولسم کال — بعضې بعضې وائي هسې شان سنبال

چې پنځه کاله وُو پس د نبوت — او اکثرو عالمانو پهٔ صاف نیت

دا وئیلي دي پهٔ نیت سره بالکل — چې معراج وه د حضرت پهٔ شپه دکلّ

قریب شلو اصحابو رضؓ سراسر — معتبره حدیثونه برابر

د معراج روایت کړے دے پنهٔ شان — د سرور خیرالبشر آخر زمانے

لکه یو شیر علي رضؓ بل ابن عباس رضؓ — یا انس ابن مالک یا مالک قیاس

هذا القیاس چې شلو کسو برابرو — د سرور اصحابانو معتبرو

حدیثونه د معراج د پاک سرور — پهٔ بنهٔ شان روایت کړي دي اکثر

# بیانٔ د واقعې د معراج پهٔ تفصیل سره

چې پهٔ ځائے د تلو کښې هم پهٔ طرف صاف — د معراج هم دے راوړے اختلاف

یو دے دا د روایاتو روایت — پهٔ دا شپه کښې پهٔ مکه کښې وو حضرتؐ

پاک سرورؐ وو پهٔ دا شپه قرارځل کوٌ — چې یې چت د کوټې وُچاوده پهٔ زور

جبرئیل علیه الصلوٰة والسلام — راغے چت د کوټې و چاوده تمام

او پهٔ یو روایت وایي برابر — پهٔ زمین کښې د حرم وو پاک سرورؐ

او پهٔ یو روایت وائيُ هسې شان — پهٔ حجره کښې وُه رسول آخر زمان

چې پهٔ حکم د الله رب الجلیل — راغلل دواړه میکائیل او جبرائیل

او په يو روايت واڼي چې په کور — وو سرور اُمّهاني د خپلې ترور

بلکې ډېرو محدثينو په صاف نيت — بلکې ډېرو محدثينو په صاف نيت

د کور مينځ د صفا او مروه سم — واقع شوے دے داخل دے په حرم

او په کومه زمانه کښې چې حضرت — وهٔ د تره ابوطالب په کفالت

نو په دغه کورکښې وو محبوب درب — رسولؐ خپل کور ورته واڼي په دا سبب

چې وئيلي دي سرورؐ خيرالبشر — په دا شپه وم په خپل کورکښې برابر

نو هم کله د لولاک لائق د تاج — چې رسولؐ زمونږ په شپه کښې دمعراج

چې اول مسجد حرام له سرورؐ صاف — وه دا غلے ترې يې کړے وه طواف

پس له هغې پاک سرور آخر زمان — نو بيا بيت المقدس ته شه روان

اې مجير مسجد حرام ته اشارت — هم په دا سبب دے کړے روايت

مګر دا روايت ښه مشهور دے زور — چې رسولؐ وه په دا شپه په کور د ترور

ترور يې وه اُمّهاني نامه موسومه — په دا نوم سره هم ځلے کښې ده معلومه

او نور والله اعلم بالصواب — هسې نقل ناقلان کړي په دا باب

په دې شپه کښې پاک سرور خيرالبشر — د خفتنؐ مونځ يې ووکړے برابر

بلکې سترګې مبارکې وې په خواب کښې — د زړهٔ خيال يې وو دربار د پاک جناب کښې

توجه يې د زړهٔ پاک وو په مقام — د الله ستار دربار پاک ته تمام

او ګوشه د مشرف نظر حضرت — ده لرله په طرف د خپل امت

چې د پاک الله تعالی د لوئي جناب — په جبريلؐ امين دا وو رسيد خطاب

چې نن شپه اے جبرئيله برابر — لاس د خپل عبادتګاه نه کړهٔ په سر

او تسبيح تهليل موقوف کړه خپل بالکل — بلکې پرطاؤسي تمامي خپلے

هم ځانګونه ملمّع په زيوراتو — اراسته کړه د فردوس په خلعت زياتو

کمربند د خدمت وتړه بهتر — او کلاه د نوکرۍ کېږده په سر

ميکائيل ته هسې وه وايه ضرور — د رزقونو پيمانه کړه د لاس دور

اسرافیل ته هسې ووایه په نیت — شپېلۍ چپله دې موقوف کړي یو ساعت

عزرائیل ته هسې ووایه چې لاس — د روحونو قبضولونه کړه پاس

فرشتانو ته د نور ودکړه فرمان — چې طبقات د اسمانونو په بنهٔ شان

په جادو سره جادو کاندې څهٔ نور — او دا حکم ورله ودکړه زر ضرور

نوبتیانو ته د صدق د صفا — حکم ودکړه نقاره چې د سخا

په اطرافو د عالم بقا صاف — بلکې ووهي په ګل واړه اطراف

او رضوان له حکم ودکړه چې درجات — په آئین بهشت برین تیار کړه زیات

او مالک ته حکم ودکړه چې کل کندې — د دوزخ کړي کل په دې قلفونو بندې

او د حلم د تسکین په جندرو سم — دوزخونو کندې بندې کړې دا دم

دریابونه د چپو دې په ارام شي — الوتونه دې بادونه بند تمام شي

آسمانونه دې چرخ نه سراسر — آرام وکړي برقراره برابر

او لمبې د دوزخونو دې امان — آرام وکړي تلو راتلونه په بنهٔ شان

سراپې د خلد برین حورو ته زود — حکم ودکړه مجمرونه چې د عود

او تالې د جواهرو ډک بې شماره — چې تمام قربانه ډلو له دیاره

په لاس واخلي او په لارو په طرف — د مانیو د جنت ودرېږي صف صف

حاملانو ته دا ووایه د عرش — چې په کل عرش باندې وغوړوي نوش

هم لباس فلک اطلس ته مقدس — زر زر دا غوندې وي صاف په وېرهوس

او کرسۍ ته تاج د قدس کړه په سر — پس له هسې ته آدم ابو البشر

او آدم صفی الله ته په بنهٔ ساز — او هم نوح نبي ته ودکړه دا آواز

ابراهیم عیسی موسی علیه السلام — او خبر کړه انبیاء واړه تمام

او روحونه د دوی واړه سراسر کړه — خوشبویه باندې د قدس معطر کړه

او اویا زره ملک مقدس ګل — زر جنت ته بوزه سلهٔ [113] کړه د ښات نهد

یو براق د براقونو نه براق — را روان کړه د جنت غوره کړه چاق

لاړشه ته د ستي د زمکي ښکته لورته | او عذاب د کل قبرونو نه کړه پورته

د مشرق نه د مغرب پورې تمام | ټول قبرونه د عذاب نه کړه ارام

سره سره دا وېښا په دا ساعت | او په عطرو د راستنه د محبت

د دوستنه په خوشبوی کړه معطره | دنیا واړه د یو سر د بل سره

پس له دې د مغرب تام زمین ته لاړشه | له مغرب نه بیا د شام زمین ته لاړشه

بیا یثرب ته بیا حرا ته شه روان | او بیا لاړ شه قبیلې ته د قحطان

قبیلې د کنانه ته لاړشه زر | او بیا لاړشه قبیلې ته د مُضر

او بیا لاړشه د مضر نه په قرار | قبیلې ته د قریشو په تلوار

د قریشو قبیلې ته لاړشه سم | قبیلې ته بیا د کُل بني هاشم

بلکې بیا عبد المطلب ته شه روان | او په منځ کښي دے د دوئ یو عجب ځوان

۱۱۳

سروي قد او ماه خد او کان د حلم | عطارد منظر او هم افتاب د علم

بلکې هم زهرهٔ پیکر بهرام حشم | مشتري دیدار کیوان مقدار دے سم

چې د لاس د زماني د ساقي جام | د بلا او د محنت څکلے دے تام

په ادب سره په سر ئې د بالین | په قرار د هغه لاړشه په دا حین

په نرمه ورته عرض وکړه هسې رنګ | چې محبوب زما بالکل پرې نه شي تنګ

نن دې شپه د شب قدر ده تلوار کړه | ځان د خپل قدر عزیز نه خبردار کړه

په نن شپه کښي ارانش شه سرمدي دے | چې نن شپه باندې معراج محمدي دے

دولتمنده دغه شپه ده په خوشانه | چې دا ستا په قدم مونږ شوه روښانه

پس له هغې نه په حکم د جلیل | په دیر کرّو فر جنت ته جبرئیل

د براق د پاره راغے د حضرت | او په هر یو مرغزار کښي د جنت

او ګلو ښت ګلو ښت هزارې ولیدل | براقونه چې هغو کښي څرېدل

په تندو د دوئ کښي نور د محمد | وو لیکلے په قدرت سره احد

۱۱۴

د ګلو ښتو زرو اسو منځ کښي لاړ | یو براق غمجن په کنج کښي وو ولاړ

او د او ښکو ئې سیلاب پهٔ مخ روان وو
د حساب نه بې حسابه پهٔ ګریان وو

جبرائیل له دې براقه وکړه پوښتنه
چې دا دومره ژړا غم کوې د څهٔ نه

ځو ې آس اے جبرائیله دے معلوم
پوره زر کاله دې شوې چې پاک نوم

او ر بیده ئے چې دے ما د محمدٛ
هغه وخت نه رخت د ژوندون دے د راحت

خپل ژوندون مې دهغه پهٔ محبت
هم پهٔ عشق کښې مو ورکړے دے پهٔ نیت

او دیدلے مې کوم ورځ دے دا نوم پاک
ذرهٔ مې نهٔ غواړې ذرّه قدرې خوراک

جبرائیل پکښې هم دا خوښ کړ براق
چې لاړهٔ ئې پهٔ روح داغ دا شتیاق

چې پهٔ عشق کښې د سرور خیرالبشر
دا براق وو د بر سرګرم خونِ جګر

او سره ددې براق پهٔ هغه آن
دولت سرائے ته د سلطان دانش و جانٛ

جبرئیل علیه الصلوٰة والسلام
دا براق ئې پهٔ ښهٔ ساز را وست تمام

لکه شیخ نظام الدین علیه رحمت
پهٔ فارسۍ سره د یٔیلي دې پهٔ نیت

ما فقیر ترې ترجمه کړه افغانۍ
بلکې هغه ابیات دادې لاشانۍ

دا غې راغے جبرئیل د بیت معمور
هم براق ئې لکه برق را وست د نور

سوترٛ[۱۱۵] ښنو پهٔ نګارین صورت د باغ
پهٔ خوله واکې د جنت پهٔ ورانه داغ

دورېځې د سپرلي زیات دُرا فشان وو
هم د باده هم د اوره خوش عنان وو

حضرت لاړ شهٔ سور پهٔ دې براق د یاسه
د نظر پهٔ شان اقصیٰ ته خوش اساسه

شه قبله د انبیاؤ پهٔ اقصیٰ[۱۱۶] کښې
پهٔ تفصیل د امامت پهٔ لا احصیٰ کښې

چې فارغ له پېشوۍ د انبیاء شهٔ
بیا روان احمد پهٔ لور د کبریا شهٔ

بهر ووت دے د هوش د تېز هوشانو
د خیمې ددې افلاکو شین پوشانو

هسې شان ابن عباس کړي روایت
چې دا حکم ماته وکړ پاک حضرت

چې پهٔ دې شپه کښې د تر ور ډومه پهٔ کور
چې خاص نوم اُمّهانۍ مې لرې ترور

نوخګ مې کړے دخفتن وو پهٔ دا شب
او دا شپه نودې د ګل وه د مطلب

میاشت د میاشتو نه د بیع الاول شماره
او جامې د خوب له را غلم پهٔ قراره

چې په سترګو وُم اوده په زړه بیدار
چې مې وُرسېد په خوب و غرة هار

اواز ما د جبرئیل واورېد د پَر
په جامه د خوب کښې کښېنا ستم بهتر

نو ما ولېده ولاړ دو جبرئیل
راته یې ووې په تحقیق رب الجلیل

او په تا باندې و ټپلے دے سلام
غواړي تا زه دِ بیو ونکے یم تمام

په طرف د خدائے د پاره ددې سم
چې دا رنګ و کاندې تا باندې کرم

چې روېے له تا یې هیچرې ضرور
په هیچا به نه وي کړے رب غفور

نه به وکړي دا کرم له دې نه پس
په چا باندې غیر له تا نه په هوس

درته داسې کلام واوروي سبحان
چې روېے او پس له تا نه په هیچا شان

نه یې چاته اورولے دے اکبر
نه به واوره وي بل چاته برابر

بلکې نه دِ وي خطر په زړه ستا باندې
بل دویم روایت مخکښې دا رنګ کاندې

حضرت دُوئیل چې پورته شوم في الحال
او ابدست مې وکړ بیا نه ترا سنبال

دوه رکعاته مونځ مې وکړ برابر
بیا له هغې نه را وُوتم بهر

بل دویم دے روایت چې وې حضرت
چې ابدست د کولو شوم په نیت

نو خالق د مخلوقاتو رب جلیل
حکم وکړ هسې شان په جبرئیل

چې اوس لاړ شه برابر روح الامینه
او د حوض نه د کوثر اوبه شېرینه

راوړه زر دې پاکیزه سرشت د یاره
چې ابدست ور باندې وکړي په قراره

چې پرا نستے مې لانه وو ګریبانے
د یاقوتو دوه کوزې راوړې رضوان

د جنت نه د واړه ډکې د کوثر
یو لګن د زمرّدو شنو بهتر

راوړکوټه وُو ددې لګن څلور
دُر جړاو یې په هر کوټ باندې وُو زور

ددې درو به رنا شله تر آسمانه
تمامې دا مرغلرې وې روښانه

نو صاحب زمونږ په هغو اوبو پاکو
وکړ غسل د نور پروت ورته پوشاکو

پس له هغې دا جامه واړه د نُور
زر زر واغوسته حضرت په ښه سرور

او پګړۍ د نورې کښېښوده په سَر
بلکې بل روایت دا کړیے برابر

چې رضوان د جنت دا پګړۍ ښکلوا — لا بابا آدم بالکل نهٔ وو پیدا

دوهٔ زره کاله دا پګړۍ اول — د آدم نه وو پخوا وکړه عمل

دا پګړۍ پېچلي ایښې وه تیاره — او څلویښت زره ملک ددې د پاره

د تعظیم وو ولاړ له دې چاپېره — او تسبیح تهلیل یهٔ ئې وے بهَرد شپېره

د تسبیح تهلیل نه ورستو به ئې درود — پهٔ سرور خیر البشر وایهٔ پهٔ زود

ترهغې چې دا پګړۍ د کعبه د نور — جبرئیل د معراج شپه ښاندې ضرور

داوړهٔ دې سره څلویښت زره ملک — همراهي کښې را غله نشتهٔ ذرّه شک

او دیدار ئې د رسول آخر زمان — وارو کړ پهٔ اخلاص او پهٔ ښهٔ شان

د هغې پګړۍ څلویښت زره پهٔ شمار — وې شملې هره شمله باندې اظهار

څلور خطه وو ښکلي پاک اکبر — خط اول پهٔ هسې شان وو برابر

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ

خط دوېم پهٔ هسې شان پرې تحریر — ښکلې دا د دوېم خط دے صاف تقریر

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ نبی اللّٰهِ

خط درېم وو هسې شان زیبا بسیار — پهٔ قدرت سره ښکلے وو ستار

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ خَلِيْلُ اللّٰهِ

خط چارم څلورم دا دے ښهٔ سنبال — چې ښکلے پهٔ قدرت دے ذوالجلال

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ حَبِيْبُ اللّٰهِ

پس له هغې جبرئیل د نور څادر — پهٔ شا واچوهٔ زمونږ ه د سرور

ورپهٔ ښنوئې زمردي پېزار څرګند کړ — او پهٔ ملا ئې د یاقوتو کمر بند کړ

تازيانه زمردي يې کره په لاس — چي جړاو پرې ځلولو زره ډر دوو پاس

هر يو ډر يې د زهرې نه وو تابان — چي جړاو په تازيانه ووهسې شان

پس له هغې جبرئيل عليه السلام — لاس زمونږ د رسول و نبوه تمام

بيت الله بيت الحرام ته يې د کوره — را وست دلته هسې رنګ روايت ګوره

چې يې وکړ اودس په زمزم پاک — او وځلي طواف وکړ په شتاب

بيت الله شريف نه هفت واري طواف — وکړ بيا رخصت يې واخست بنه صاف

او نښږدي وو د حجر چې دے حطيم — د مه وکړه يو ساعت رسول کريم

هغه وخت کښې جبرائيل د پاک رسول — [۱۱۸] په تحقيق شه په دا کار سره مشغول

او يو طشت يې د طلا او د حکمت — د عرفان او د ايمان د مکرمت

راوړو پس له دې سرور خيرالبشر — تکيه ووهله وغزيد سرور

او سينه يې کينه صافه يې حسد — په منځ شق کړ د محبوبه د احده

ميکائيل ته يې ووې درې طشته داب — د زمزم راوړه ده راوړه په شتاب

او دته يې کولمې او سينه پاکه — وويخله دانس جن شاه د لولاکه

غل و غش يې د زړه پاک دده دور — جبرئيل زړه را بهر کړه ترې ضرور

دده زړه مبارک وويخه بېشک — او د هغې طشت طلا د حکمت ډک

د عرفان او د ايمان او د حکمت — هغه طشت د طلا هم مکرمت

او دده ته يې کړ ډک زړه مقدس — بيا يې خپل محل کښې کښېښوده هوس

پس له هغې د رسول مبارک لاس — ونيو وويسته بطحا ته پاک اساس

د مسجد حرام نه يې وويسته بهر — بيابان ته د مکې خيرالبشر

بطحا نوم دے د مکې د بيابان — هسې وائي پاک رسول آخر زمان

دې بطحا کښې په حکم د جليل — وليدل مې اسرافيل او ميکائيل

وو ولاړ چې د هر يو سره په شمار وو — او يا زره مقرب ملک تيار وو

ټول صف صف راښکلي وو تمام — په ليدو يې کړ پېشکش ورته سلام

چې د کل صفونو شهٔ پهٔ ما نظر     پېشکشې د سلامونو سرا سر

دا ته وړاندې کړې تعظیم او هم تکریم     پهٔ ځائے دا وربښهٔ لائق اکرام تعظیم

ما ادا کړو د تعظیم د دوئي جواب     پس له هغې پهٔ رضا خه د ثواب

هم پهٔ زړو دا الله ئې مکرّم کړم     پهٔ رضاد الٰهی مکرم هم کړم

پس له هغې مې یو اس هغه ساعت     د قچر نه وو[119] وړوکے خر نه[120] اوچت

مخ ئې سم وو د سړي د مخ پهٔ شان     او غوږونه ئې وو د پیل د غوږ عیان

ښې ئې وې د اس پهٔ شان سراسري     او گردن تخت ئې پهٔ شان وو د مزري

هم سینه ئې وه پهٔ شانې د قچر     او صاغري ئې وو پهٔ شانې د شتر

او لاسونه سم پهٔ شان ئې د بقر دوَ     کل سمونه ئې چاوُد[121] عوئي هسې اکثر وو

پهٔ ورنونو ئې دوه پر لرل دار نګ     چې پنډې ئې پرې پتولې د خپل څنګ

چې پرو نه به ئې پرانستل د ځان     تر مشرق مغرب به ئې لاندې کړ جهان

چې به ئې تول کړهٔ نوچل ارخ به ئې کړ پرې پټ     د یاقوتو سرونه[122] جوړ وو دده څټ

وو عجب هما ئې چې پر دده د نور وو     غالیه کښې ئې بو یونه پاک د حور وو

زیرے راغے پهٔ صاحب د تاج و بخت     چې دِ عرش له دا روان شي د خپل تخت

او سینه ئې د سرو یاقوتو وه تیا ده     خلبند له به د حد نه وې شماره

شا ئې د سپینې مرغلرې کاوهٔ برق     د ذرّې قدرې پهٔ دې کښې نشته فرق

دوُ د ښو شنو زمردو ئې پښې لا س     او لکه ئې د مرجان وَه او سلراس

یعني سر سینه گردن ئې وو پیدا     د یاقوتو سرونه جوړ وو دده دا

او ښهٔ زین پرې د زینونو د جنت     اپښے شوے وو پهٔ شا باندې او چت

دکابونه ئې وو د سرو یاقوتو داره     پهٔ تندي ئې ښکل وه دا کلمه واړه

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ

دا براق دا رنګې تېز رفتار تمام وو     چې د سترګو د نظر منزل ئې ګام وو

نکه شیخ نظام الدین علیه رحمت    د تبریزه په فارسي کړے دا صفت

ما فقیر ترې ترجمه کړ په پښتو    هغه ګنج دې وا خله دادے چې غوښتو

دا براق وو په شتاب په شان د برق    ساز دده وو نکه نمر په نور کښې غرق

په بلند فلک سهیل دو ځلیده ے    د یمن خرمن وه رنګ له ده مونده ے

مرغلرې نه ئې سم د ښم قدمونه    ګویا تلله مرغلره په رېښمونه

خوش عنان وو زیات د حده ګمان    هم تېز دوه وو د غشي د کمان

هسې حد له ئې تېزي وه د هر ګام    چې سبقت ئې د جنبشه ورے آرام

هر قدم ئې په قیاس د خپل نظر وو    بلکې زېرې تر قدم د نظر سر وو

راته ونیوه رکاب جبرئیل امین    میکائیل ونیوې واګې هغه حین

عرض ئې وکړ یا رسوله دا ساعت    مبارک قدم له ورکړه حرکت

د اعلی د ولایت کل ساکنان    د بالا عالم همه مقرّبان

انتظار ستا د قدمو پاکو ږرکړي    زیات د حده انتظار د شماره تېر کړي

ګهواره په فلک بیا یه چې ماه ته ئې    اس په ستورو زغلوه شهنشاه ته ئې

د سا ئې خپلې د لاندې دا اسمان    معطّر کړه هم پرې چتر کړه زلفان

ستا خدمت کړي د شپې کل عطرسایان    منتظر دي درته کل سبز پوشان

تازه تر کړه د ملکو واړه فرش    خېمه ووهه په تخت باندې د عرش

د عرش ستوګي کړه روښانه په دا نور    فرش و نغاره د نور په بنه سرور

د لته بل دا روایت دے چې نظر    په براق چې برابر شه د سرور

نو کړ ښکته مبارک سر پاک رسول    او زړه پاک ئې شه په فکر کښې د نول

د جنابه دالله راغے خطاب    جبرئیله زما دوست نه پرشتاب

د سبب پوښتنه وکړه د خفګان    هم ده د رنګ د تېر ولو ترې پرسان

حضرت وویل چې اے روح الامینه    اوس را وتے یم د کوره دیقینه

د حبیبه زما وکړه ته پوښتنه    چې دا دومره د رنګ خفګان کوي د څه نه

تو مابیاموتده تماځنه په خلعت ۔ او ملک مقرّبان مې دا ساعت
استقبال له د بلو مې د پاره ۔ د درباره دي راغلي دستاره
هم براق ئې برق رفتار په شان دبرق ۔ رالېږلے ئې دے ماله په نورغرق
تو په زړه مې شه دا رنګ فکر او چت ۔ چې په ورځې د قیامت زما امت
د قبرونو نه شي پورته تمام ورېي ۔ په تنو نو به بربنډ وي هم به تږي
په ګردن د ګناهونو به ئې بار وي ۔ مظلومان به پرې اخته د حد بسیار وي
هر مظلوم به ئې وي لاس په لمن باندې ۔ دوئي ته لار د قیامت زر کاله دوړاندې
هم د دېر شو زرو کالو لار بادیکه ۔ د دوزخ ورته پرته په مخ تاریکه
تو دا رنګې بې طاقته فقیران ۔ وهي څرنګ به دا لارې په کوم شان
او په کوم طاقت قوت به په دې لارې ۔ قدم کېږدي چې ترې وُبه شي رفتارې
حُکم وُشه دا لله نه هغه دم ۔ اے حبیبه زما هیڅ مه کړه څه غم
د خفګان نه ئې د خاطر خاطر کړه خلاص ۔ په نظر د عنایت چې کړم څوک خاص
لکه تن شپه چې مې بنه بُراق بُراق ۔ ستا د کور په دروازه ولېږه چاق
دا رنګ قبر له به ستا د کل اُمت ۔ زه به وُ لېږم اسونه د جنت
ټول سواره به د صراط نه یوځل تېر کړم ۔ په هوس به ئې د دې غم د دوزخ هېر کړم
سلامت به ئې د صراط تېر کړم په لار ۔ ستا په شان به ستا امت کړم ټول پرې سوار
د پنځوسو زرو کالو لاروي دور ۔ و هم زه طرفة العین کښې پرې ضرور
په بهشت عنبر سرشت به ئې کړم د ننه ۔ کل نعمت به ور دا کړم د هر څه نه
لکه دا ایات و ئیلے دے سبحان ۔ په روښان کلام مجید کښې دے عیان

## وَيَوْمَ نَحْشُرُ الْمُتَّقِيْنَ اِلَى الرَّحْمٰنِ وَفْدًا ط [۲۳]

اے حبیبه زما هغه ورځ کړه یاده ۔ چې شي پورته اوشي جمعه د هواده
مومنان به په جانب د رب منان ۔ په طرف به د قیامت د لوئې مېدان

نو هر کله چې دا خیال وکړ سرور | چې په اس باندې پاس سورشي برابر

سرکشي او تندي جوړه کړله آس | دا یې ووې دا قسم دے زما پس

په عزت جلال درب مې دے قسم | سور به نشي په ما بیل بني آدم

بې د هغې پیغمبر نبي صاحب | چې صاحب دے دے د توري عجائب

ابطحي او قریشي یې دے نوم پاک | محمد دے چې صاحب دے د لولاک

او فرزند د عبد الله دے ماه تابان | چې صاحب دے د روښان کتاب قرآن

حضرت ووئیل چې زه یم محمد | پیغمبر نبي رسول د پاک احد

جبرئیل علیه الصلوة والسلام | ووې اے براق واوره دا کلام

چې قسم دې وې زما په هغه خدائے | چې واحد او لا شریک دے نه یې ځائے

چې یې پیغمبر بزرګ په نیزد درب | محمد نه نشته زیات په هر سبب

بې دې خیر البشر نبي نه نوم | ستا په شا باندې به ده به نشي سور

نو په دا ووئیل په آس راغې لړزان | په سبب د حیا د یرې په خپل ځان

چې تر یې ووڅېدل څاڅکي د عرق | په لړزان شه هسې شان لکه ورق

ځان پیوست یې کړ د زمکې سره زور | او رسول علیه السلام شه پرې پاس سور

جبرائیل د پاک رسول مقبول رکاب | د مسجد اقصی په لور یې په شتاب

په جانب یعني د بیت المقدس | د اقصی په طرف وګرځاوه آس

د حرم چې د مکې دامن افشان شه | خاص حرم د مقدس په ده روښان شه

بدکي د لته بو دا رنګ دے روایت | هر چې وکړه سرکشي آس د جنت

جبرائیل وکړ په اس باندې آواز | اے براقه دا د څه کار کړې اغاز

بې ادبه وکړه تا بې ادبي | او سره د محمد رسول نبي

نه یو هیڅ هېرې چې دا کوم کس دے عیان | چې په تا باندې سوریږي دا زمان

د او یا زرو عالمو دے صاحب | زر له دې بې ادبي نه شه تائب

# ابیات رباعي در مدحت سلطان الانبیاء

هسې شاه دے دګدا په حال ګاه دے — هم په ورځې د قیامت شفاعت خواه دے

له صفت اول کمال به څه وایم — دغه بس چې محمد رسول الله دے

براق ووئیل چې یا جبرئیل امینه — مه کړه ما سره سختي د خپل یقینه

سبب دا چې حاجتمند یم زه بسیار — کوم عرض یو په دې نبي رو ئیدار

حضرت ووې وکړه عرض برابر — چې حاجت دې تمام واړه کړم د سر

براق ووې یا سروره یا رسوله — په درګاه درب رحیم کریم قبوله

په دا شپه چې په دولت د سعادت — مشرف یم ستا په دېر بنه وصالت

خوشبوئي پاکي نه ستا زما وجود — رنس ونیوه آرام یې وکړ زود

او هر کله چې ورځ راشي د قیامت — د بر اسونه تېز رفتار به د جنت

په خدمت بابرکت کښې به ستا نور — تاله راولي په هغو به شي سور

ما به پرېږدې د سورلۍ خپلې محروم — یا رسول یا حبیب د قیوم

زه ددې خبرې نه لرم طاقت — نن شپه مراد زما حاصل کړه داساعت

پس له هغې قدم بږده مې په رکاب — رسول وکړ ورته هسې شان جواب

اے براقه په قیامت به هم په تا باندې — زه سورېږم ته به یې زما د لاندې

دا وعده ورسره وکړه پاک رسول — سوال د اس یې کړ په بنه شان قبول

نو براق کړ د حضرت په ځانه تعظیم — پس د هغې شه پرې سور رسول کریم

دا دے نقل چې هغه شب مشرق — اتیا زره د براق په ښي طرف

او اتیا زره ملک یې په کین لور — هم اتیا زره په ښي طرف یې نور

د براق نه وو ولاړ په ډېر تعظیم — او هر یو ملک د نور د عرش کریم

نو یوه یوه ښه شمع یې په لاس — وه نیولې ځلېد و ځکه په لاس پاس

اوده تولې شمعې ورانده دحضرت — بلېدې اوپه شعاع ئې سلامت

د بطحیٰ مېدان په شان د دار جلال — کل روښان منور شوے وو سنبال

خوشبوئې نه د قدسیانو روح اکثر — بنه شان شوي وو خوشبویه معطّر

چې سل زره نمر سپوږمۍ ستوري قطار شي — ممکن نه دي چې دا رنګ مشعله دار شي

حکم وکړ رب رحیم الله جلیل — هسې شان منان رحمان په جبرئیل

چې اویا زره پردې چې ما د نور — او په مخ د حبیبؑ خېل چې مې حضور

غوږ ولې ده یوه کړه ترې نه پورته — هر چې پورته کړه یوه پرده بل لورته

دا رنګ نور عظیم ښکاره شه ترې نه پاس — د ملکو شمعې تورې شوې په لاس

# بیت د دیوان د مصنف علیه الغفران

۱۲۵

رښتیا ئې د دېوي نښته د نمر مخکښې — هسې نمر وینم بې نوره ستا په مخکښې

چې یوسل شپېته د نور د عرش شمعې — بلېدلې تولې مړې شولې په جمعې

دي معنیٰ کښې عالمانو اشارت — دې عجیبې لطیفې ته کړي دوئې نیت

اے فقیره یوه شه هر چې د یو نور — د اویا زرو نورو نو نه حضور

۱۲۶

د سرور خبرا لبشر علیه السلام — د عرش یوسل شپېته کل نور تمام

توره وې یوسل شپېته نوره اکثر — چې یوه پرده شوه پورته د سرورؐ

سره ددې خبرې دا ئې حد — بلکې نور دے مخلوقې د محمدؐ

۱۲۷

چرې یو زر یو نومونه د ستار — د یو زر یو صفتونو د جبّار

او د یو زر یو اسمونو تجلّي — هم یو زر یو صفتونو تجلّي

دا تیرې د ګناهونو زمونږ کل — چې نابوده کړي په خاص اوکرم خپل

شه عجیبه ده چې په کرم خاص — د تیرو د ګناهونو کړي مونږ خلاص

القصه هر چې د رسول آخر زمان — په براق برق رفتار سور شه کوم آن

څوڼې واګي د براق د جنت بشکلي
پاک رسول به په خپل لاس سره راښکلي

جبرئیل ووئیل یا رسول پاکه
واګي سستې د براق پرېږده دواړه

دے په حکم دے محکوم د پاک سبحان
چې په کوم طرف ته دے چې دے روان

دے به په پېژني د هغې ځائے طرف
د بریښه پېژني هغه ځائے مشرق

حاصل دا دے چې براق دا رنګ روان شه
په جلدي لکه د غشي د کمان شه

چې زمونږه پاک سرور خیرالبشر
په جلدۍ کښې دي وئیلي برابر

که پرېښو مې زغلېده هغه ساعت
او که چرې ورکاوه مې حرکت

الوته لکه په مثل د نظر
د نظره به لاتېز ته پاس په بر

پس له هغې جبرائیل علیه اسلام
پاک رسول ته زمونږ وکړ دا کلام

که په لار کښې درته وکړ چا آواز
په خبرو ورسره نشې همراز

که څوک غواړي د ور نشې په څم باب
که پوښتنه کوي ورنه کړې جواب

ما به وویني په بیت المقدس کښې
دلته دا یو روایت کړي په هوس کښې

جبرئیل او د ملکو څه لښکر
او د ورستو د سرور خیرالبشر

بعضې نبي بعضې ملک په کیڼ طرف
د رسول سره روان وو صف په صف

نو سرور خیرالبشر آخر زمان
۱۲۸ مقدّس باندې داخل شه په دا آن

هسې رنګ دے دلته بل دا روایت
دي وئیلي هسې شان زمونږ حضرت

چې هر کله مې دا نیت وکړ تیار
بیکې بیت المقدس ته د رفتار

جبرئیل مې په رکاب اېښے وو لاس
اسرافیل زما زین پوش په اوږه پاس

اچولے وو او ما لره د بر شرم
د لویه ددغه د حال راته د بر ګرم

ورته عذر مې کاوه نور اسرافیل
ماته ووې یا حبیبه د جلیل

ما مونده چې نن شپه دے دا خدمت
دا په څو زرو کلونو عبادت

او په مراد د دواړو جهان مې ضرور
غوره کړي دي په د بر هوس سرور

کیفیت د دي خدمت مونږ وې سیاله
زما دا دے چې مې بښه څو زره کاله

په خدمت کښې د الله رحیم کریم — او دلته یې مې کړل تېر د عرش عظیم

د درګاه د پاک الله دا غږ خطاب — چې خدمت مې ستا قبول کړ ما ثواب

دا یې ووې وایه څه غواړې خلعت — نو ما هسې وکړ دا عرض په نیت

یا الله چې دا خلعت ماله بسیار — راکوې نو دا خلعت تمام تیار

ما په وارو خاکسارا نو د اُمت — دې بخښلي ددې کس صاحب دولت

چې نوم پاک یې تا د خپل اسم سره — په پایه د عرش لیکلي دي ښکاره

او خداوند زما دا ارزو ده د پره — هرچې دا بنده ستا غوره زیات د شمېره

چرې راشي دېردې نه د عدم — چې کوم وقت راشي وجود ته د عالم

ماته وبخښه توفیق یو لږ ساعت — چې د هغې مبارک وکړم خدمت

حکم راغې د الله رب الجلیله — دې بنده له به زما اے اسرافیله

یوه شپه به وي د قرب د کرامت — د نقطې د زمکې پاس پورته اوچت

اسمانونوته راخېژي به ضرور — دروازې د خزانو به د ظهور

(۱۲۹) په کونجه د ظهور پرانځي سرور — دروازې د خزانو زما اکثر

د مکې نه به مسجد اقصی ته سور — بیا یم بیا به یې خېژوم آسمانه لوړ

د مکې نه د مسجد اقصی ترحد — د زرین پوش خدمت ستا د محمد

په خدمت کښې به ده ورلو د زرین پوش — د هغه کښې به ته اوسې په دېر هوس

اے حبیبه د الله ته شهنشاه — یې زمونږ ه او مونږ ټول یوستا سپاه

بیکې نور شاهان د سورې دي په شان — اوته یې د نور اقدس نه د سبحان

ته یې هسې شهنشاه د نهایت — زیات عزت نه دے ملک زرین پوش اوچت

په اوږ د پاسه وړې دي برابر — ته عزیز یې دوست محبوب د پاک اکبر

ته سلطان یې او مونږ یو دي نوکران — ته صاحب یې او مونږ یو دي غلامان

او خبر په عاجزی زمونږ ه باندې — په زاری ټول خالي لاس یوستا دراندې

ټول راغلي یو مونږ ستا په استقبال — القصه سرور زمونږ وایې دا قال

هرچې څهٔ قدرپهٔ لارلاړم د راز
پهٔ ښي لور وکړ یوکس زما آواز

دا ته یٔ ووې محمّده پهٔ تلوار
بالکل مهٔ څه شوې روان پهٔ خطالار

یعني نېکه د الله لاره عطا
تاکره ترکه شوې روان پهٔ لارخطا

ما وُنهٔ کړ لا نَعَم ورته دلشاد
وصیت دجبرئیل مې لرهٔ [۱۳۰] یاد

پس له هغې کیڼ طرف نه مې داشان
آواز واورېدهٔ پهٔ غوږ وهې عیان

ما وُنهٔ کړه ورته هیڅ قدرې گفتار
برابر شوم ترې روان پهٔ خپله لار

او خپل ځان یٔ قسما قسم پهٔ زیور
بنهٔ جوړ کړے وو خپل ځان یٔ سراسر

د براق زما د وړاندې شوه راپورته
ماته یٔ ووې چې دکوره زما لورته

یوساعت وکړه دلې کښېته آرام
څهٔ پټ رازدے درته وایمه تمام

ما وُنهٔ کړ ورته هیڅ قدرې نظر
او براق مې ترې پهٔ منډه کړ تېز تر

پس له هغې جبرئیل نه مې کل حال
د دوئ وُپوښتهٔ چې څوک وو دا رجال [ل ۱۳۱]

جبرائیل وې چې اول آواز پهٔ زود
درته کړے وو هغه وو بد یهود

کهٔ رجوع دې ورته کړے وے پهٔ نیت
یهود شوے به وو ستا تمام اُمت

او دوېم چې درته کړے وو آواز
نو هغه وو نصارئ نجس بې نماز

کهٔ دې کړے خیال ددهٔ وے پهٔ کلام
امت ستا نصارئ شوے به وو تمام

بلکې وائي دا پهٔ یو روایت باندې
آوازونه هم دارنگې ورستو وړاندې

چې سرور خیرا لبشربه اورېدل
شاه لولاک ورته زموږ څهٔ نهٔ وئیل

جبرئیل وې پهٔ آواز دوړاندې کس
کهٔ رجوع خیال دې وې کړے لکه نُس

مشرک شوے به وه ستا امت اکثر
شکر دا رجوع وُنهٔ کړه پاک سرور

کهٔ آواز د ورستو کس ته کهٔ دې خیال
چرې کړے وے ذرّه او یو مثقال

[۱۳۲] ستا اُمّت آتش پرست او هم به گبر
ټول به شوے وه نو شکر کړه پهٔ صبر

او کهٔ چرې هغې ښځې ته چې ځان
خپل یٔ بنهٔ پهٔ زیورا تو پهٔ بنهٔ شان

بنائسته کړے وه پهٔ هر قسم زیور
کهٔ دې خیال وې ورته کړے برابر

نو دا بعځه وه د نیاکه دې نظر — چرې دې ته دِ وي کړے لرو بر

د حرص نه به دِ کل واړه امت — د دنیا به پرست شوے وه په نیت

# اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلٰى نَعْمَائِهِ

او ثناده د الله پروردګار — هم په واړو نعمتونو دستار

# غزل په نعت د محبوب سبحان اله دیوان د

## مصنف علیه الغفران

رب دِ ا بسنے تاج په سر دے دلولاک — اسم ستا دے محمد احمد محمود پاک

ستا د مخه دا دنیا الله پیدا کړه — ګندې چرته به وې زمکې یا افلاک

د آدم د پیدا ښش سبب هم ته يې — ستا د رویه آدم جوړې کړد خاک

رب قادر په خپل قدرت دے چې حکیم دے — د بل چا نشته په دې کښې څه ادراک

چې ابلیس شه نافرمان ځکه شیطان شه — چې د خپل ګناه يې وُنه لاره باک

آدم خلاص شه ستا د مخه توبه ګار شه — چې په خپل ګناه پخدده شه غمناک

د جنته را بهر شه نور معاف شه — په اولاد يې شه آباد تمام املاک

ستا د رویه ستا امت هم مشرف شه — چې نبیانو وو ستا امت ته په پسخاک

په آخر به د هغو پایه وي لویه — چې لري ځان ستا په در خس و خاشاک

شا د محمد لمن ټینګه د رسول کړه

چې دِ واړه نفس شیطان کاندې په واک

القصه په آوازونو کښې حکمت — نه کولو التفات کښې د حضرت

په دا رنګ ویلې شوي دي اکثر — همیشه به نه بنه زړه پاک د پاک سرور

دو غم جن او هم ملال وو چې امت — زما پس له ما په دین د اسلام ټیت

څرنګ پاتې مستقیم بهٔ شي پهٔ دین
چې دا لاردرب زما ده پهٔ یقین

نو پهٔ دا محل کښې پاک پرور دګار
تسلي د ذړهٔ پاک وکړه د رویږدار

او یقین ئې بنهٔ ثابت شهٔ د حضرت
چې به پس زمانه کل زما اُمّت

وي ثابت به دوئ زمانهٔ دین اسلام
ددې لارې د اسلام به نهٔ بړ دي کام

## الحمد لِلّٰهِ العظیم والشکر لِلّٰهِ الکریم -

بلکې یو روایت دا دے چې سروٌر
هسې شانې دي وئیلي برابر

پس له هغې نه زړهٔ را غلم پهٔ یوسنګ
چې پهٔ منځ کښې ئې لرو[۱۳۳] یو سورے تنګ

او اوبهٔ به راوتلې ترې بېهر
بیا سورې به د کاڼي سراسر

د دغه تلوبه ئې وکړلو اختیار
مګر تلے به پهٔ کښې نهٔ شوې بیا دوبار

جبرئیل ته ئې پوښتنه کړه د حال
هغه ووې چې د خولې دے دا مثال

دا سورے د خولې مثال دے نیزدې لرې
او اوبهٔ دي پهٔ مثال ددې خبرې

دا تمثیل دے برابر ستا پهٔ تعلیم
یعني تا ته دا بنوول الله رحیم

او هر کله چې خبره د دهانه
بهر ووځي بېرته نهٔ ورځي پهٔ ګرانه

چې خبره شي د خولې د چا بهر
بیا پهٔ بېرته خولې له نهٔ راځي اکثر

پس له هغې نه رسول آخر زمان
هسې شان ئې پهٔ ژبانِ درفشان

دي د ئیلي چې درې کسه برابر
ماله مخې لره را غلهٔ لرو سر

چې یو زوړ وو یو میانه وو او بوځوان
زوړ میانه ته مې وُنهٔ کتل پهٔ ځان

او د ځوان سره مې وکړ التفات
جبرئیل ووې یا دوسته د پاک ذات

زړهٔ کومه تاته دې کښې و صیّت
زوړ سړے وو د دنیا مال و دولت

او میانه ددې دنیا وو طالع بخت
او دا ځوان وو عافیت د نیکۍ بخت

بلکې ځوان و عافیت بنهٔ برابر
تا دولت او بخت د دنیا ته د نظر

وَ دِ سکړ دي دنیاته ذره خیالے … او اختیار دِ عاقبت کړېنه ستیال

بنهٔ دِ وکړه دحساب دخداه دپر … چې دِ بخت او د دولت د دنیا تېر

او ددې دواړو جهانو د نعمت … غوره کړے چې دِ څوان دے عاقبت

نو دِ زبرے مبارک شه یارسولؐ … چې درجه د عاقبت دِ کړه حصوله

چې پهٔ دې دواړه جهانه عاقبت … هم به ستا وي هم به وي ستا دامت

پس ئې ماله دوه پیالې راوړې فی الحال … سرپوشونه پرې پراتهٔ وو بنهٔ سنبال

یوه دکه وه دپیئو سر د سَرَ ه … بله دکه د شرابو وه اکثره

پهٔ بنې لور پیاله دپیئو مې وه دکه … د شرابو مې کیڼ لورته وه بېشکه

ما پیاله د شیرا ختیا دکره پهٔ زړهٔ خوړ … هغه پرې مې وڅښل بنهٔ شو مه پرې موړ

جبرائیل دا راته وو دې یا حضرتهٔ … مبارک شه چې دهسې هدایته

مبارک شه چې تا وکړ هدایت … پهٔ محکمې زارې سم دِ کړ اُمت

او حرام دِ کړهٔ شراب پهٔ اُمت خپل … هم دِ دا جهان پهٔ لاس راوړ بالکل

او هم دا دِ ورپهٔ لاس هغه جهان … ستا پهٔ لاس دواړه جهانه کړهٔ بیان

پس له هغې نه دوه جامه ئې ماته پیېن … وراندې راوړل یو د آب یو د ګبین

ما دواړونه نذر وڅښل پهٔ تلوار … جبرائیل راته بیا وکړ دا ګفتار

بنهٔ دِ وکړل چې دا شهد برابر … باقي واله دا امت دے ستا اکثر

تر قیامت به وي واړه سلامت … دے ګبین ستا باقي واله د اُمت

آب سبب دے د ویښلو دا عمال … د پاکوالي دامت ستا دے سنبال

دا عمالو دوینزلو دِ سبب … او بهٔ ستا امت پاکواله دے مطلب

د پاکوالي داُمت ستا دے عیان … صاحبانو پښېماني له پهٔ بنهٔ شان

پس له هغې چې مې قطعه کړه تهٔ لار … جبرائیل راغه دوراندې پهٔ تلوار

راوړ حکم ئې د پاک غني اکبره … راته ئې ووې دلته کوزشه یا سروره

نمونځ ادا کړه پاک الله له دا ساعت … چې دا ځائے دے برابرستا د هجرت

دو دا ځاے د مدینې د مکه زمین — نو رسول مقبول راکوز شهٔ هغه حین

نمونځ ادا کړو پاک نبیؐ اخر زمانے — بیا براق د پاسه سور شهٔ شهٔ روان

او د طور سینا ځاے ته پهٔ یو گام — هم مولد ته د عیسیٰ علیه السلام

چې پهٔ دا دوه ځایه و د رسېد حضرت — کوز شهٔ نمونځ له جبرئیل پهٔ اشارت

نمونځ یې وکړ بیا یې اس روان پهٔ لار کړ — پس له هغې یو سړے راته اظهار کړ

چې گېډے لوې یې ترلے د خشاک وو — د پردرانهٔ وو چې بهَردده[134] دواک وو

هېڅ ددې گېډو یې نهٔ لارهٔ طاقت — چې کړي دا گېډے پهٔ سر باندې اوچت

زر زر نور خشاک یې راوړې وسواسه — بیا به یې کېښنوده ددې گېډې د پاسه

جبرئیل نه مې پوښتنه ددې باب — وکړه راکړ جبرئیل هسې جواب

چې هم دا سړے خارص دے لري طمعَ — زیات د خرڅه دومره مال دے دده جمعَ

د حرص نه زیاتوي ور باندې نور — کهٔ اگر لري د سل کالو خرڅ کور

پس له هغې یو سړے مې ولید سم — چې بوقه به یې پهٔ کوهي کښې دم پهٔ دم

غورزوله به یې کوهي کښې برابره — چې به یې ویسته کل به تشه وه اکثره

جبرئیلؑ راته ددې ووې دا شان — دا اعمال د دنیا کارو دي عیان

او چې دا کار یې پهٔ ځان د نخو محنت — عاقبت به خالي لاس وي پهٔ قیامت

وي پهٔ شان د مفلسانو به روان — او اعوذ بالله منه[135] د شیطان

شاد محمد غلام او سه درویش ار

چې حبیب دے او هم دوست دے دستار

د پر کرم کړے پهٔ امت د پاک رسولؐ — د دنیا ورته یو کار نهٔ دے قبول

## غزل د دیوان د مصنف علیه الغفران

## پهٔ محمدؐ پهٔ لوئي د احمدؐ اخر زمانؐ

ستا د رنگه عکس موندے دے گلاب — هم د نوره دِ نور موندے دے آفتاب

کُل عالم به ستا د حُسنه وو سوخته شوے
کهٔ د مخه دِ دور کړے وے نقاب

ننګ و نام به اواره لګه مجنون کړي
کهٔ چا نوش کړهٔ ستا د مینې سرهٔ شراب

چې دِ زلفو کښې قطار کړه څلور ګله
د سنګار پهٔ زیب دِ ختم کړ حساب

څوک به ستا پهٔ حسن ولې قائل نهٔ وي
چې محبوب دِ رته و ئیلے دے تواب

ستا د حسن [۱۳۶] به څوک څهٔ برابري کړي
چې الله د دوست د رکړے دے خطاب

د خوبانو شهنشاه او سربالا یې
سیال دِ نشته د جمال د هر هر باب

شک به ستا د جمال لرې کړي د زړهٔ نه
ستا جمال کهٔ ورښکاره شهٔ بې حجاب

پهٔ تاثیر دِ د جمال سیاه سُفید شي
چې کوم د م شي ستا د حسنه بهره یاب

د نیک بختو پهٔ لړه کښې به شمار شي
ستا جمال چې یُې لیدلے وي پهٔ خواب

شاد محمد دِ سپے د دردے درته پروت دے
ستا د درنه یُې جدا مهٔ کړه وهّاب

# غزل دویم د دیوان مصنف علیه الغفران پهٔ تمثال د حرصناک

هر سړے شهٔ حرصناک لګه ذباب [۱۳۷]
حرص ځیل د ځپله ابه کړه بې اب

پهٔ طعام یُې د دشمن وي سترګې وازې
یو پهٔ زر سوا د سپې نه وي خراب

لته ور کړي ننګ ناموس حیا غیرت له
ځان مشهور کړي پهٔ عالمو کښې کذاب [۱۳۸]

بعضې خلق پهٔ جامه سپین پهٔ خوئې ګمین وي [۱۳۹]
څهٔ کهٔ ښکاري غټې او څور ب مست دواب [۱۴۰]

ډېره غوښه د بنده پهٔ ځان تاوان ده
چارپایان پرې ښکاري غوره پهٔ هر باب

پهٔ خوراک د غوښې غوښه [۱۴۱] زیاته کېږي
ډېر ناترس شي پهٔ عاجزو بد قصاب

خورد و نوش یُې غوښې وینې وي د خوارو
خوف خطر نهٔ لري زړهٔ کښې د تواب

لا به فخر پهٔ لوټېلو کړي د خوارو
پهٔ ګرند به یُې خورسند وي بحساب

هېڅ اثر د رحم نهٔ لري پهٔ زړهٔ کښې  وي ظالم پهٔ مرغانچه لکه عُقاب

بعضې مثل د تعويذ انښې وي دود ے  ناخبره پرې پرېوځي پهٔ عذاب

لکه بېره چې غلوڅکي سرے ونغوړي  د پښې پهٔ نيت سرے کاندې بېتاب

پهٔ مرئ کښې د هغه ونښلي سختې  نهٔ تېرېږي بې اوبو او بې لعاب

پهٔ دوستئ کښې پهٔ فرېب کړي سرے لاندې  ځان هسې وکړي ښکاري ونيسي غُراب

په ظاهر ښکاري ايرے په کښې سور اور وي  او چت بوس ښکاري ترې لاندې وي سېلاب

مشر کشر لوې ورو کے پکښې نشته  ورور د ورور او[١٤٢] زوې د پلار نهٔ کړي آداب

د عاجزو پهٔ آزار به خوشحالېږي  پهٔ زړهٔ نهٔ لري هېڅ وېره د وهّاب

کهٔ چا ځان پهٔ رنګ جامه د چا غلط کړ  لکه تږي چې غلط شي پهٔ سراب

لکه پېغله د زلمي پهٔ خيال خطا شي  چې بوډا چې وېښتهٔ رنګ کړي پهٔ خضاب

کوږ پهٔ زړهٔ نو خوږ پهٔ ژبه بعضې خلق شهٔ  هر هر چا د صدق لري کړې حجاب

پهٔ قسم او پهٔ طلاق به حصار نهٔ وي  نور پهٔ ګوته پټوي به د آفتاب

ظاهري ناحقه خپله به حق بولي  د کمزوري کله څوک مني جواب

کهٔ هر څوک غواړي نيکي د خپله دوسته  لکه وينې ځان بادشاه د خيال پهٔ خواب

يو ساعت به مستقيم پهٔ وعده نهٔ وي  وعده قول يې وي نرم تر خشاب[١٤٣]

آخر تلل دي د دنيا نه خوف پکار دے  هر نفس به نوش د مرګ کاندې شراب

شاد **محمد** منافق او کاذب نهٔ شې
چې مشهور دې پهٔ کاذب نشي خطاب

# فصل دے پنځم په بيان د هغو واقعو

## چې احمدؐ ته په بيت المقدس کښې ظاهرې شوې

دا دے نقل چې رسولؐ آخر زمان — حکم کړے دے په هسې شان عيان

چې هر کله زه مسجد اقصیٰ ته سم — په کوم وخت چې شوم داخل پکښې کوم دم

د ملکو ټولګے وليد ما ستيال — چې راغلے وو زما په استقبال

او هم ماله يې د جانبه د پاک رب — د بزرګه زيرے يې راکړه بشه عجب

دے ټولګي د ملائکو بزرګو تام — چې په ما يې په دا شان لوسته سلام

### اَلسَّلَامُ عَلَيکَ يَا اَوَّلُ يَا اٰخِرُ يَا حَاشِرُ

نو ما وويل جبريئله دا کوم شان — په کوم قسم کړې سلام په ما عيان

دا ته ووې جبريئلؐ هغه ساعت — چې اول يې ته شفيع او شفاعت

په درګاه د رب کښې ستا به وي قبول — او آخر د انبياؤ يې رسولؐ

يا تبدل هم د مخلوق به په قيامت — قدمونو کښې به ستا وي سلامت

واقع کيږي به کل حشر برابر — قدمونو کښې به ستا وي سراسر

پس له هغې نه جبرئيلؐ امين ضرور — د براق نه کړم زه ښکته په سرور

او په شا د يې مسجد اقصیٰ سباله — يو حلقه وه د بره دکه دکماله

چې تمامو انبياؤ به آسونه — په هغې پورې تړل په هوسونه

نو زما براق يې هم جبرئيل امين — په ګړه پورې بسته کړ هغه حين

او وه بيا سته يې د ډيرنمو د جنت — دې حلقې سره يې بسته کړ سلامت

پس د هغې نه په بيت المقدس — شوم د ننه په خوشې او په هوس

يو ټولګے د مرسلانو د مرسلو — هم د واړو انبياؤ مکملو

استقبال له يې زما تشريف سنبال — وو راوړے دوي زما په استقبال

او شرطونه د بزرګه تمام اکثر — ماته ووې رسول واړو برابر

د لته یو روایت وائي هسې شان
چې روحونه پاک د دوئ الله سبحان

هلته واړه جمعه کړي وو تمام
نو ما ؤ پوښتهٔ جبرئیل علیه سلام

پهٔ جواب کښې راته ؤوې هسې شان
چې دا روحونه ستا دي کل پیغمبرانُ

یا سروره ته شه وړاندې او سن فی الحال
وکړه لمونځ د ذوالجلال

او سره د دو لمونځېلو کړه ادا
چې دوئ ټول درپسې وکړې اقتدا

بلکې زهٔ ئې هلته کړم امام
ملائکو انبیاؤ کل تمام

ما پسې اقتدا وکړله تیاره
او هر کله چې فارغ شو لمونځ د کاره

او له بعضې انبیاؤ خاص الخاص
پهٔ ثنائې شروع وکړه پهٔ اخلاص

او هغه خاص فضائل دده پهٔ حق
چې له دهٔ سره به خاص وو معلق

نو هغه فضائل خاص دده د ځان
پهٔ شان فضائل خپل به ئې کړل بیان

اول دا ثنا شروع کړه ابراهیم
چې خلیل ورته وئیلي دي قدیم

# الحمد لله الذی اتخذنی خلیلا حمدا

چې ثنا ده هغه خدائے لره د سره
او چې زهٔ ئې پهٔ دوستئ سره کړم غوره

هم ئې ملک دے را بخښلے لوئې عظیم
هم یوائې امت کړے یم قدیم

# اِنَّ اِبْرٰهِیْمَ کَانَ اُمَّةً قَانِتًا لِّلّٰہِ ۱۴۴

هم ئې کړے یم د خلقو مقتدا
هم خلیل راته وئیلي دي خدا

او د اور نه د نمرود علیه لعنت
خلاصے ماله دے راکړے سلامت

هغه اور ئې پهٔ ما کړ سالم یخ
هم پهٔ ټول امت یوائې ئې کړم لمونځ

پس له هغې نه موسیٰ علیه السلام
پهٔ درګاه دالله ؤکړ دا کلام

## الحمد لله الذی کلمنی تکلیما

ده ثنا د هغه خدای چې دی قدیم — او چې زه یې د خپل ځان کړمه کلیم

او هم زه یې په اوو ایاتو رب — معجزو باندې خصوص کړمه عجب

او د کانړي غوندې ځينې هسې حقير — د اوبو دولس چينې الله قدير

نو د پاره یې زما کړې لې بهر — هم د پاره د امت زما اکبر

من سلوی یې کړه نازل مې په امت — هم یې ابر کړ سایه په موږ اوچت

او هم ماته یې تورات دی عطا کړی — هم یې مالره دا رنګ امت راکړی

چې په حق کښې یې د دوی الله پاک ذات — رالېږلی دی په ښه شان دا ایات

## وَمِنْ قَوْمِ مُوسٰى اُمَّةٌ يَهْدُوْنَ بِالْحَقِّ وَبِهٖ يَعْدِلُوْنَ

[۱۴۵] [۱۴۶]

پس له هغې نه دا ووې پيغمبر — په زبان یې هسې ووې برابر

## اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِی عَلَّمَنِی الزَّبُوْرَ

چې ثنا ده هغه خدای لره ضرور — او چې ماته یې تعليم د ښه زبور

بخشش کړی یې دی ماته رب رحيم — د زبور یې را بخښلی دی تعليم

او په ما باندې یې کښېښوده احسان — هم مخصوص یې کړمه زه په خوش الحان

او سره او سپينه نه به وه هيڅ ګرمه — زما لاس به هغه سخته کړله نرمه[۱۴۷]

او هم غرونه او هم مرغان یې سراسر — تمامي واړه زما یې کړه مسخر

مملکت یې د جالوت د حد بېقياس — تمام واړه راکړه رب زما په لاس

حکومت او خلافت ماته ثواب — راکړ مالره یې هم فصل الخطاب[۱۴۸]

پس له هغې سليمان عليه السلام — هسې شان یې په زبان وکړ کلام

## الحمد لله الذی سخر لی الریاح والجن والشیاطین

ثنا شکر دے د هغې پاک ستار     چې باد ونه ئې زما کړل په اختیار

او لښکرې د همه واړو د پریانو     کل محکوم ئې هم زما کړه د پیریانو

او د هر قسم څیزونه ئې عجائب     جوړول زما د پاره ئې غرائب

په ژبان د مرغو پوئې کړم رب رحیم     هم ئې ماته عنایت کړ ملک عظیم

چې صفت کښې د کمال د هغه ذیات     پاک الله دے را لېږلے دا ایات

## قَالَ رَبِّ[۱۴۹] اغْفِرْ لِي وَهَبْ[۱۵۰] لِي مُلْكًا لَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ مِنْ بَعْدِي[۱۵۱]

او نه بناي نه ورکړے دے پاک رب     دا رنګ ملک عظیم بل کس لره عجب

ملک او مال زما ئې پاک کړ کل زما تے     بدګې پاک ئې کړ زما په هسې شان

چې نعمت ئې د حساب نه بې حساب دے     مهربانه په هر چا باندې ثواب دے

پس له هغې عیسیٰ روح الله مسیح     هسې شان ئې په ژبان ووې فصیح

## الحمد لله الذی جعلنی کلمة منه وروح منه

او ثنا ده د هغه الله غفور     چې ئې زه کلمه خپله کړم ضرور

زه ئې وبللم روح الله سبحان     او مثال د پید اښت زما د ځان

د بابا آدم په مثل په مثال     پید اښت ئې کړ زما هسې سنبال

او په ګېډه کښې ئې ماته د مادر     تعلیم وکړ د کتاب خپل برابر

هغه ګنج د حکمتونو کل تمام     چې په کل واړو ګنجونو هر کلام

کارخانه هم د معنو پښتو غفور     د توریت او د انجیل او د زبور

همه واړه ماته ئې راکړه رب رحیم     چې په ښه شان راته رب وکړ تعلیم

چې به وا خښته ماخته کوم ساعت — د مارغهٔ به ترې نه جوړ کړ ما صورت

او پوکے به مې د ننه پهٔ وجود — د هغه کښې چې به ما پوکړ پهٔ زود

پاک الله به پهٔ کمال قدرت خپل — دا مارغهٔ به کړ ژوندے لکه د بل

د غبدل دیهڼ د برص هم د کوړ — کړل زما پهٔ حواله د ناجوړ جوړ ۱۵۲

او هم زهٔ یې د یاغیانو د آمت — آسمانونوته یې بوتلمه اوچت

د همه واړو ناپاکو یې کړم پاک — چې مکان زما سبحان کړ پهٔ افلاک

زه او مور زما الله رحیم مونږ دواړه — وُساتلو پهٔ پناه د آفت واړه

پهٔ هیڅ شان سره شیطان لعین مردار — هرګز نهٔ وه بیا موندلي پهٔ ما لار

پهٔ دا ځائے کښې وایې دا زمونږ حضرت — چې دا کل دا نبیاؤ جماعت

د وئیلو د ثنا یې شو فراغ — نو ما هم پهٔ ثنا پرانست دزړهٔ باغ

ثنا ووئیله ما د پاک ستار — وُوې ما ثنا او شکر دے بسیار

هغه خدائے لره چې زهٔ یې بشهٔ رحمت — کړ ځولے د عالمو یم صحت

او پهٔ ټولو طائفو مخلوق اکثر — کړم مبعوث پیغمبر په بانديې اکبر

هم یې زهٔ کړمه د دوئي بشیر نذیر ۱۵۳ — هم فرقان ماته عطا کړ پاک قدیر ۱۵۴

چې پهٔ دهٔ کښې د هرڅیز ښکلے بیان دے — را لیږلے دا فرقان پهٔ ما سبحان دے

بهترین یې کړ امت زما بسیار — د کل واړو امتیانو نه ستار

هم یې دوئ پهٔ وسط عدل وبلل — هم اول آخر یې دوي ته ووئیل

او سینه یې زما شق کړه برابر — غلّ غش یې ترې نه بېرته کړه بهر

او بلند یې کړ هر ځائے کښې زما نوم — پهٔ فاتح او پهٔ خاتم یې کړ معلوم

و بللم پهٔ فاتح خاتم سبحان — دے پهٔ بعضو روایاتو کښې دا شان

چې په هسې کلماتو کمالاتو — د بخشش د صفتو نو د درجاتو

چې الله رحیم کریم پهٔ پاک حضرت — چې خاص کړے دے زیات کړے نهایت

هغه داده یقین وکړه برابر — چې وئیلي دي دا پاک نبي سرور ۴

# الحمد لله الذی جعلنی فائقاً

ثنا حمد دے د الله رحیم لائق
چې یې زهٔ کړم پهٔ تمام جهان فائق

بلکې مراد دے د فائق نه دا پهٔ قدر
کشائش فتحه د ورځې ده د بدر

او هم زهٔ کړم محکم الله سبحان
پهٔ تفسیر فاتح کښې وائي هسې شان

او اول چې به د قبر نه غفور
پا څوي هغه به زهٔ یمه ضرور

او نبیان یې پهٔ ما ختم کړل اکبر
چې به پس زمانه نهٔ وي پیغمبر

زهٔ یې اول او هم آخر شاهد بشیر کړم
بلکې هم یې مزکي او هم نذیر کړم

او بلونکے شوم د خلقو برابر
په طرف د هغه خدائے غني اکبر

د سراج منیر یې راکړ بنهٔ خطاب
او هم زهٔ یې پهٔ قرآن کښې پاک تواب

کتابونو پخوانو کښې پاک احد
پهٔ انجیل کښې وبللم پهٔ احمدؐ

پهٔ زبور شریف کښې زهٔ الله ودود
یم بللے پهٔ نامه سره محمودؐ

او پهٔ نورو کتابونو کښې ظاهر
یم بللے متقيؐ عاقب حاشرؐ

هم یې زهٔ د عالمیانو کړم رحمت
او ثنا ده هغه خدائے له هر ساعت

چې تول مخ د زمکې واړه سراسر
ما د پاره یې مسجد کړې برابر

او هم خاک له الله غني تواب
حکم وکړه ما د پاره یې د آب

حکم دا د تیمم کړے پاک ذات
هم یې ماته را عطا کړه فتوحات

فتوحات د پېشکشو تمام بالکل
د همه غنیمتونو وبخښلے

خوا تمو د سورهٔ د بقره
بزرګ کرم زهٔ الله رحیم کریم اکبر

او الحمد یعني سبع مثاني
هم قرآن شریف یې راکړه لاثاني

امتونو نه یې بهتر راکړ امت
او هم علم یې کړ ماته عنایت

د بیان او د توحید او د قرآن
پهٔ آسانه وجه راکړ پاک سبحان

ملک خپل یې پهٔ امداد زما بسیار
او رالیږل الله غني ستار

او د پاره ئې زما د کل امّت | د توبې دروازه پرانستې تر قیامت

هم ئې ماته عنایت حوض کوثر کړ | په امت مې ئې د توبې کشاده در کړ

او هر کله چې الله د هر نبي | کړه قبوله ئې دعا په شه خوبې

پاک الله رحیم کریم غفار ستار | په بدل ددهٔ ئې مالره تیار

دے بدل کښې ذخیره د شفاعت | گناهگار ده راکړې د امّت

پاک سرور خیر البشر وائي دا شان | چې ثنا لویه درب کړه ما بیان

ابراهیم علیه الصلوٰة والسلام | حکم وکړ انبیاؤ ته تمام

کل تهو لگیته ئې حکم وکړ تر دې حد | هذا افضلکم پاک دے محمّد

او دا کس له تاسو زیات دے بهترین | نوم ددهٔ دے محمد خوب ترکیبن

پس همه پیغمبرانو سرا سر | په طرف زما ئې مخ کړ برابر

ورته ئې ووې چې اے پاکه محمّده | اے محبوبه او اے دوسته د احده

پاک الله تاله امّت ستاله ضرور | په بزرگو هسې کړ بزرگ الله غفور

او هیڅوک ئې په خلقت اولین کښې | نه دي هسې شان بزرگ کړي آخرین کښې

اوّلین او اخرین کښې په دا شان | هسې رنگ بزرگ کړي نه دي پاک سبحان

نه به هسې په بزرگه کړي مشرف | دا بزرگي ده د بل چا نه برطرف

فهم وکړه چې هر څه لري طاقت | آسان واله له رب غواړه د امت

آسان واله دا حکامو برابر | د امت د پاره غواړه له اکبر

پس له هغې بیا سرور خیر البشر | هسې شان حکم دے کړے برابر

جبرئیل علیه الصلوٰة والسلام | لاس ئې ونیوه زما کام و ناکام

د صخرې په سرئې ودرولم پاس | دا ده تیره معلّق په هوا پاس

چې په بیت المقدس کښې وه بیوته | معلّقه په هوا ده صخره کته

نو هر کله چې مې پورته کړ قدم | په صخره باندې مې پاس کښېښوده سم

شوه یوه اندازه پایه راته عیان | چې یو سرئې په صخره بل په آسمان

چې دد ې پهٔ شان شائسته ځیزچرې بل
مالیدلے چرې نهٔ وه پهٔ ژوند نهل

او د هغې پهٔ تعریف او پهٔ صفت
هسې دنګې دے را غلے روایت

د ینجرې پهٔ مثل وو دوه بازوګان
او پهٔ زمکه یُ وو یوسر بل پهٔ آسمان

یو بازو یُ د سرو یا توتو وو یې سیال
بل یُ وه د زمرّدو شنو سنبال

یو پایه یُ وه د طلا د سرو مینو
او یوه یُ وه د نقرې د زرو سپینو

او جړاوُ وه پهٔ یاقوتو پهٔ ګوهرو
پهٔ سرو سپینو بنه جړاوُ وه د جوهرو

نو پهٔ بعضو روایاتو کښې اکثر
خاص هغې اندرپایې لرل دوه پر

وو د سبزو زمرّدو یُ پرُ سم
چرې پرُ یُ غوړولے وې یو دم

تول جهان به یُ نیولے وه تمام
وو دد ې ینځوس مقامَ هر مقام

او یاکاله وه د هر یو مقام لار
هر مقام کښې فرشته الله ستار

مقربه تعین کړې وه پاک رب
هر مقام کښې د ملک هر مقرّب

ینځوس زره یُ تابع وو ملک نور
او هغو ملکو تولو لور پهٔ لور

ورکاوهٔ خپلو کښې زېرے دم پهٔ دم
دراتلو زما معراج ته د قدم

بکې دا اندرپایه وه دې د پاره
د ملکو وه د تلو او راتلو لاره

د آسمان نه راځې کوز زمکې ته لاندې
او د زمکې خېژې پاس پهٔ آسمان باندې

بعضې وائې د ملک الموت د پاره
قبضولو د روحونو پهٔ دې لاره

راکوزېږي او بیا خېژي پرې اوچت
او دا دنګ دے هسې وائې روایت

چې پهٔ وخت د ځنکدن د مسلمان
چې خبر ئې او تیارهٔ شي پرې چشمان

بکې دا اندرپایه ورته ښکاره شي
دے دد ې اندرپایې پهٔ ننداره شي

القصه چې پاک سرور آخرزمان
پهٔ براق باندې شهٔ سور پهٔ هغه آن

نو پهٔ دې اندرپایه وُختو اوچت
بکې وائې پهٔ بل یو روایت

جبرئیل زمونږ سرور خیرالبشر
پاس یُ کښېنا وهٔ رسول یُ پهٔ ځیل پر

پاک رسول یُ پاس داخل کړ پهٔ آسمان
او پهٔ یو روایت وائې هسې شان

جبرئیل وُویل ماته دا حضور ؐ    چې کړه دواړه سترګې پټې اوس ضرور
او هر کله چې مې سترګې کړلې بېرته    د اول آسمان داخل وُمه پاس سرته
واڼې دے یو روایت کښې پاک حضرت    چې شوم تېر اندرپا یُ نه کوم ساعت
نو ددې اندرپا یُ پهٔ اوچت سر    یو ملک عظیم مې ولید پهٔ نظر
او پرانستې یُ لرل بنهٔ دواړه لاس    اسمانونه زمکې لاس کښې یُ وو پاس
دا اووهٔ طبقه واړه آسمانونه    هم یُ زمکې وې نیولې پهٔ لا سونه
نو پهٔ ما باندې یُ واچوهٔ سلام    او تعظیم یُ وکړ ډېر د حد تمام
بیا یُ ووې راته اے پاکه رسولهٔ    دا الله رحیم کریم پهٔ در قبولهٔ
او پنځه ویشت زره کاله د آدم    پیدائش لا پهٔ خوا چې وه عدم
هم ددې اندرپا یُ زهٔ پهٔ دې سر    پاک الله زهٔ پهٔ دې ځائے کړم مقرّر
د مخې ورځې نه آن تر دې ساعت    محکم ستا مې زړهٔ کښې پروت دے محبت
همېشه ستا پهٔ درود به وُم مشغول    ستا راتلوته منتظر وُمه پهٔ نول
د راتلو دِ اُمېدوار وُم نهایت    مستعد شوم چې نن شپه پهٔ دې دولت
حضرت ووې دې ملکَ چې شوم تېر    یو دریاب راته ښکاره شهٔ وولوې ډېر
چې پلن واله وو هسې سم پهٔ شمار    او دوه سوه کاله یُ وه پهٔ پلنولار
او چې هرجاندار پهٔ زمکه یا پهٔ آب کښې    تول موجود ووهم پهٔ دې عظیم دریاب کښې
بلکې نوم ددې دریاب پهٔ حد سوا    تا صیه دے مُعلّق دے پهٔ هوا
او یو ځاڅکے ترېنه نهٔ ځاڅي د آب    رنګ صافي نهٔ دے د پرشین دے د دریاب
او شین واله چې لري دا آسمان سم    رنګ ددې دریاب دے والله اعلم
پس له مخې خزانې د باد پهٔ سر    ورته زهٔ وُرسېدمه برابر
دا بادونه پاک الله غني ستار    پهٔ اویا زرو زنځیرو یې پهٔ شمار
وُو تړلې او هر یو زنځیر عجب    پهٔ اویا زرو ملکو غني رب
وو سپارلے هر زنځیر سخت د فولاد    بیا مې کښېښودهٔ قدم پهٔ سرد باد

اوله بادنه چې شوم تېر له هغې پس ‏ ‏ ‏ ‏ نو داخل شومه په فلک په د پرهوس

بلکې فلک دے یو دریاب عظیم الشان ‏ ‏ ‏ ‏ اوپه منځ دے برابر ددې آسمان

چې لمن یې ده په هسې رنګ دا بشکلې ‏ ‏ ‏ ‏ په بنه شان زمکې ته بنه ده رسېدلې

د خېمې د پرده سرا یې ئې وه مثال ‏ ‏ ‏ ‏ هر آسمان له هم شته دا رنګ فلک سیال

او چې ستورې په دې فلک دریاب کښې سم ‏ ‏ ‏ ‏ لامبوزن په شان لامبو وهي هر دم

لکه هسې په کلام خپل کښې پاک رب ‏ ‏ ‏ ‏ هسې شان سره وئیلي دي عجب

## كُلٌّ فِىْ فَلَكٍ يَّسْبَحُوْنَ ه [156]

دا کل ستورې په دریاب د فلک کښې تل ‏ ‏ ‏ ‏ لامبوزن په شان لامبو وهي بالکل

حکم وشه دا دالله غني ستار ‏ ‏ ‏ ‏ فلک دریاب شو د دورې خپلې قرار

او تعظیم یې زما وکړ برابر ‏ ‏ ‏ ‏ قدم کښېښود شومه تېر د فلک په سر

د دنیا یعني په دې اول آسمان ‏ ‏ ‏ ‏ زه داخل شوم د دریاب نه په یو آن

عجائب او غرائب د دلاه دېر ‏ ‏ ‏ ‏ ولیدل په دې آسمان کښې مې بې شمېر

شپږم فصل کښې بیان به کړم دا باب ‏ ‏ ‏ ‏ بلکې والله اعلم بالصواب [157]

شا د محمد د سرور خیر البشر

لمن تېنګه کړه په لا سو برابر

ځان دې سپے کښه د در د پاک رسول ‏ ‏ ‏ ‏ کل احکام ئې کړه شرعي په ځان قبول

## غزل در صفتِ سَیّدُ الْمُرْسَلِیْن صلی الله علیه وآله وسلم [158]

دا دنیا کړه ستا د مخه رب پیدا ‏ ‏ ‏ ‏ ګوندې نه به وه زمین او نه سما

جمادات که حیوانات کل موجودات دي ‏ ‏ ‏ ‏ همګې پیدا د مخه کړه رب ستا

چې راضي دې په ظهور غني رحمان شه ‏ ‏ ‏ ‏ پس د هغې کړ پیدا آدم حوا

اول نُور يُ ستا پيدا کړ نورخُهٔ نهٔ وو — نهٔ جهان وو نهٔ پيدا وو هيڅ اشيا

نُور اول وجود اخر دِ پهٔ ظهورشهٔ — سرا خر يُ کړي تهٔ ختم الانبياء

کهٔ مرسل کهٔ انبياء کهٔ اولياء دي — د همه وارو الله کړي تهٔ پيشوا

اميدوار دِ د خلعت د شفاعت دي — کهٔ عاصيان کهٔ فاسقان دي کهٔ پارسا

د لوی حساب دې نشته دے سرورَه — چې ياد کړے پهٔ محبوب يُ کبريا

دا همه فضل پهٔ تا د خپل خالق دے — چې يُ تاج کړ د لولاک درته عطا

ستا پهٔ در باندې پراتهٔ لکه خشاک دي — کهٔ اميردے کهٔ بادشاه دے کهٔ گدا

مريضان دې صحت ياب پهٔ لږ نظر شي — تهٔ رحمت للعٰلمين يُ هم دوا

چې آدم ابوالبشر د هر انسان دے — تهٔ الله خبرا لبشر کړي د هر چا

کهٔ پهٔ ذرهٔ د چا تورداغ د کفرنهٔ وي — شب و روز به پهٔ درود وي ستا گويا

رسالت به دې مني د ذرهٔ له صدقه — کهٔ بالمحض وي امي او يا مُلا

چې دې شمار پهٔ غلامانو د محبوب کړم — دا مې فخر دے به تاله ده ثنا

شاد محمد وائي پهٔ سوکهٔ دِ ختنا کړم
پهٔ عالمو کښې به شمه سربالا

---

# فصل دے شپږم په بیان دهغو عجایبو

## چې احمد صلی الله علیه وآله وسلم په اسمان اول ولیدل [۱۵۹]

پاک سرور پاک محمد پاک مصطفی [۱۶۰] — پاک رسول او پاک احمد پاک مجتبیٰ

دوست د رب حبیب محبوب د کبریا — او شفیع چې دے د ورځې د جزا

فرمائیلي دي رسول آخر زمان — چې داخل شوم زه په دې اول آسمان

جبرئیل علیه الصلوٰة والسلام — د دروازه ئې ووهله په ناکام

بلکې نوم ددې اول آسمان د در — باب الحفظ دے په ښه شان برابر

او هم دا دروازه پاک الله غفور — دیوې دانې یا قوتو سره ضرور

پیدا کړې ده او قلف ئې د گوهرو — اسماعیل نامه دربان پرې مقررو

او هر کله چې اواز د جبرئیل — دې دربان ملک واورید اسماعیل

نو په دا رنګ ئې اواز سره جواب — جبرئیل له دربان ورکړ په شتاب

چې هرګز دا رنګ اواز په عمر چیل — اوریدلے نه وو ما او وئې وئیل

## من ذا الذی نادایک

یعني څوک ئې چې آواز کوې په زوره — جبرائیل وې جبرئیل یم واوره ګوره

بیا ئې ووې تا سره څوک دے بل کس — جبرئیل وئیل احمد طیب نفس

بیا ئې ووې چې سرور خیر البشر — د خپل ځایه راوتلے دے بهر

جبرئیل ووې چې هو ماسره مل دے — بیا ئې ووې چې بلے لم یزل دے

جبرئیل ووې هو غوښتے دے سبحان — اسماعیل دربان در دود کړد آسمان

د اول آسمان ئې پرانست ورته در — بیا ئې ووې اے جبرئیله سراسر

خوشحالي او ډیر راحت او جمعیت — کل د تا سره واصل وي هر ساعت

هر کلے ئې ورکړ پاک سرور له ډیر — هم ئې ووې پرې درود د حد تیر

دولس زره ملک نور ددې دربان — تابعدار وو او د دوئې هم په دا شان

د هر یو وو دولس زره تابعدار | او پهٔ یو روایت سل زره پهٔ شمار
وو د هر یو پوره سل زره ملک | او بیل بیل وو تابعدار نشته دې شک
او پهٔ بل روایت وائي هسې شان | چې ما وُ لیدل دده بنهٔ امیرات
او وهٔ سوه زره وو کل پهٔ شماره | او د هر امیر هم دا رنګې ښکاره
اُووهٔ سوه زره نور ملک ضرور | تابعدار وو د یو یو ملک مذکور
تابعانو د دریان هم اسمٰعیل | دا تسبیح به ئې وایهٔ درب جلیل

# سبحان الملک الاعلیٰ سبحان العلی

## الاعلیٰ سبحان لیس کمثله شیئ

دے صحیح د سلو زرو روایت | چې ویلے دے دا پاک رسول حضرت
پس له هغې دد نیا اسمان پهٔ سر | وُختلم شومه تیر د اول در
چې مې وکاته تمام اول آسمان | پهٔ صافه کښې وه بنهٔ صاف آئینه پهٔ شان
او پهٔ یو روایت دا کوي خبر ېې | دا اسمان دے روغ د سبزې مرغلرې
بنکې نوم دد ېې آسمان کما حقا | برابر دے مشهور پهٔ دقیقا
پنځه سوه کاله لاره سیرابر | اوبږد پلن او غټ دے دا اسمان اکثر
د یو بل آسمان پهٔ منځ کښې سم پهٔ شمار | د پنځو سوو کالونو لرې لار
عجائب چې پاک سرور آخر زمان | دي لیدلي هم پهٔ دې اول آسمان
او شل ځیزه د هغونه پهٔ سنبال | دا ځائے زهٔ بیانومه اوس فی الحال
پاک سرور خیر البشر علیه السلام | هسې شان ئې دے ویلے دا کلام
چې اول مې د ملکو تهو لګي د پر | لیدل زیات چې وو د حد د شمارې تیر
چې صفونه ئې وو را جنګلي برابر | پهٔ قیام ښَره ولاړ وو سراسر
او سرونه ئې پهٔ ویره پهٔ حضور | بښکته کړي وو دوئي ورانده د غفور
او سرونه ئې ښکته کړي وُو د ځان | دا تسبیح وارو وایهٔ به پهٔ زبان

## سُبُّوحٌ قُدُّوسٌ رَبُّنا وَرَبُّ الْمَلائِكَةِ وَالرُّوح

جبرئیل وپوښته ما هغه ساعت — چې ددې ملکو داده عبادت
جبرئیل وویل ماته هغه دم — پېدا شي د اسمانونو د ورځ سم
ان تر ورځې د محشر او د قیامت — هم ددې ملکو داده عبادت
نو په در د پاک الله غني سبحان — وکړه سوال چې ستا امت ته کل امان
چې هم دا عبادت کل کاندې عطا — چې شي دا عبادت کل دامت ستا
نو سرور په در د پاک رب ذوالجلال — اوددې عبادت وکړ د رب سوال
پاک الله کړ عنایت ورته تمام — شه په مونځ کښې په مونږ فرض حکه قیام
نو واجب دي دا په تاسو سراسر — دا وعده چې کړي په ځائ ښه برابر
پس له هغې جبرئیل نه مې ضرور — هسې دا پوښتنه وکړله حضور
چې ددې ملکو څومره دے عدد — جبرئیل وې رب خبر یې دے په حد
بې د خدایه څوک د دوئ په عدد شما — هېڅ یوکس نه دے باکل پرې خبردار

## وَمَا يَعْلَمُ جُنُودَ رَبِّكَ إِلَّا هُوَ ط ۶۰

دوېم څیز چې دے لیدلے پاک سرور — هسې شان یې دي وسیلي برابر
په اول اسمان کښې ما بابا آدم — ولید بنه شوم ملاقي ورسره سم
چې ما ولید په هغه رنګې صورت — هم په هغه رنګې قد او هم قامت
چې په وخت د پېدا شش کښې غني رب — چې هم ده لره ودکړے ده عجب
او په تخت د مرغلرې ببینې ناست وو — په یاداشت د رب رحیم کریم کښې راست وو
او جامې یې کل اغوستې وې د نور — حکم کړے دے دا رنګے رب غفور
په روحونو د اولاد دده تیار — چې هر کله د قالب وکړي رفتار
نو ملک یې بوځي ده لره فی الحال — د مؤمن په روح لیدلو شي خوشحال
په لیدو د روح بابا هغه زمان — د هوس نه هسې ووائي په زبان

## روح الطیّب من بدن الطیّب

یعني روح پاک د بدن پاک دے بیار
دۀ دپاره وکړي سوال پۀ کردګار

او رحمت او مغفرت بابا آدم
دے مؤمن دپاره غواړي هغه دم

پس له هغې نه دا روح پۀ هغه حین
ملائک یې کړي داخل پۀ علیّین

لکه هسې دي وئیلي رب رحیم
صاف پۀ صدق دے دي پۀ زما تسلیم

كَلَّآ إِنَّ كِتٰبَ الْاَبْرَارِ لَفِيْ عِلِّيِّيْنَ ۝ [۱۶۱] [۱۶۲]

هرچې روح د منافق او د کافر
ملائک چې داوړي دۀ لره ظاهر

پۀ لید و یې شي غمجن هغه ساعت
هغه دم پرې باندې وواې لعنت

پۀ دا شان پۀ زبان وواې في الحال
روح خبیث د تن خبیث دے د دا ذال

## رُوح الخبيث من بدن الخبيث

روح خبیث دے د بدن خبیث بې دین
پس ملک دا روح دا خل کړي پۀ سجّین

یعني دے کړي د دوزخ پۀ سخت زندان
لکه هسې دي وئیلي پاک سبحان

كَلَّآ إِنَّ كِتٰبَ الْفُجَّارِ لَفِيْ سِجِّيْنٍ ۝ [۱۶۳] [۱۶۴]

پس له هغې راته ووې جبرئیل
یا رسولؐ او یا دوسته د جلیل

ورشه دا دے ستانیکۀ بابا آدمؑ
سلام وکړه ورته ورشه پۀ دا دم

نو سرور خیر البشر دوست د اکبر
ورله لاړ سلام یې وکړ برابر

نو آدم علیه الصّلوٰة والسّلام
د خندا نه لکه ګل وغوړېد تمام

او جواب یې د سلام د پاک حضرت
پۀ بنۀ شان یې کړ ادا هغه ساعت

پۀ تلوار د دۀ شۀ ډېر شکر ګذار
هغه رنګ یې پۀ دا شان وکړ ګفتار

## مرحبا یا ابن الصالح والنبیّ الصالح

## الحمد لِلّٰہِ الّذی اکرمکَ وَجَعَلَکَ من نسلی

داشه هر کله زما نیکه پسرَ ه　　او نبی نیکه د کل نبیا نو غوره

او ثنا ده هغه خدائے لَره تیاره　　چې ئې تالــه[۱۶۵] بزرګي ددګړه بسیاره

او د نسل نه زما ئې کړې پیدا　　او تسبیح بابا ادم یه وایهٔ دا

## سبحان الجلیل الاجل سبحان الواسع الغنیّ

## سبحان اللّٰہ وبحمدہٖ سبحان اللّٰہ العظیم

## وبحمدہٖ استغفر اللّٰہ

ښي طرف ته د بابا یو دروازه　　ویل له بوئي ترې ښهٔ تهٔ پهٔ مزه

کیڼ طرف ته دروازه مې ولید له　　بحسابه بد بوئي ترې نه راتلله

دروازې ته د ښي لوربه ئې وُکتل　　خوشحاله نه به بابا ډېر وُخندل

چې به ئې وُکتل د کیڼ طرف پهٔ در　　ډېر غمجن به شهٔ او هم پهٔ ژړا سر

نو سرور خیرالبشر ز موږ حضرت[۱۶۶]　　جبرئیل ته وُوې دا هغه ساعت

## ما هذان البابانِ

یعني دا دروازې دواړه برابر　　دا د څهٔ دي زر کړه ماکړه پرې خبر

جبرئیل وویل دا هغه ساعت　　پهٔ ښي لور دا دروازه ده د جنت

ارواحونه د نیک بختو پهٔ تلوار　　پهٔ دې ذر جنت ته ځي خوشحال بسیار

پهٔ کیڼ لور دا دروازه ده د دوزخ　　پهٔ دا لار روح د بد بختو ځي نا خوځ

نو هر کله چې آدم ابوالبشر　　دروازې ته د جنت وکړي نظر

پهٔ کتلو د روحونو پاکو ډېر　　شي خوشحاله زیات د حد پهٔ هورته تېر

او چې وګوري پهٔ کیڼ طرف کوم آن　　پهٔ روحونو د بد بختو کړي خفګان

د درېم ځیز پیغمبر خیرالبشر　　هسې شان ئې دي د سیلي برابر

يو تو لگي باندې زۀ دا علمه د پاسه — کوو تندې به يُې کولې بې وسواسه

هم کول هم به يُې د يبل هغه ساعت — د يوې دانې نه رب کړي عنايت

پۀ بدل به د يوې دانې پۀ ځاے — اووۀ سوه ورکولې به پاک خداے

جبرئيل نه مې پوښتنه هغه دم — وکړه دا خلق چې څوک دي خوش نودم

پۀ جواب کښې داسه ووې جبرئيل — دا کسان خاص عبادت کړي د جليل

دا هغه خلق دي رب له پۀ اخلاص — عبادت صدقې رب له کوي خاص

لکه حق کښې چې د دوئ الله پاک ذات — رالېږلے پۀ رسول دے دا آيات

مَثَلُ الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ كَمَثَلِ حَبَّةٍ اَنْبَتَتْ سَبْعَ سَنَابِلَ فِيْ كُلِّ سُنْبُلَةٍ مِّائَةُ حَبَّةٍ ۱۴۶

څلورم ځين پېغمبر آخر زمان — دې وئيلي فرمائيلي هسې شان

يو تو لگي د پاسه دا غلمه زۀ سم — چې سرونه يُې ملکو دم پۀ دم

ټکول به يُې پۀ کانو سرا سر — پۀ خپل حال به بيا کېدل دوئ برابر

ملائکو به هم بيا پۀ هسې رنگ — ټکول به يُې سرونه غټ پۀ سنگ

جبرئيل نه مې د دوئ وکړه پوښتنه — چې پۀ دې تو لگي عذاب دے دا د څۀ ته

جبرئيل ووئيل دا هغه ساعت — دوئ پۀ مونځ کښې د جمعې او جماعت

نا راستي سستي کوله به يُې مدام — او رکوع سجود يُې نۀ وو پۀ اتمام

ادا کړې پۀ وخت وخت نۀ دے ضرور — لکه هسې دي وئيلي رب غفور

فَوَيْلٌ لِّلْمُصَلِّيْنَ الَّذِيْنَ هُمْ عَنْ صَلَاتِهِمْ سَاهُوْنَ ۱۴۸

پنځم هسې دي وئيلي پاک سرور — يو تو لگے د پاسه دا غلم برابر

تمام واړه وو برېنډ او وُړې ستر يې — چې د تو لو وو د تندې سوې سرې

او مدکو د عذاب به دوئ شرلے
زيات پهٔ زوره زوره دوئ به د پر ژړل

او د پاره د اوبو او د طعام
د دوزخ پهٔ لور بوتله واړه تمام

لکه څوک چي څرپېد و له چارپايان
بيا ئې هسې وو دوزخ ته دوي روان

جبرئيل نه مي پوښتنه هغه دم
وکړه دا چي دا کسان څوک دي پهٔ غم

جبرئيل ووې دي دا هغه کسان
چي زکوٰة ئې ورکاوُه نه پهٔ هيڅ شان

دو ي ورکړے نهٔ دے هيڅ زکوٰة د مال
ځکه هسې دے د دوئ دا د ستګي حال

فقيرانو باندې رحم پهٔ هيڅ لار
نهٔ دے کړے دا وئيلي دي ستار

اَلَّذِيْنَ يَكْنِزُوْنَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ وَلَا يُنْفِقُوْنَهَا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ [۱۶۹]

شپږم هسې دي وئيلي پاک سرور
يو تو ټګي د پاسه دا غلم برابر

نعمتونه ټول پراته وو ورته وړاندې
د ډېر نظر ئې نهٔ کړ پهٔ دوئ باندې

وه پرته ورته بل خوا مرداره غوښه
دوئ مرداره به خوړله پهٔ زړهٔ خوښه

هغې پاک نعمت ته نهٔ کاوهٔ دوئ خيال
نوما وُپوښت جبرئيل نه د دوئ حال

جبرئيل ووې دي دا هغه کسان
چي ئې وينې کهٔ دي ښځي کهٔ مردان

خپلو ښځو ته به نهٔ کوي نظر
ښځې هم به خاوندان لري اکثر

او زناکوي پهٔ خپلو ئې نهٔ وي کار
لکه هسې دي وئيلي پاک ستار

[۱۷۰] اَلْخَبِيْثٰتُ لِلْخَبِيْثِيْنَ وَالْخَبِيْثُوْنَ لِلْخَبِيْثٰتِ [۱۷۱]

اووم هسې دي وئيلي پاک رسول
چي پهٔ درد دے د رحيم کريم قبول

يو تو ټګي د پاسه دا غلم برابر
پهٔ دا رونو آتشينو پاس پهٔ سر

سوارهٔ کړي وو تمام اد چت پهٔ دار
د غه دار پهٔ سر دلار وو ډک د خار

وو اغزي ددې دار د وونو په مثال — د پنجو په شان جامې به يې په هرحال

هم شلول د راهر وو به يې اندامونه — جبرئيل نه مې پرسان کړ له دې ګونه

جبرئيل نه ما ددوئ وکړه پوښتنه — چې په دې غذاب دے دا تهوګے د څه نه

جبرئيل وويې دي دا هغه کسان — چې په سرد لارو ناست وو دهر تان

رهروُوته دساوه به دوئ ضرور — دهي سترګي هم کنځل کوي اکثر

هم کوي سره د خلقو به خندا — لکه دي وئيلي دا رحيم خدا

**وَيْلٌ لِّكُلِّ هُمَزَةٍ** ۱۴۲

يا چې هسې دي وئيلي رب رحيم — په سرسترګو مې په صدق دي تسليم

**وَلَا تَقْعُدُوا بِكُلِّ صِرَاطٍ تُوعِدُونَ وَتَصُدُّونَ**

**عَنْ سَبِيلِ اللّٰهِ** ۱۴۳

يا چې دا دنګې وئيلي دي اکبر — په تصديق لره[۱۴۴] د زړه مې دي په سر

**وَإِذَا مَرُّوا بِهِمْ يَتَغَامَزُونَ** ۱۴۵

اتم هسې پاک سرور آخر زمان — فرمائيلي دي په خپله هسې شان

يو سړي د پاسه را غلم چې د پربار — پورته کړے وو په شا باندې بسيار

خوزېدے نه شه بالکل د بار د لاندې — وې به يې خلقو ته نوکېږدئ په ما باندې

جبرئيل و پوښته ما په هغه دم — چې دا څوک دي غواړي د پرورے نشي کم

جبرئيل ووئيل دا هغه ساعت — دا دے دا چې امانت کړي خيانت

لکه هسې دي وئيلي پاک ستار — صاف په حق د خيانت کښې دا اظهار

## يَا اَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَخُوْنُوا اللّٰهَ وَالرَّسُوْلَ ١٤٦

نهم هسې دي و ئېلي پاک سرور — په يو قوم د پاسه راغلم برابر
چې ملکو په تېنګو سره د اور — شونډې ئې خولې به پرېکولې ترې په زور
شونډې بيا به ئې برابرې شوې په خپل حال — پرېکولې به ئې ترې بيا په هغه مال
جبرئيل عليه الصلوٰة والسلام — و پوښت ما چې د دوئ حال کړه را اعلام
جبرئيل وې حال دے دا ددې کسانو — چې دربار لره به تلل د بادشاهانو
خوشامندې به ئې د دوئ کولې ډېرې — هم به ئې وې د دروغ حيلې د حد تېرې
او منلې به ئې حيلې د دوئ په صدق — ګوڅول ئې نه د ظلم او د فسق
په طرف به ئې د عدل د احسان — بالکل نه ګوڅول دوئ به بادشاهان
دوئ به نه بنوده شاهانو ته په لار — لکه هسې دي و ئېلي پاک ستار

## وَلَا تَرْكَنُوْا اِلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا فَتَمَسَّكُمُ النَّارُ ١٤٧

لسم هسې دي و ئېلي دوست درب — يو تولګي د پاسه راغلمه عجب
ملائکو پرېکولې د دوئ غوښې — بيا په دوئ به خوړولې په نانوښې
جبرئيل ووې يا دوسته د اکبر — دا کسان سخن چينان دي سراسر
چې د خلقو پښې شا کوي خېرې — غيبتونه کوي هم د راستيه لوې
لکه دا رنګ دي و ئېلي پاک رحمان — هم په حق ددې کسانو په قرآن

## وَلَا تَجَسَّسُوْا وَلَا يَغْتَبْ بَّعْضُكُمْ بَعْضًا ؕ اَيُحِبُّ اَحَدُكُمْ اَنْ يَّاْكُلَ لَحْمَ اَخِيْهِ مَيْتًا فَكَرِهْتُمُوْهُ ١٤٨

بلکې بل يو ولسم نبي سرور! — هسې شان دي فرمائيلي برابر
يو تولګي د پاسه راغلم په يو دم — چې مخونه تمول ددې تولګي د غم

ملائکو توره ول د دوئي اکثر — زيړې کړې ئې وې ستر ګې برابر
بنکلتنه شونډې د دوئ ترپښو لاندې — پورتنه شونډې وې پورته په سر باندې
وينې زوې تلې د خولې لکه سيلاب — او دوزخ کښې چې حميم تا دي درياب
دا درياب دے آتشين تمام د نار — وينې زوې جوشيږې په تاؤ بسيار
دا په دوي به ئې څکولې په زور ونو — او ازونه به ئې ايستل په شان د خرونو
جبرئيل نه مې پوښتنه هغه دم — وکړه دا تږوګے په څه دے په دې غم
جبرئيل وويل دا هغه ساعت — دا کسان دي شرابخور ستا د امت
لکه هسې دي وئيلي پاک اکبر — خپل رسول له ئې ورکړے دے خبر

اِنَّمَا الۡخَمۡرُ وَالۡمَيۡسِرُ وَالۡاَنۡصَابُ وَالۡاَزۡلَامُ
رِجۡسٌ مِّنۡ عَمَلِ الشَّيۡطَانِ فَاجۡتَنِبُوۡهُ ۝ ۱۷۹

دو نسم هسې وئيلي دي سرور — په يو قوم د پاسه را غلم برابر
چې ملکو د دوئي ژبې په ډېر زور — د خټو نو وې ايستلې په شا لور
صورتونه ئې وو په شانې د خنزير — لاندې باندې پرې عذاب وو بې نظير
جبرئيل وپوښته ما هغه ساعت — چې دا قوم تږوګے دے هسې په زحمت
جبرئيل وې چې يا دوسته د ثواب — دا تږوګے چې وينې ته په دې عذاب
په دروغه ګواهي کړې دوئ اکثر — لکه هسې دي وئيلي پاک اکبر

اِلَّا مَنۡ شَهِدَ بِالۡحَقِّ وَهُمۡ يَعۡلَمُوۡنَ ۝ ۱۸۰

د يارلسم هسې وئيلي دي رسول — په يو قوم د پاسه را غلم وو په نوزول
پرې سپډلې ئې وې کېدې د حد تېرې — او رنګونه ئې وو زېړ تر زېړې تېرې
ملائکو بسته کړي وو دوئ سخت — ترپښو لاسو تر څټو نو دوئي کم بخت

چې به دوئ پورته کېدل د مکان نه ځل ... یار د کېدو به په بشکله دوئ را شکل

پر بوتل به په پرمخې په شتاب ... لاندې باندې وو نیولې سخت عذاب

جبرئیل نه مې د دوئ وکړه پوښتنه ... چې په دې تبو لګي دے دا عذاب ځه نه

جبرئیل وې سود خواره دي دله کات ... لکه هسې دي وئیلي پاک سبحان

اَلَّذِیْنَ یَأْکُلُوْنَ الرِّبٰو لَا یَقُوْمُوْنَ اِلَّا کَمَا یَقُوْمُ

اَلَّذِیْ یَتَخَبَّطُهُ الشَّیْطٰنُ مِنَ الْمَسِّ ؕ [۱۸۱]

څوارلسم هسې وئیلي دي سرور ... په یو قوم د پاسه را غلم برابر

په چړو د اور به دوئ حلالېدل ... بیا به روغ شو هم بیا هسې به کېدل

تورې تورې ترې نه تلې وینې سیلاب ... د هغوی نه تله [۱۸۲] بد بوئي ګنده خراب

جبرئیل و پوښته ما هغه ساعت ... چې په دې تبو لګي په څه د دا زحمت

جبرئیل ووې دي دا هغه کسان ... چې د خلقو په ناحق دي قاتلان

بر ناحق به ئې مومنات قتلول سم ... تو یه ولې بر ناحق ترې وینې دم

مؤمنان به ئې قتلول همېش اکثر ... لکه هسې دي وئیلي پاک اکبر

وَمَنْ یَّقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآؤُهٗ جَهَنَّمُ خٰلِدًا فِیْهَا [۱۸۳]

پنځلسم ز مونږ سرور خیر البشر ... هسې شان دي فرمائیلي برابر

چې د بنځو د تبو لګي دا غلم په لور ... چې مخونه وو د دوارو بنځو تور

او هم سترګې زیږې کړې وه بېځده ... هم جامه ئې وه اغوستې د اور یده

او دې بنځو به غپل د سپو په شان ... هم ایستلې به ئې چیغې هر زمان

جبرئیل ته ئې ز ووې برابر ... چې په حال مې ددې بنځو کړه خبر

او ملکو په ګرزو نو د اور سور ... دوئ وهلې وې د حده په ضرور

جبرائیل وې خاوندان دي توي آزار | لکه هسې دي وئیلي پاک ستار

## اَلرِّجَالُ قَوَّامُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ ۱۸۴

شپاړسم سرور وئیلي دي داشان | په يو قوم دپاسه دا علم وو قيد يان
او په منځ کښې د دنيا د آخرت | په هوا کښې او بزان وو امانت
او په هر يو باندې دوه دوه په شناب | مؤکل وو ملائک د سخت عذاب
هم د پوزو د سورو په ډېر زور | هم د سترګو هم د غوږو به ئې تۀ اور
او په لاسو هر يو ملک تيار | يو يو ګرز وو آتشين دا ورخار دار
او يښا خوته د هر ګرز وو اويا ذره | که يو ښاخ ئې چرې څوک کښېږدي د سره
د اوبو په شان به ويلي شي اکثر | او همه ابو قبيس تمامي غر
دې ملکو به وئيل پرې هر زمان | او تسبيح ددې ملکو وو دا شان

## سبحان القادر المقتدر سبحان المنتقم

## على اعدائه سبحان الملك العظيم

جبرئيل عليه الصلوٰة والسلام | وپوښت ما چې دے دا کوم توکے تمام
جبرئيل وې دا کسان منافقان دي | لکه هسې چې وئیلي پاک سبحان

## اِنَّ الْمُنَافِقِيْنَ فِى الدَّرْكِ الْاَسْفَلِ مِنَ النَّارِ ۱۸۵

بيګي بل اوولسم زمو نږ رسول | فرمائیلي دي په در درب قبول
يو توکے عظيم مې وليدۀ په شور | چې وو قيد تمام په کنده کښې د اور
او دبه سول او بيابه جوړ شول هغه ما ۱۸۶ | بيابه سول ما جبرئيل وپوښت د حال
جبرائيل ووې دې دا هغه کسان | چې د حکمه د ورور پلار وي روګردان

غیرد حکم نه به تلل دوي دمورپلار　　　لکه هسې دي و سیلي کـرد کار

وَلَا تَقُلْ لَّهُمَآ اُفٍّ وَّلَا تَنْهَرْهُمَا

وَقُلْ لَّهُمَا قَوْلًا كَرِيْمًا [186]

اتسلیم زمونږ سروُرخیرالبشر　　　هسې شان دي فرمائیلي برابر

یو تږوګي د پاسه راغلم چې تالي　　　د اور سورے پهٔ سینو ددويُ خالي

اېښودلي پهٔ سینو تالي د اور　　　هم مخونه يُ د ر نجونه ووتک تور

بېلکې سترګې وې د دويُ تونادنج زېږي　　　رو جامې د اود يُ وې پهٔ رنځرو غوړي

ملائکو پهٔ ګرزونو د عـذاب　　　د اور دويُ به يُ وهل بهٔ پهٔ شتاب

جبرئیل نه مې پو ښتنه کړه دحال　　　چې داکوم تموکے دے هسې ګېر پهٔ حال

جبرئیل ووئیل دا قرمساقان　　　داکسان دي شیطانان واړه دمات

پس له هغې دي وئیلي پاک حضرت　　　یو ملک مې ولید سپین چرګ پهٔ صورت

سريُ لاندې وو د عرش نه د چرګ سپین　　　پښې يُ زېرې تېرې ترهفتم زمین

او هم ذکربهٔ ددې پهٔ مناسبو　　　زهٔ د سدرة المنتهٰی پهٔ عجائبو

تمامي عجائب کل به کړم بیان　　　ان شاء الله تعالیٰ پهٔ دا زمات [188]

نولسم هسې وئیلي دي حضرت　　　یو ملک ولیدهٔ ما ادم صورت

نیم وجود يُ وو د اور پورته کهٔ آورې　　　نیم وجود يُ بنکته وو خالص دواورې

اودې اورته رساوهٔ برف ته ضرر [189]　　　اونه واوُرې مړکاوهٔ اور برابر

داوره اور وو سره غلي د نقصان　　　دا تسبیح به دي ملک وې پهٔ زبان

## سُبْحَانَ الَّذِیْ اَلَّفَ بَیْنَ الثَّلْجِ وَالنَّارِ وَاَلَّفَ بَیْنَ قُلُوْبِ عِبَادِهِ الصَّالِحِیْنَ [۱۹۰]

او پهٔ بل یو روایت کښې راغی ضرور — هسې شان به یُ تسبیح وي د غفور

## سُبْحَانَ الَّذِیْ یُؤَلِّفُ بَیْنَ عِبَادِهِ الْمُؤْمِنِیْنَ

جبرئیل نه ما پوښتنه کړه د واره — وکړه دا چې دا ملک دے څهٔ د پاره
جبرئیل ووې چې دا ملک پاک رب — پیدا کړے دے پهٔ خپل قدرت عجب
بلکې دے دے پهٔ کل وریځو مقرر — چې هر ځائے کښې اراده دي د اکبر
دا وریځې هلته بیائي پهٔ یو دم — نوم ددې ملک دے رعد اصلي سم
او هر کله چې وریځ شړي بل لورته — نو اواز ترینه د رعد شي دا پورته
چې هر کله په وریځ کړي محبت — ترې ظاهر شي برق د نها هغه ساعت
لکه هسې دي وئیلي رب رحیم — پهٔ تصدیق د زړهٔ پهٔ صدق مې تسلیم

## اَلَمْ تَرَ اَنَّ اللّٰهَ یُزْجِیْ سَحَابًا ثُمَّ یُؤَلِّفُ بَیْنَهٗ [۱۹۱]

شلم هسې دي وئیلي پاک رسول — چې پهٔ در دے د رحیم کریم قبول
هر چې زه ددې ځای نو پهٔ شتاب — چې شوم تیر را ته ښکاره شهٔ یو دریاب
عجائب او غرایب مې پهٔ کښې د بر — ولیدل چې د حساب د شماره تیر
او اوبهٔ یې وې پهٔ شان سپینې ترشیر — ا د موجونه یُ وو تر غرونو هوا گیر
جبرئیل نه مې پوښتنه کړه د نوم — چې ددې دریاب کړه نوم را ته معلوم
جبرئیل ووې چې دا دریاب دا شان دے — بلکې نوم ددې دریاب بحرا لحیوان دے
هر چې وخت د پاڅیدو د مړو قریب شي — پهٔ زمین باران ددې دریاب عجیب شي

حکم وکاندې رحیم کریم تواب ... پهٔ دې زمکه کړي باران ددې دریاب

اندامونه خاورې شوې گوشت اوپوست ... دې اوبو باندې ئې جوړ شي اعضا روست

دا اوبهٔ به کړي ترکیب هر یو مُرده ... غوښه هډ به ئې یو ځائے شي به زنده

شي ترکیب به پهٔ او بو ددې دریاب ... لکه هسې دي و ښیلي پاک تواب

## اَللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَکُمْ ثُمَّ رَزَقَکُمْ ثُمَّ یُمِیْتُکُمْ ثُمَّ یُحْیِیْکُمْ ۱۹۲ء

پس وښیلي دي رسول آخر زمان ... چې شوم تېر ددې دریاب ددې آسمان

پهٔ دوېم آسمان داخل شوم پهٔ یودم ... د ذرې نشته پهٔ دې کښې زیات وکم

**شاد محمد** صدق خپل کړه برابر

ځان غلام لره د خپل نبي سرور

شفاعت به دامت پهٔ آخرت کړي ... کافران به بې نصیب دشفاعت کړي

## غزل در محمدت صدر بدر کائنات علیه اکمل التحیات

وکړه پهٔ ما مهر کرم رسول الله عربي ... زهٔ دِ غلام یم دعجم رسول الله عربي ۱۹۳ء

نفس و شیطان مې دښمنان دواړهٔ غالب دي پهٔ ما ... دوئې مې کړهٔ لاندې د قدم رسول الله عربي

نهٔ پهٔ زمین نهٔ پهٔ آسمان کښې خپل مورت وینمه ... اُوده غافل یمه هردم رسول الله عربي

سُستي غفلت دے پهٔ ما زور بېدار به نشمه ... تهٔ د غفلت مې کړه دور غم رسول الله عربي

د معصیت پهٔ تیغ مجروح تمام بدن دے زما ... د شفاعت راکړه مرهم رسول الله عربي

پهٔ دواړو سترگو یمه ړوند که مې رهبر شولې تهٔ ... پهٔ سمه لاره به شم سم رسول الله عربي

که دِ پهٔ سیود در حساب کړمه خوشحال به شمه ... نشته پهٔ دې کښې زیات وکم رسول الله عربي

ستا پهٔ سبب ئې کړه ظاهره خدائې خپله تد یمه ۱۹۴ ... چرته به وو بابا آدم رسول الله عربي

رحیم کریم در ته پهٔ سر تاج د لولاک ایښے دے ... هم ئې آخر هم مقدم رسول الله عربي

زهٔ **شاد محمد** دِ بې غلام یم دلاسه راکړه تهٔ

ځي مې د دواړو سترگو نم رسول الله عربي

# فصل دے اووم په بیان د هغې عجائبو چې

## په آسمان دوېم کښې په نظر د احمد صلی الله علیه وآله وسلم راغلي دي[۱۹۵]

حکم کړے دے ذمونږه پاک حضرت
چې دوېم اسمان ته لاړم کوم ساعت

دا اسمان مې نوراني ولیده ډېر
چې بل نشته ثاني دده په ښېر

چې نظر د سترګو نهٔ کاوه پرې کار
او په یو روایت دا کوي ګفتار

چې وو دا اسمان د سرو زرو معلوم
او ددې اسمان دوېم نوم وو قیدوم

جبرائیل شهٔ مانه وړاندې برابر
د دوېم اسمان ئې و ټکوه در

هغه دم پرې اواز سم وکړ دربان
چې ته څوک ئې دروازه وهې عیان

جبرئیل ووې جبرئیل یم کړه عمل
دربان ووې در سره څوک دے بل مل

جبرئیل ووې را سره دے محمد صلی الله علیه وآله وسلم
چې رسول دے هم محبوب د پاک احد

دربان ووې محمد نبي حضرت
مبعوث کړے دے الله په رسالت

په جواب کښې ورته ووې جبرئیل
مبعوث کړے دے او پاک الله جلیل

دربان ووې چې ثنا ده د پاک اکبر
هغه دم ئې ورته پرانسته زر در

او په دې آسمان کښې هم عجائب ډېر
ولیدل مګر د حق د شماره تېر

د جمله څیزونو زهٔ څلور په شمار
د ته زهٔ ظاهروم په قرار

اول هسې دي وئیلي پاک رسول
چې په دردے دا الله ستار قبول

اول ماته چې شوه پرته دروازه
چې نظر مې درته وکړ په مزه

د کوهوومي ډر ؤيده ځ ضـرور را
بنکي تلف جرته ده ددي ډروه د نور

د دربان ئي اسرافيل نوم وه تيار
او دوه لکه وو ملک ئي تابعدار

د هر يو وو دوه دوه لکه برابر
نور ملک ددي سپاه وو مقرر

او په دوئي باندي ما ولوسته سلام
په تعظيم راکړ جواب تهولو تمام

د بزرګه راکړ دوئي زيري په قرار
د جانبه د الله پرورد ګار

اسرافيل ددي دوئم اسمان دربان
د تسبيح به ئي وايه درب سبحان

## سبحان الله کلما يسبح الله والحمد لله

## کلما حمد الله ولا اله الا الله کلما هلل الله والله اکبر کلما الله اکبر

دوئم هسي پاک سرور خبر البشر
هسي شان دي فرمائيلي برابر

او هر کله چي ددوئي شومه تير
يو تهوګي مي د ملکو وليد ډير

چي زه ورا غلم په دي تهولګي دپاسه
او صفونه ئي وو را بنسکلي بي وسواسه

په رکوع کنبي وو کل دا تهوګه سليم
تسبحونه ئي وئيل درب رحيم

## سبحان الوارث الواسع سبحان الذي

## يدرک الابصار سبحان العظيم العليم

په رکوع په تواضع کنبي دوئي فرور
دا ملک ولاړ وو هسي په حضور

چي ... دپيد ... تردي آت
پورته کړي نه دي دوئي چرې چشمان

بدکي دوئي دريئم آسمان نه دے ليدلے
په نظر ددوئي هرګز نه دے را غلے

جبرائيل ويوبشته ما هغه ساعت
چي ددي ملکو دا دے عبادت

چي ددي آسمان ملک تمام اکثر
هسي رنګ دوئي عبادت کړي دا کبر

جبرئیل ووې چې اوته د پاک رب وکړه سوال دا عبادت کړه ترې طلب

او چې تا ته او هم ستا په کل امت پاک الله دا عبادت کړي عنایت

رسول وائي چې ما وکړله دعا پاک الله دا عبادت کړ دا عطا

نو الله کړله دکوع په څوڅ کښې فرض او په ما او په امت زما کړ قرض

دریُم هسې دي وئیلي پاک رسول دي وئیل دده په صدق مې قبول

هرچې زه دده ملکو شوم روان نوما وليده يو دوه تنه ځوانان

جبرائیل و پوښته ما په هغه دم چې دا دوه کسه دي څوک بني آدم

جبرئیل ووې چې دا یو دے عیسیٰ پیغمبر دے او دا بل يو دے يحيیٰ

د ترورانو دي زامن دواړه تمام جبرئیل راته وې دوئ ته کړه سلام

ما په ځائے کړ د سلام شرط په شتاب دوئ ادا کړ د سلام زما جواب

راته ئې ووې راشه هر کله سروره او اے ورور نیکه نیکه نبي غوره

او عیسیٰ ماله راکړه دواړه لاس هم ئې زېرے راکړ ډیر بهر د قیاس

په بزرگو مهربانو د حد بسیار د جانبه دالله رحیم ستار

او خاصوالے ئې دده کل کراماتو په ما وکړ د تمام بزرگو زیاتو

او په پنځو دا نبیاؤ برابر همه دارو مرسلانو کښې اکثر

او عیسیٰ علیه الصلوٰة والسلام دا تسبیح به ئې وایه درب مدام

## سبحان الحنّان المنّان سبحان الابد الابد

## سبحان المبدئ المعید

څلورم هسې وئیلي دي حضرت یو ملک وليده مالوئې نهایت

او په شمارئې دو او یا سره د تن او په یو روایت دا کوي گفتن

چې پوره ئې دو او یا زره سرونه وو په هر سرئې او یا زره مخونه

په هر مخ کښې اویا زره دهانه | هر خوله کښې اویا زره ژبانه
هره ژبه ئې په خبرو کښې جداوه | و تسبیح ئې په دا تېولو ژبو داوه

سُبحان الخالق العظیم سبحان الله وبحمده

او بل روایت وائې داسم | چې ئې دا دعا هم وي ورسره ضم

۱۹۶

بسحان الله وبحمده سبحان الله الخالق العظیم

وبحمده استغفر الله

په حدیث شریف کښې وائې هسې رنګه | د هر چا چې وي روزي د عیال تنګه
د سنتو او د فرضو برابر | دا تسبیح د وظیفه کاندې سحر
او روزي به ئې شي فراخه دهر څه | جبرائیل نه مې دده وکړه پوښتنه
جبرئیل ووې جانب نه داکبر | دا ملک دے په رزق قوتو مقرر
چې د ورځې ورځې رزق دهرجاندار | د خوا چې نه راسوي د کردګار
مقرر رزق نه نه زیات وي او نه کم | نوم دده ئې ملک قاسم دے اصلي سم
پس له دې نه سرور وې هسې شان | بیا دا خل شوم په دره م اوچت آسمان
جبرئیل زما د پاره برابر | په اول طریقه پرانست راته ور

شاد محمد څه به غم کوې دمان
چې پېشوا لوې سرور آخر زمان
او سه سم په شریعت ثابت قدم | چې شافع د دے سرور مه کوه غم

غزل درنعت محبوب کبریا سلطان الانبیاء ۱۹۷

اے د دوو کونو سروره راشه راشه | د تمام جهان رهبره راشه راشه

چې تمام عالم دِ لاړ پهٔ دنیا مومي
د ظلمات پهٔ حق کښې نمره راشه راشه

رب رحیم [١٩٨] دِ پهٔ سر تاج د لولاک ایښې
د همه خوبانو غوره راشه راشه

چې له تا ته بیدلان دِ پهٔ غم ډوب وي
د عاصي امت جګړه راشه راشه

اول خدای عاشق پهٔ تا پسې جهان د [١٩٩]
د جمله جهان افسره راشه راشه

دلبران دِ خادمان حلقه بګوش دي
دلبرانو نه دلبره راشه راشه

چې آدم ابوالبشر د کُل عالم دے
د عالم خیرا لبشره راشه راشه [٢٠٠]

ټول خوبان د پاک الله د درنیا زبین دي
اے د ټولو نیاز پروره راشه راشه

چې خوبان دِ د کرمه امید وار دي
د خوبانو سرد فتره راشه راشه

د شیطان دنفس د شره نهٔ خلاصیږم
ماکړه خلاص د دوئي د شره راشه راشه

پهٔ نظر د فیض اثر به دِ سرهٔ زر شي [٢٠١]
کړه مې لاندې د نظره راشه راشه

شاد محمد دِ خاص غلام د دروازې دے
لاړ به نشي ستا د دره راشه راشه

## فصل د اتم په بیان د هغو عجائبو چې احمد صلی الله علیه وآله وسلم ۲۰۲۶

## په آسمان دریم کښې ولیدل

او جمله ددې څېړو نونه په شمار — شپږ څېړونه به کړم تا ته زه اظهار

اول هسې فرمائیلي دي رسول — په سرسترګو مې ونیل دده قبول

چې دا خل شوم په دریم اوچت اسمان — وه د سپینې مرغلرې نه روښان

قندیلونه وو پراته په کښې د نور — نوم ددې اسمان زیلون وه سم ضرور

او ددې اسمان د دریو لوې دربان وو — نهایت او بغایت عظیم الشان وو

چې درې لکه ملائک یې تابعدار وو — د هر یو ملک درې درې لکه په شمار وو

تابعدار یې نور ملک وو درې درې لکه — او تسبیح ددې ملک دا وو بېشکه

## سبحان المعطي الوهّاب سبحان الفتاح

## العليم سبحان المجيبُ لمن دَعَا هُ

دریُم هسې پاک سرورخیر البشر
هسې شان دي فرمائیلي برابر

چې مې وُلیدل ملک دحده دېر
د حساب وو د شمارې دحده تېر

دا ملک چې وُلیده مې پهٔ کوم حال
او صفوته وو دا ښکلي دوئي سنبال

پهٔ سجده باندې پراتهٔ وو دوئي تمام
ما پهٔ واړو باندې ولوستهٔ سلام

واړو پورته کړهٔ سرونه پهٔ شتاب
پهٔ ښهٔ شان ئې د سلام راکړ جواب

او هم بیا پهٔ سجده واړه پرېوتل
پهٔ سجده کښې واړو دا تسبیح وئیل

## سبحان الخالق العلیم سبحان الّذی لا مقرٌّ

## وَلا مَلْجَاُ اِلَّا اِلَیْهِ ـ سبحان العلیّ الا علے

جبرائیل و پوښتهٔ ما هغه ساعت
چې ددې ملکو دادے عبادت

جبرائیل ووې ددې دریُم اسمان
ملائک دا عبادت کړي د سبحان

د الله نه دا ساعت کړه دا طلب
چې هم دا عبادت واړه قدسي دېب

چې هم ستانه او هم ستا پهٔ کل امت
چې دا واړه عبادت کړي عنایت

هر چې ما دخدایه وکړ ددې سوال
هغه دم داته بخښش کړ ذوالجلال

هر رکعت کښې دوه سجدے شوې دا کېر
پهٔ نمانځهٔ کښې پهٔ مونږ فرض برابر

سبب دادے چې دا کل ملک تمام
سر کړ پورته پهٔ جواب مې د سلام

دوئي چې وکړ د سلام زما جواب
او بیا لاړل سجدې ته پهٔ شتاب

نو پهٔ هر رکعت کښې دوه سجدې اکثر    پهٔ تمامځه کښې پهٔ موږ فرض شوې برابر
دريم هسې پاک سرورٔ آخرزمان    فرمائيلي پهٔ زبان دي درفشان
چې پهٔ منځ کښې د ملکومې خپل ورور    يوسفٔ وليدهٔ سره د امت نور
ورسره وو بندګان د خپل اُمت    جبرائيل ماته دا وکړ اشارت
ورشه وکړه تهٔ سلام تعظيم ئې واړه    دجواب سره شهٔ ماته دا تر غاړه
د جانبه دالله پروردګار    پهٔ بزرګو ئې راکړ زېرے ډېربسيار
هميشه وو پهٔ تسبيح درب ګويان    دا تسبيح به ئې وايهٔ درب سبحان

# سبحان الکريم الاکرم سبحان الجليل

۲۰۳

# الاجل سبحان الفرد الوتر سبحان الابَدَ الابَدُ

څلورم هسې و ئيلي دي حضرت    د يوسفٔ ورور نه چې ما وکړ رحلت
نو مې وُليدهٔ داوُدد او سليمان    ملاقات مې ورسره وکړ بنهٔ شان
تحيَّه مې کړه پهٔ ځائے بنهٔ د سلام    دوئي جواب د سلام بنهٔ وکړ تمام
ماته ئې زېرے پهٔ بزرګو زيات حساب    وکړ ماته ئې د جانبه د ثواب
نور ئې وکړ ماته هسې شان تقرير    خپل اُمت پهٔ شفاعت مهٔ کړه تقصير
د امت د شفاعت دد ے نن شب    شفاعت د امت غواړه د پاک رب
چې نن شپه تقصير وُنکړې لوربر    او تسبيح د دوئي وُه هسې برابر

۲۰۴

# سبحان الملک الملوک سبحان القاهر

۲۰۵

# الجبّار... تصير اِلَيْه الاُمُور ط

پنځم هسې دي و ئيلي پاک رسول    چې پهٔ درد ے دالله رحيم قبول

او هر کله چې د دوئ تیر شومه راست ‎ ‎ یو ملک مې ولیده په کرسی ناست
چې ددهٔ وو برابر اویا سرونه ‎ ‎ روایت کښې ئې وائي او یا زره پرونه
هر یو پرئې وه مشرق مغرب نه تیر ‎ ‎ نور ملک لوئې لوئې ددهٔ نه وو چاپیر
چې هر یو ملک وو اوبرد دیر بسیار ‎ ‎ د یو زر دوه سوهٔ کالو وو پهٔ لار
دې ملکو یو فوج خلق عذاب ول ‎ ‎ پهٔ گرزونو د اورونو به ئې وهل
لکه غوښت به شول ریزه گروزونو لاندې ‎ ‎ او پهٔ اور باندې به وسول لاندې باندې
بیا به شول واره ژوندي پهٔ هغه مال ‎ ‎ جبرائیل نه مې د دوئ وپوښتهٔ حال
او ددې ملک معلوم کړه ما ته نوم ‎ ‎ هم کړه دا د عذاب خلق را معلوم
پهٔ جواب کښې راته ووې جبرائیل ‎ ‎ هم ددې ملک سم نوم دے سرحائیل
دا تو لگه چې عذابیږي پهٔ دا شان ‎ ‎ کیږجن دي هم ناترسه ظالمان
او دا ستا دې د امت واړه اکثر ‎ ‎ دا لله نه دا ملک دے مقرّر
او سره د خپله فوجه دنهایت ‎ ‎ پهٔ عذاب به دوئ ترورځې دقیامت
پهٔ دې قوم به مقرروي دا عذاب ‎ ‎ دا تسبیح به دې ملک وي د تواب

# سبحان من هو فوق الجبارین سبحان

## ۲۰۶ المسلط فوق المسلطین سبحان المنتقم ممّن عصاهٔ ۲۰۷

شپږم هسې دوست محبوب د پاک اکبر ‎ ‎ پهٔ دا شان دي فرمائیلي برابر
چې دیا سه را غلم زهٔ پهٔ یو دریاب ‎ ‎ لوئې عظیم وه زیات د حده د حساب
نشي هیچانه ددې دریاب صفت ‎ ‎ هسې لوئې عظیم ا نشان وه نهایت
بې د خدایه نهٔ دے هیچا ته معلوم ‎ ‎ جبرائیل نه مې ددهٔ وپوښته نوم
جبرئیل وې نوم ددهٔ بحرالنعّم دے ‎ ‎ کم هم کم پهٔ اوه وارد دنیا سم دے
او اوبهٔ ددې دریاب څهٔ کمې کمې ‎ ‎ او هٔ حٔله د دنیا دې سمې سمې

د مشرقه تر مغربه یکه مانه ... ان د زمکې نه ان پورته تر اسمانه

پس له هغې نه محبوب د رب رحیم ... هسې شان دي فرمائيلي دوست کريم

چې له دې دریاب نه تېر شو مه آسان ... شرم ر حزبه څلورم اوچت اسمان

شاد محمد لا د سرور خپل غلام اوسه

په خدمت د خپل حضرت شامدام اوسه

ځان د خپل رسول کره خاوري د پېزار ... اوسه سم د شریعت په سمه لار

## غزل در نعت سید الابرار احمد مختار صلی الله علیه وسلم

۲۰۸

اے زما د زړه تسکینه راشه راشه ... خبر زده کړه له مسکینه راشه راشه

چې همه خوبان دې لاندې تر قدم دي ... تر همه و بهترینه راشه راشه

چې رحیم کریم قدیم دې ناز بردار دے ... د الله د در نیاز بینه راشه راشه

ستا نوري صورت چې شوے آخرین دے ... په معنیٰ کښې اولینه راشه راشه

په نظر دې زنګین زړونه صیقل کېږي ... صیقل ګرد زړه زنګینه راشه راشه

کل ملک او جن او انس دِ قدمبوس دي ۲۰۹ ... د ستا په نور رنګینه راشه راشه

چې سوال اول دِ رب نه د امت وو ... د امت په غم غمګینه راشه راشه

شاد محمد دِ بے غلام ستا د کوڅې دے

د پر و پر برې د لعینه راشه راشه

# فصل دے نهم په بیان د هغو عجائبو

## چې احمد صلی اللہ علیہ وآلہ وسلم په اسمان ځلورم کښې لیدلي دي

د هغې جمله څیز و نو نه په شمار — اته څیزه را ولمه په اظهار

اول هسې پاک سرور اخر زمان — دي وئیلي برابر په هسې شان

چې مې ولید ځلورم اسمان سنبال — سپینو زرو نه ترتیب کړ ذوالجلال

په بل یو روایت کوي خبر چې — دا اسمان وو روغ د سپینې مرغلرې

او وه زمکې ددې اسمانه سراسر — احاطه ددې اسمان کښې برابر

یوه حلقه په بیابان ښکاریده سمه — د ذرې نشته په دې کښې زیات وکمه

او په یو روایت دا واڼې معلوم — چې ددې چارم اسمان دے زیون نوم

خاص ددې آسمان یو دُر وو صاف د نور — هم یې قلف جرنده د نورده بته ضرور

په دا قلف باندې رحیم کریم سبحان — وو لیکلي برابر په هسې شان

## لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ

دروازه باندې ددې چارم آسمان — اختلاف یې دے په نوم کښې د دربان

او په یو روایت نوم یې عزرائیل دے — او په بل روایت نوم یې موضیائیل دے

دے په بل روایت نوم یې مومیائیل — په تبر حال به دوکه ادرکړ جبرائیل

دروازه یې کړه زما د پاره بېرته — چې ورو ختلم پاس او چتني سرته ع۲۱۰

عجائب مې پکښې ولید له د بر — د حسابه د شمارې رحده د بر

موضیائیل ددې اسمان دربان افسر — هم په وارو اموراتو یې مقرر

تابعان د موضیائیل وو ځلور لکه — د هر یو ملک ځلور لکه بېشکه

په دا شان د هر یو نور نور تابعان وو — هم په دا تسبیح تمام درب گویان وو

## سبحان خالق[۲۱۱] الظلمات[۲۱۲] والنور سبحان

## خالق الشمس[۲۱۳] والقمر المنیر[۲۱۴] سبحان الرفیع الاعلیٰ[۲۱۵]

دوهٔم هسې پاک حضرت حبیب د رب　　فرمائیلي دي سرور پهٔ نوري لب

موسیٰ ورور مې ولیده څپل هغه ساعت　　بدلې وائي دا پهٔ سل یو روایت

پهٔ شپهٔ م اسمان کښې پاک رسول کریم　　ولیده بشهٔ ورور څپل موسیٰ کلیم

واللّٰه اعلم بیا جبرائیل　　پهٔ سلام ئې را کړ حکم پهٔ تعجیل

ورته وړاندې پهٔ آداب سره شوم تېر　　هم ادب مې کړل پهٔ ځائے د سلام ډېر

د سلام ئې ادا زما جواب　　او را پورته شهٔ ژر ماته پهٔ شتاب

زر ئې ونیو مه هغه د رنګ پهٔ غېږ کښې　　لکه لعل چې څوک بیا مومي پهٔ ریګ کښې

منځ د دوارو ورو زو ماله ئې کړ بشکل　　پهٔ زبان درفشان دا ئې وه ویل

## اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ اَرَانِيْ وَجْهَکَ

چې ثنا او هم دے شکر د ستار　　چې ئې زهٔ کړم مشرق ستا پهٔ دیدار

پهٔ بزرګوئې راکړ زېرے ماله د بر　　د جانبه د الله د حمده ستېر

او دا رنګ ئې راته ووې پهٔ دوه لب　　چې نن شپه ده دا رنګ شپه د عجب شب

چې پهٔ دوارو لاسو منځ کښې د سبحان　　درکېدلے به شي تا لره مکان

هسې رنګ به پهٔ بحث خاص وې چې بالکل　　چې هڅوک پهٔ کښې ځائېږي نه زیات بل

رباعي ده هسې رنګې محاسبه　　برابر ده مناسب ذوالمراتبه

## رُباعي

تا محرم ځان دِ بهر شی له دې داره　　چې نن شپه یُم پهٔ دا رنګ د خیال دیاره

د خلوت پهٔ دا ډېره کښې محو شوے　　چې زهٔ هم نهٔ یُم خبر له دې اسراره

د هر قسم نه چې ته کوې طلب　　ضعیفات د امت خپل په هغه سبب
البته هېر نه کړې خپل ضعیف امت　　که په دوی باندې شي فرض یو خدمت
نو په حق کښې د کمزورو کوه سوال　　او هر څو مره چې توانېږي په کمال
په کمي کښې کوه وس ددې په خپل ځان　　دو موسیٰ په دې تسبیح سره ګویان

# سُبْحَانَ مَنْ یَّهْدِیْ مَنْ یَّشَآءُ وَیُضِلُّ مَنْ یَّشَآءُ وَهُوَ الْغَفُوْرُ الرَّحِیْمُ ۲۱۶

حضرت ووې چې د موسیٰ شوم روان　　نو موسیٰ کلیم الله شه په ګویان
د ژړا له ده نه دا وشوه پوښتنه　　چې دا هسې ته ژړا کوې د څه نه
هغه دم مهتر موسیٰ علیه السلام　　په ژبات عربي دا وکړ کلام

# ابکی لِاَنَّ غلاماً بعث من بعدی یدخل الجنة من اُمته اکثر مِمَّا یدخلها من امتی

کلیم ووې ژاړم څکه دا ساعت　　چې یو ځوان به شي مبعوث په نبوت
چې امت دده اول به په جنت　　دا خلیږي زر زما د کل امت
چې په بل روایت دا کړي قال و قیل　　چې په ما باندې کل تمول بني اسرائیل
په اولاد کښې د همه بابا ادم　　کړ ګومان د فضیلت ئې په ما سم
زه په نېن ئې د الله رحیم اکبر　　کاوه ما باندې ګومان ئې د بهتر
حال دے دا په نېن د پاک الله سبحان　　ډېر بهتر دے ما نه دا مبارک ځوان
که یو اځې دے زمانه وې افضل　　هم آسانه به وه نه به وو خلل
لیکن نېز باندې د پاک پروردګار　　امت هم ئې په امت زما بسیار
بهترین دے د حساب د حده تېر　　او امت دده زما امت نه ډېر
نهایت زیات به الله دده امت　　زما امت نه به دا خل کړي په جنت
دریُم هسې پاک سرور نبي روېدار　　په ژبان درفشان دا کړے ګفتار

د بر ملک مې پـهٔ قعدهٔ ولیدل ناست
پـهٔ وېـل ددې تسبیح دوسره راست

## سبحان الرؤف الرحیم سبحان النور المبین سبحان الذی

## لا یخفی علیه شیٔ سبحان رب العلمین ط

جبرائیل وپوښته ما هغه ساعت
چې ددې ملکو دادے عبادت

جبرئیل ووې چې او پـهٔ هسې شان
دے ددوئ عبادت سوال کړهٔ د سبحان

چې دا طور عبادت الله اکبر
ستا اُمت ته عنایت کړي سراسر

هغه دم مې پـهٔ درگاه د ذوالجلال
تړې نه وُکړ ما ددې عبادت سوال

پاک الله کړهٔ پـهٔ بخشش مې پوره عرض
او پـهٔ نمونځ کښې شوه آخره قعدهٔ فرض

دا پـهٔ ما او هم زما پـهٔ اُمت خاص
شوه آخره قاعده فرض پـهٔ اخلاص

څلورم زموږ سرور خیر البشرؐ
هسې شان دي فرماېلي برابر

چې ددې ځائے شوم وړاندې څوقدمه
هغه ځائے مې وُلیده بي بي مریمؑ

هم مې مور د موسیٰؑ ولیده ښکاره
آسیه ښځه د فرغون وه ورسره

داغلې درې واړه زما پـهٔ استقبال
ددې درې واړو پـهٔ دا رنګې ووحال

د بي بي مریمؑ وې ښې اویا زره
ښې مانۍ د زمردو سپینو غوره

د موسیٰ د مور اویا زره تیارې
وې مانۍ د زمردو شنو قرارې

او د ښځې د فرغون هم اویا زره
د یاقوتو سرو مانۍ وې د حد غوره

هم اویا زره مانۍ ئې پـهٔ دا شان
د مرجانو وې ورکړي پاک سبحان

پنځم هسې دي وئیلي پاک رسولؐ
چې پـهٔ درد دے دالله رحیم قبول

یو ملک مې ولید ناست وو پاس پـهٔ تخت
د بر نمجن طبیعت قبض وو د بر سخت

ددې تخت وو څلور کُنجه برابر
پـهٔ هر کُنج کښې ددې تخت سراسر

او وهٔ سوه زره ئې وې پوړکه د زرو
د سرو سپینو او هم وې څهٔ د گوهرو

ترې چاپېره دوه ملک ولاړ بېشماره     خبر نهٔ دي څوک پهٔ شمارې بې ستاره

ښي طرف ته يې ملک تېول نوراني وو     سبز پوش روښان مخونه لا ثاني وو

او حليمي نرمي ډېرې ذرهٔ ببېدار     او خوشحاله خوبصورت نېکخوي بسيار

چې به سترګو د هغو پهٔ مخ نظر     چرې وکړېل طرف به يې نه کړ سر

هرګز نهٔ شهٔ بهٔ نظر د دوئ نه پورته     چې پهٔ سترګو وُکتل د دوئ مخ لورته

چې پهٔ کيڼ طرف ملک ئې وو عيان     تېول تورمخي جامې تورې بدګويان

هم بدخويه هم بدګويه وو تمام     هم تسبيح به ئې کاوهٔ سيا ماښام

او د خولې نه به ئې تلې لمبې د اور     پهٔ مثال د ننارهٔ به پهٔ ډېر زور

چې هيڅ ابه د يدو د دوئ طاقت     راوړے نشهٔ کم ذرې نه لږ ساعت

او هغه ملک چې ناست وو پهٔ تخت پاس     ګکرےد نه ترقد مه ان تر راس

سترګې سترګې وو تېول دارنګي بسيار     چې د سترګو ئې تلهٔ دا شاني انوار

وا هغهٔ برق ئې اسمانو نوکښې جاري     سم پهٔ مثل د مريخ د مشترې

او ددې ملک مې وليدل وزر     نهايت ډېر د حسابه نه بهر

هم د وړاندې مې پر وليد له ډېر     چې پراتهٔ وو لوئې د حد پهٔ هورته تېر

يو تخته ئې وه نيولې پهٔ لاس خپل     او دا رنګ به دې تختې ته دهٔ کتل

چې يو دم به ئې هم ترې سترګې نهٔ کړې پورته     هر ساعت به ئې کتل د تختې لور ته

يوه وُنه لويه ډېره سراسره     ورته وړاندې وه ولاړه برابره

د هغې ونې دې پانې بې حسابه     چې پهٔ شمارې څوک پوه نهٔ دي بې توابه

او ليکلے وو پهٔ هره پانه نوم     د يو يو کس پهٔ هر يو ورق معلوم

يو بل څيز وو ورته پروت پهٔ شان د طاس     هر ساعت به اوبه داوهٔ ورته دهٔ لاس

او څهٔ څيز به ئې د دې طاسه راينوهٔ     او ملکو له دا شان به ئې ورکاوهٔ

کله ښي طرف ملکو له د سنوس!     هغه څيز به ورکاوهٔ به دهٔ ضرور

کله کيڼ طرف ملکو له سنبال     ورکاوهٔ به ئې دې تور مخو ته في الحال

نو رسول اخر زمان خیرا لبشـــر | هسې شان دي فرمائیلي برابر
چې مې دا ملک د لوې ولیده | هر اندام باندې مې راغله لرزیده
ویره مایا تدې غالبه شوه زیاتي | هم مې راغله په وجود ضعف سُستي
ویو بشته مادې حاله جبرائیل | جبرائیل ووې چې دادے عزرائیل
چې هر کس به ددهٔ وکاندې دیدن | نور ئې وکړه دا شان سره گفتن

# هوهادم اللذّات ومُفرِّق الجماعات[218]

یعني دے دے بخو ایستونکے د ذاتونو | جدا کړونکے د ټولګو د جماعتونو
پس له هغې جبرائیل علیه السلام | عزرائیل ته هسې شان وکړ کلام
چې دا څوان دے روح الجان د کل جهان | دے سلطان عالم اسرار د لامکان
شهنشاه دے برابر دانس وجان | پیغمبر دے له سبحان اخرزمان
معشوقه دے دا دلّس رحیم اکبر | عزرائیل کړ سر دا پورته برابر
وُ کتل په تبسّم ئې زما لورته | او تعظیم تکریم ته زر شه زما پورته
دا ئې ووې را شه هر کله رسوله | په درګاه د رب رحیم کریم قبوله
را لېږلے نهٔ دے بل یو پیغمبر | بې له تا نه عزیز تر او بزرګ تر
هیڅ امت بزرګتر نیز باندې درب | ستا امت نه نشته بل امّت عجب
او زړهٔ دیات ئم مهربان ستا په امّت | د مور پلار نه د دوئ کرم پرې شفقت
ورته ؤمې وئیل اے ملک الموته | غم زما د زړهٔ دي واړهٔ کړ بل لورته
زړهٔ زما دې بحسابه دېر خوشحال کړ | غم د زړهٔ نه دې بهر زما في الحال کړ
مګر لېږ غوندې لرم په زړهٔ کښې شک | غوارم دا چې دا شک زړهٔ نه مې کړې حک[219]
عزرائیل ووې خپل شک کړه را بیان | ورته ؤوایهٔ بیا ما په هسې شان
چې تا قبض غمجن و یسم نهایت | زړهٔ دې دېر دے فکرمند په دا ساعت
سبب څهٔ دے ما پهٔ دې کړه خبردار | را ته ئې ووې یا رسوله د ستّار

د هغې ورځې چې پاک پروردګار    چې په ما باندې سپارلے دے دا کار

امانت د ارواحونو پاک اکبر    په ذمه دے زما کړے برابر

نو ویرېږم همیشه د رب قدیر    مبا دا څه رانه وُنشي تقصیر

دې خدمت کښې رانه وُنشي نقصان    او علاج ېې رانه وُنشي امان

۲۲۰

بیا مې ووې ورته دا دے دڅه طاس    دم په دم چې ته وهې په دې کښې لاس

راته ېې ووې دا تمامه دنیا صافه    دا مثال دے د دنیا چې قاف تر قافه

احاطه ده د قبضې زما د لاس    لکه زه چې تصرف کړم په دې طاس

احاطه د دې دنیا همه بالکل    بیا مې ده ته په دا شانې وُوئیل

دا تخته د څه ده هم د څه چلونو    راته ېې وې ده دا تخته دا جلونو

د ژوندو چې پاتې نشي ژوند څه ته    بیا مې وُوې ورته دا ده د څه وونه

راته ېې وُوې نشانه ده دا درخت    برابر د هر نېک بخت د هر بد بخت

او په هره یوه پاڼه ېې معلوم    پرې لیکلے دے د هر یو بنده نوم

نېک بختي او بدبختي ېې سراسر    وي لیکلي بل طرف ته برابر

هر چې یو بنده دنیا کښې شي بیمار    هغه پاڼه د نوم زېړه کړي ستار

او هر کله چې دده را شي اجل    نو هغه ورق د وُنې شي رابېل

او په دې تخته راپرېوځي بیا معلوم    زر د دې تختې نه ورک شي دده نوم

نو زه او بد د کرمه لاس ورته ضرور    دا بنده وي د مشرق تر مغرب دور

روح ېې قبض کړم بیا نه کوم مهلت    بیا مې ووې ورته دا هغه ساعت

چې ملک په بني او کیڼ طرف بسیار    چې ولاړ دي تا ته څه کوي دوئ کار

راته ېې وُوې چې ملک په بني طرف    او بني لاس دي د رحمت او مشرف

هر چې روح زه د نېک د مسلمان    چې کړم قبض سپارم دوئ ته ېې امان

چې کړم قبض سپارم دوي ته برابر    روح پلید د هر بې دین شیطان کافر

بیا مې ووې ورته دا ملک بسیار    چې دوئ څومره په عدد دي یا په شمار

ما ته یې ووې چې د دوئ عدد حساب ‌ ته پوهېږې مه یې پوهېږې یې پاک تواب

یکن شته ملکه د بنده رحمت ‌ هر مؤمن د قبض روح له[۲۲۱] چې په نیت

او هم شته ملکه د سخت عذاب ‌ هر کافر د قبض روح له په شتاب

قبضولو له د روح د هر کافر ‌ د عذاب دا ملک ځان کاندي یې حاضر

نور دي ملکو هر چې شي تېر وار ‌ تر قیامته یې وار نه راځي دوبار

بیا حضرت ورته دا ووې هسې شان ‌ قبضولو له د روح د هر انسان

ته په خپله ورځي یا څوک نور کسان ‌ او دا کار کوي خبر مې کړه دا آن

عزرائیل ووې چې زه غني پاک خدای ‌ پیدا کړې یمه زه هم په دا ځای

خوز پیدا نه یم زه د خپل مکان ‌ او یا زره زه لرمه امیران

د هر یو امیر او یا زره دلاندې ‌ نور ملک دي د دوئ حکم وي پرې باندې

او هر کله چې د چا ورېږي نیض ‌ چې وخت راشي د بنده د روح د قبض

نو دوئ ولېږم په هغه دم ضرور ‌ او دوئ روح د بنده حلق کړي حضور

زه ددې ځایه لاس اوږد کړمه سم ‌ روح یې واخلم برابر په هغه دم

پس له هغې پاک سرور دوست د جلیل ‌ لاس ونیو هغه د عزرائیله

ورته یې ووې اې ملکه مقرّب ‌ یو درخواست لرم ما پوره کړه د مطلبه

چرې ته که دا درخواست مې کړې قبول ‌ پس له هغې د زړه ورک به مې شي نول

عزرائیل ووې چې ستا حکم فرمان ‌ کړم قبول به ستا په روح په دل او جان

حضرت ووې دا درخواست لرم په نیت ‌ قبضولو کښې د روح مې په امت

تلطف مهربانې کوه نرمې ‌ چې له دوئ سره ونه کړې څه کرمي

چې دوئ ډېر دي بې حسابه عاجزات ‌ زیات د حده دي دا واړه ضعیفات

عزرائیل ووې چې اې پاکه رسوله ‌ په درګاه د رب رحیم کریم قبوله

چې خپل زړه مبارک ډېر لره خوشحال ‌ هم شاداب لره غم مه کړه یو مثقال

دې قسم مې په حرمت او په عزت ‌ د هغې معبود برحق چې یې خلوت

او د ختم الانبیاؤ برابر ‌‌ هم د وارو رسولانو سراسر

ستا پهٔ قد مبارک پښت دے هم درست کړي ‌‌ خطاب ختم الانبیاء دې وکړي

چې پهٔ هر یو شب و روز کښې پاک ثواب ‌‌ کړي پهٔ خپله ماته حکم او خطاب

وائي دا اے عزرائیله دا مت ‌‌ سره د یره اساني کړه د حضرت

کړه مهم پهٔ اسانئ د دوئ انجام ‌‌ رسوه نوښواه ناخواه او کام ناکام

مهربان ستا پهٔ امت یم زهٔ بسیار ‌‌ زیات د حده اَن د دوئ د مور و پلار

شپږم هسې دي و ئیلي پاک رسول ‌‌ چې پهٔ در دو دا ﷲ رحیم قبول

دي آسمان کښې مې یو ولیدهٔ دریاب ‌‌ چې وې سپینې یخ د واوري کنګل آب

جبرائیل علیه الصلوٰة والسلام[٢٢٢] ‌‌ و پوښت ما چې دا دریاب لري څهٔ تام

جبرائیل ووې چې بحرالثلج نوم ‌‌ دا دریاب لري پښهٔ صاف ستُرا[٢٢٣] دا نوم

لږه واواره کهٔ ددې دنیا بهر شي ‌‌ خلق د زمکې د اسمان بهٔ مړ اکثر شي

دیخنیء د هغې واورې امانت ‌‌ خلق هلاک به شي د زمکې د اسمان

اووم هسې پاک سرور خیرالبشر ‌‌ هسې شان دي فرمائیلي برابر

چې پهٔ دې اسمان کښې ومې لید ضرور ‌‌ چې بالهٔ شي پهٔ نامه بیت المعمور

بعضې وائي دلته دا سې روایت ‌‌ چې اووم اسمان د پاسه پاک حضرت

او د سدرة المنتهیٰ څخه قریب ‌‌ وه لیدلے پاک حضرت د رب حبیب

پهٔ هر شان سره تعریف چې ددې کور ‌‌ دا رنګ کړے دے حضرت چې نشته نور

چې د بیت المعمور کور دے نورانې ‌‌ دیوې دانې یا قوت سور لاشانې

دروازې یې دوه لرلې برابر ‌‌ د ښو سبزو زمردو سراسر

پهٔ کښې لس زره قندیله د سرو زرو ‌‌ هم پهٔ کښې وو دیا قوتو سرو بهترو

او پهٔ دوئ وې او بزاندې مرغلرې ‌‌ هر قندیل روښان به برق واههٔ دلرې

هم د میاشتې هم د نمره وو روښان ‌‌ یو منبر وو پهٔ کښې پروت عجیبه شان

دا منبر وو د سرو زرو ښهٔ ښکاره ‌‌ هم د سپینو پکښې وه ښهٔ مناره

دا د سپینو زرو دا منارہ سمه　　وہ ولاړہ پهٔ کښې نشته زیات د کمه

د پنځو سوؤ کالونو لار څرګنده　　پوره دا منارہ وہ پورته پلنده

د هغې ورځې نه دا بیت المعمور　　پیدا کړے دے الله رحیم غفور

تا تر هغې ورځې پورې رب جلیل　　د پوکلو د شپیلۍ د اسرافیل

هسې شان مقرر کړے دے اکبر　　تل اویا زره ملک دا ځي اکثر

او د لاندې برابر د عرش عظیم　　غسل وُکړي پهٔ دریاب د نور سلیم

څادرونه کړي پهٔ سر د نورعیات　　او اواز لبیک لبیک کوي پهٔ شان

د حاجیانو پهٔ شان دا واړه تمام　　برابر وُتړي کل واړه احرام

او چاپېره ددې بیت المعمور ف　　دا اویا زره ملک کوي طواف

تر قیامته پورې بیا چرې دوبار　　او ددې ملکو نهٔ راځي بیا وار

جبرائیل ونیوه لاس د پاک سرور　　پهٔ دا بیت یې کړ د ننه برابر

ورته یې وُوئیل چې اے پاکه رسوله　　پهٔ درګاه درب رحیم کریم قبوله

د اوؤ وارو اسمانو سلامت　　فرشتو تمامو وکړهٔ امامت

لکه بیت المقدس کښې زمکه پاندې　　د نبیانو امامت دِ وکړو وړاندې

د همه پیغمبرانو چې ضرور　　امام شوے وې دا رنګ دلته حضور

هم پهٔ دې بیت المعمور کښې دا ساعت　　ددې کل ملکو وکړه امامت

نو حضرت خیر البشر دوست د سبحان　　فرمائیلي پهٔ زبان دي درفشان

چې پهٔ دې بیت المعمور کښې سنبال　　دوه رکعته وکړ مونځ مې تبهٔ في الحال

آسمانونو کښې ملک وو څهٔ پیدا　　ماپسې تمامو وکړه اقتدا

د اوؤ وارو آسمانو چې تمام　　څهٔ ملک وو زهٔ د وارو شوم امام

نو صاحب زمونږ سرور خیر البشر　　هسې وائي دوست محبوب د پاک اکبر

او هر کله چې مې ولیده دا جمعه　　نو پهٔ زړهٔ کښې مې پیدا شوله دا طمعه

چې دا رنګ پهٔ مونږ کښې وي زمامت　　حکم وشهٔ له درګاه هغه ساعت

یا رسوله چې تا ولیده دا جمعه / دا رنګ ستا امت کښې کرم به پیدا جمعه

هغه جمع د جمعې دا ورځ ده سمه / په نما ځکه کښې د جمعې کیږي بیغمه

او ثواب ددې جمعې تمام ضرور / د ملکو زه ددې بیت المعمور

تر قیامته ستا امت ته برابر / کل ثواب به بخښم واړه سراسر

دلته هسې مصنف کوي بیان / کتابونو تنډکو کښې په ښه شان

دي را علي په نظر ددې فقیر / چې هر کله د جمعې ورځ کړي تقدیر

ټول ملک د آسمانونو په سرور / شي کل جمعه دک کړي کل بیت المعمور

جبرائیل وخیږي پاس په مناره / او اواز وکړي ملکو ته ښکاره

اسرافیل وخیږي پورته په ممبر / خطبه ولولي په ښه شان برابر

میکائیل علیه الصلوة والسلام / د همه ملکو واړو شي امام

ټول ملک ورپسې وکړي اقتدا / او هر کله چې دا مونځ کاندي ادا

جبرائیل وکړي اواز په هسې شان / اے ملکو تاسو اوسئ ګواهان

ما ثواب د خپل اذان په دا ساعت / بانګ ویونکو د امت ته د حضرت

ما بخښلے دے تمام واړه ثواب / میکائیل وه واڼي هسې په شتاب

امامانو د امت ته د سرور / ما ثواب د امامت خپل سراسر

دے بخښلے ما ثواب واړه تمام / د سرور د کل امت په هر امام

د اووه اسمانو کل ملک بسیار / واړه وکړي د ستي دا اواز یکبار

چې دې مونځ کښې چې زمونږ وي هر ثواب / ټول امت ته د محبوب د پاک ثواب

دا ثواب مونږه بخښلے دے یا لکل / ټول امت ته د رسول ددې مونځ خپل

حکم وشه د الله پرورد ګار / اے ملکو تاسو واړه په دربار

زما مه ښکاره کوئ خپل سخاوت / چې خالق د سخا زه یم هر ساعت

تاسو اوسئ تمام واړه ګواهان / چې امت مې د رسول اخر زمان

ما بخښلے دے کل واړه عذابه / اخرت نه مې بیغم کړه دهر بابه

# اَلحمدُ لِلّٰهِ والشکرُ لِلّٰهِ عَلیٰ نَعْمَائِهٖ

اتم هسې د تمام خلقو زینت — فرمائیلي دي زمونږ د پاک حضرت
چې مې دي چارم اسمان کښې ولید نمر — او په یو روایت واخلې برابر
سل شپېته کرته لوې دے د دُنیا — یو ذره نشته په دې کښې کم سوا
روایت دے بل د ابن عباس صاف — په کښې نشته د ذرې قدرې خلاف
چې میدان د نمر پوره لري دا شمار — دا تیا زره کلونو لري لار
او هر کله چې رحیم قدیم سبحان — چې پیدا یې کړ هم دا چارم اسمان
پس له هغې یې پیدا کړ په کښې نمر — یو کشتۍ هم ده د پیاده برابر
کړه ظاهره او یو تخت هم غني خدا — د یاقوتو سروته کړو ور له پیدا
ددې تخت درې سوه هم شپېته د پاسه — پښې لرلې برابر هم بې وسواسه
هره پښه باندې ددې تخت برابر — او یو یو ملک نیولې وه اکثر
په هغې کشتۍ زرینه کښې دا نمر — دې کشتۍ کښې یې وو ایښې مقرر
دا کشتۍ په هغه تخت باندې بېغمه — بېلکې ایښې ده کشتۍ په دې تخت سمه
او دا تخت درې سوه هم شپېته په شمار — دې ملکو وو نیولے برقرار
په دریاب کښې هم ددې اسما د لاندې — د چارم اسمان دے بیا یې پرې دباندې
هر سبا یې د مشرق نه کړي را پورته — هر بېګا یې کاندې ښکته د غرب لورته
نو هغه ملک هم بیا په عبادت — سم مشغول د پاک الله په هر ساعت
بله ورځ هم بیا درې سوه شپېته نور — ملک راشي نمر راکاږي په ډېر زور
درا ښکلو چې د هرې فرقې وار — د نمر تېر شي تر تیا مته بیا دوبار
او ددې ملکونه راولي خدا ے — او په بعضې تفاسیرو کښې یې ځاے
دے قرار د عرش عظیم لاندې د نمر — دي ویلي په کښې نشته لږ و بر

د غروبه پس پنډ یه د عرش عظیم
بیا یې کاندې پهٔ سجده درب رحیم
ملائک یې بیا نیُ هلته برابر
پرې سجده کوي د پاک غني اکبر
ترسیا پورې هم هلته وي دا شان
پس له هغې نه یې پهٔ حکم د سبحان
بیا یې پورته د مشرق د بنهٔ جانب کړي
بیا غروب یې پهٔ جانب کښې د مغرب کړي
پهٔ دا شان سره تېرېږي زمانې
ترهغې چې شي پیدا دا نښانې
چې به هسې حکم وُ کاندې پاک رب
نمر بهٔ پورته کړي د لوري د مغرب
او ددې حدیث کړهٔ ته یې مطلبي
پهٔ عرایس هم د امام ثعلبيؒ
صاف ضرور حضور به وې پکښې مذکور
بلکې واسلّم اعلم الله غفور
پس له هغې نه زمونږ د پاک رسوٌل
چې پهٔ دردے د الله رحیم قبول
فرمائيلي پهٔ زبان دي درفشان
چې دا خلشوم پهٔ نجم اوچت اسمان
د یا قوتو سره نه جوړ وو سلامت
بلکې دا واڼې پهٔ بل یو روایت
چې د سرو زرو نه جوړ وو دمزې
پرا نستلے وو سابق د دروازې

شاد محمد فکر بنهٔ کوه د ځان
چې د شرعې کوز پاس نهٔ شي پهٔ هیڅ شان

ځان غلام لره پهٔ صدق د قلوب
د سرور د پاک اکبر د دوست محبوب

## غزل نعت احمدی صلی الله علیه وآله وسلم

اے چې دوست محبوب یلے یې اکبر
هم یې تاج کړ د لولاک درته پهٔ سر
شهنشاه یې کړې د کل وارو نبیانو
د مرسلو هم رب ته کړلې افسر
ستا د مخ یې پیدا کړه دنیا واړه
ګنډې نه به وُه آدم ابوالبشر
تهٔ مبدا کړې رب د واړو پیدائشو
کهٔ دې عرش کرسي زمین جنت سقر
ملائک پېریان او هم کل حیوانات هم
نباتات او جمادات او غر شجر

هم ولدان غلمان او حورې هم حوران ۔۔۔ او هم ستورې یاران ایرشمس قمر

نام نشان د هیڅ اشیا نه وو بې ربه ۔۔۔ چې ستا نور کړ خدائے د خپل نوره مظهر

بې د خدایه هیڅ اشیا نهٔ وو ظهور کښې ۔۔۔ هیڅ جاندار نهٔ وو بې پرَه نه دېرَ

نور یې ستا د خپله نوره مرمّت کړ ۔۔۔ نور یې ستا د نوره جوړ کړه سراسر

نور اول وجود اخر دې پهٔ ظهور شهٔ ۔۔۔ هم اول یې هم اخر یې پیغمبر

دې دواړو پېدا اشُو مبدا ءِ تهٔ کړې ۔۔۔ ستا د مخ یې کړ پیدا جهان اکثر

هم یې ستا امت بالا پهٔ کل اُمت کړ ۔۔۔ ستا د مخ یې ستا اُمت کړ بزرگتر

شاد محمدؔ غم دې څهٔ د اخرت دے

چې لرې پېشوا حضرت نبي سروَرؑ

# فصل دے لسم په بیان د هغې عجائبو

## چې احمد صلی الله علیه وآله وسلم په اسمان پنځم کښې لیدلي دي

پاک سرور محبوب درب اخر زمان
دي وَ ئیلي د پنځم اسمان داستان

چې را وختم ددې اسمان د پاسه
دا رنګ لوئې راته ښکاره شه بې قیاسه

چې دا نور څلور اسمانه او وه زمکي
او ددې پنځم اسمان ته ښکاري ورکي

او په مثل د حلقې د بیابان
ښکاریدل په منزله ددې اسمان

نوم ئې البیانیقون دے مقرر
صاف ددې پنځم اسمان ښهٔ برابر

ددې وارو عجائبو نه د سول
چې لیدلي دي په در د درب مقبول

په پنځم اسمان کښې ډېر څیزه بسیار
دوَ لیدلي دلې ښېم پنځه په شمار

اول هسې دي وئیلي پاک سرور
دربان ولیدما ددې اسمان د در

یو ملک په یوهٔ تخت ناستې وو ناست
نوم ددهٔ وو سقطائیل برابر داست

ما سلام پرې باندې ولوست په شتاب
دهٔ ادا کړ د سلام زما جواب

پهٔ بزرگو پهٔ کراماتو ئي بسیار ۔ راکړ زیرے د جانب د پاک ستار

او پنځه لکه ملک ددې درمیان ۔ تابعدار ووُ برابر ددهٔ د ځان

د هر یو ددې پنځو لکو بېشکه ۔ تابعان ئي وو پنځه پنځه نور لکه

دې همه وارو ملکو سراسر ۔ دا تسبیح بهٔ ئي وئیلو برابر

## قدّوسٌ قدّوسٌ ربُّ الارباب سبحانه[۲۲۴]

## ربّنا الاعلی الاعظم[۲۲۵] قدوسٌ قدوسٌ ربُّ الملآئکة والرُّوح

دو بهٔ هسې پاک سرور نبي روئیدار ۔ پهٔ دا شان سره دے کړے دا گفتار

چې ددې ملکو تیر شو مه تمام ۔ خوّمې وُ لید ابراهیم علیه السلام

اسماعیلؑ او هم اسحاقؑ او لوطؑ سنبال ۔ هم مې ولیدهٔ یعقوب همه فی الحال

پهٔ یو ځائے کښې سره واړه وو دوئي ناست ۔ پهٔ ثنا درب رحیم کریم وو راست

دوئي ته ورغلم پرې وُمې وې سلام ۔ د سلام جواب ئي وکړ زما تمام

ابراهیمؑ خلیل الله مالره سم ۔ مبارک لاسونه راکړهٔ هغه دم

راته ئي ووې یا رسوله محمّده ۔ یو ځائے نن شپه بهٔ ته کښېنې دا حده

یا دلره چې ته پهٔ حق د خپل امت ۔ اسانه کښې کړه طلب د عبادت

کهٔ هر څهٔ لرې طاقت کوه طلب ۔ دوئي پهٔ جمع دا تسبیح وایهٔ درب

## سبحان من لا یصف الواصفون[۲۲۶] عظمته و منتهاه[۲۲۷]

## سبحان من خضعت[۲۲۸] له الرّقا وذلت له الصعاب[۲۲۹]

او پهٔ یو روایت وائي هسې شان ۔ چې ئي لیدلے وه رسول خلیلؑ رحمان

پهٔ اووم اسمان کښې واڅې برابر — هم ئې وکړه وصیت دُرګوهر

پاک حضرت ته ئې وصیت وکړل ډېر — پهٔ محل خپل کښې بهٔ راشي اول خبر

دوهم هسې فرمائیلي دي رسول — چې پهٔ درود دالله رحیم قبول

چې هر کله شوم ددې ځایه روان — ملائک ولیدهٔ ما ددې اسمان

او همه قائم وو واړه سراسر — کاوه خپلو قدمونو ته ئې نظر

دې ملکو پهٔ اوچت اواز بلند — دا تسبیح ټولو وئیلو به څرګند

## سبحان القاضی الاکبر سبحان العدل الذی لا یجور (۲۳۰)

جبرائیل وُپوښتهٔ ما هغه ساعت — چې ددې ملکو دادے عبادت

جبرائیل وې او د خدائے وکړه طلب — تا ته ستا امت ته وبخښي دا دب

هغه دم مې پاک الله ته وکړ سوال — عنایت کړ ما ته دا پاک ذوالجلال

او هم هغه عاجزي او هم بل ږړه — دالله نه شوه پهٔ نمونځ کښې پهٔ موږ غوره

څلورم زموږ سرور خبر البشر — هسې شان دي فرمائیلي برابر

هر چې زهٔ شومه ددې ملکو تېر — یو ملک مې ولید غټ دحده ډېر

چې صفت ددهٔ همه صفت ګویان — وُبه نهٔ کړي دبزرګه ددهٔ ځان

چرې وُغواړي دا واړه مخلوقات — کړي یوه نمړیه به واړه جهانیات

او له دې ملک مې نور ملک چاپېره — ولیدل سوا کلات دحد له شمېره

چې سرونه ئې وو د عرش عظیم دیاندې — پښې ددې وې د اُووم زمکې لاندې

او پهٔ لاس کښې د هر یو ګوز وو د اور — او ددې ملکو وړاندې وو مخ تور

یو ټولګے د ادم زاد وو بېشمار — او جامې واړو اغوستې وې د نار

او د ښو طرف ته واړه اوښان وو — د هیبته دګرزونو پهٔ لرزان وو

چې وهل به ئې پهٔ ګرزونو دوئ د اور — پهٔ دا شان چې بلیدهٔ به پرې اور ندور

تو ټیدې د دوئ نه غوښې برابر
اندامونه بېلیده ته ترې سراسر

بیا به جوړ شهٔ سلامت هم پهٔ خپل حال
جبرئیل نه ددې حال مې وکړ سوال

جبرائیل ووې دا هغه مشرکان دي
پهٔ ثالث ثلاثه درب گویان دي

یعني دوئ به پهٔ دنیاکښې وې داشان
چې درې خدایه دي او یونهٔ دے سبحان

یو مسیح دویم بي بي مریمه خدائے دے
پهٔ دې دوکښې دریم خدائے هم پهٔ ځاے دے

مصنف ددې ناحق دلیلې ځائے
چې مطلق احد بلې پهٔ دریم خدائے

د ناحق وئیل پهٔ شکل یو دپر ساعت
قلم دپر تاوُ شهٔ د شرمه دحسرت

لاچاره باندې مې وښکهٔ دکتاب
پهٔ تصدیق دذرهٔ واحد دے پاک توّاب

پهٔ احدکښې گنجائش د شریک نشته
یوخو یو وې بل دویم دریم لیک نشته

بې احدنه چې دوه درې بولي واحد
ددوه درې وئیل مشرک دے ان زاهد

پناه غواړمه پهٔ خدائے ددې وئیل
چې شریک دا حد واڅي دوه درې بل

هم لعنت درب احد وې پهٔ دوئ باندې
چې تثلیث درب احدچې هرڅوک کاندې

احد رب دے محمّد ددوئ رسوّل دے
دین ددهٔ زما پهٔ سر سترگو قبول دے

بس کړه بیا پهٔ سر د حال داول لاړشه
پهٔ معراج درسوّل خپل پهٔ شکل ولاړشه

دا ملک او تابعان ددهٔ اکثر
دا لله نه پهٔ دې قول دي مقرر

تر ابدالاباد پورې پاک تواب
دوئ به دا عذابوي پهٔ سخت عذاب

## استعیذ بالله العظیم ط

دا ملک او تابعان ددهٔ امان
دا تسبیح به ئې وایهٔ د پاک سبحان

سبحان الواحد الاحد سبحان الصمد الغفار

سبحان الّذی لم یلد وَلم یُولَدَ وَلم یکن لہٗ

کفوّا احدٌ سبحان من لیس بوالدٍ ولا مولود

پنځم هسې پاک سرور خیر البشر
هسې شان دې فرمائیلي برابر

پس له هغې نه روان شوم په شتاب
مخکښې راغې اتشین یولوئې دریاب

په اطرافو د هغه کښې مې ملک
وُلیدل غلیظ شدید د حد ده کلک

جبرئیل ته مې وې ما ته کړه معلوم
دا دریاب آتشي څرنګ لوې نوم

جبرئیل ووې ددې دریاب نوم صاف
بحر الصّعق دے په کښې نشته اختلاف

هر سېزونکے تېوپ وهونکے تندر برق
دې دریاب نه پېدا کېږي نشته فرق

نور په دې دریاب کښې ډېر دې عجائب
نشي هېڅانه صفت ئې مناسب

بې د خدایه په دې څوک خبردار نه دې
واقف حال څوک ددې حال پرا سرار نه دې

نو سرور دې فرمائیلي هسې شان
بیا داخل شوم په شپږم اوچت اسمان

چې پېدا د مرغلرې وو تمام
او عاروس ئې برابر لاره څپل نام

بلکې پس د پرانستو ددروازې
وختلم په اول حال په مزې

شاد محمد که څه به غم کوې دځان
چې پیشوا لرې رسول اخر زمان

صدق سم په احدیت د پاک احد کړه
هم اقرار په رسالت د محمد کړه

## غزل په نعت د محبوب کبریا محمد مصطفیٰ صلی اللہ علیہ وآلہٖ وسلم

اے محبوب د الله رحیم سبحان
اے چې رب کړې ته رسول اخر زمان

نبوت ئې پهٔ تا ختم کړ رسولٌ ‌ ‌ ‌ دین ئې ستاکړ لکه نمر هسې روښان
چې الله پهٔ رسالت باندې مبعوث کړې ‌ ‌ ‌ دهوسه لاس پهٔ سرشو کافران
چې نورې وجود پیدا دِشهٔ دنیا کښې ‌ ‌ ‌ شول عدم بروج دشاه نوشیروان
او عاٸیل نوم وو ددې اسمان دریان ‌ ‌ ‌ ماسلام پرې باندې وکړ پهٔ ښهٔ شان
دسلام زما ئې وکړ ښهٔ جواب ‌ ‌ ‌ دا دُعا ئې راته وکړه پهٔ شتاب

## بارکَ اللہ فی حسناتِکَ وَ زادَ فی کرامتکَ[۲۳۲]

## وَ بُورکَ فیکَ

برکت دې پهٔ نیکو کېږ دې پاک ذات ‌ ‌ ‌ هم دې ستاشي پهٔ نیکو برکت زیات
او پهٔ دا کښې دې لره رب مبارک ‌ ‌ ‌ ما اٰمین وُ وئیل هغه دم بېشک
چې مې وکړ برابر ورته نظر ‌ ‌ ‌ دې ددېان دحکم لاندې برابر
پوُره شپږ لکه ملک ئې تابعدار وُو ‌ ‌ ‌ دهر یو پوره ددهٔ هومره پهٔ شمار وو
دهریو ملک تابع وو شپږ شپږ لکه ‌ ‌ ‌ دا تسبیح به دې ملکو وې بېشکه

## سبحان اللہ الکریم سبحان النور المبین

## سبحان الٰه من فی السمٰوٰت[۲۳۳] واله من فی الارض[۲۳۴]

دوېم هسې دې وئیلې پاک سرورٌ ‌ ‌ ‌ عابدانو باندې راغلم برابر
تول پهٔ قیام کښې دقومه پهٔ عجز سر وو ‌ ‌ ‌ پهٔ زارئ پهٔ ویره دېر دخپل اکبر وو
دا مې ولیدهٔ تمام پهٔ هسې شان ‌ ‌ ‌ وو همه پهٔ دې تسبیح سره گویان

سبحان من یسبح له الهوام فی امکنها سبحان من یسبح له
الانعام فی صحاریها سبحان من یسبح له الوحوش فی رواسیها
سبحان من یسبح له الدیدان فی ضیقها[۲۳۵] و ضنکها[۲۳۶] !!!

اور او به شهٔ آتش دان کښې د کافرو ... د اوبو نه درته جوړ شهٔ اور ثیران
حق په حق شهٔ باطل کل وړه باطل شو ... ملائکو زېرے وکړ د اسمانے
کهٔ الله راو ستے نهٔ وے په ظهور کښې ... نه اسمان نه به ادم وو نه جهان
ستا د رویه ئې پیدا کړه دنیا واړه ... ګوندې بوئې به چرته نهٔ وه دا شان
هم خدائې کړه الله ستا په مخ ظهوره ... هم ئې حُکه خپل محبوب کړلې د حُان
د الله او ستا یوه لار ده صادقه ... ستا دښمنان دلاړې غیر دي مشرکان
امت ستا به ستا د رویه پهٔ جنت وي ... کافران به وي دوزخ کښې پهٔ زندان
رسالت کهٔ پټوي ستا نه پیغمبر ي ... نهٔ به نور د نمر پهٔ ګوته شي پنهان
د حسب او نسب د عدا وته ... نصارئ یهود دي ستا نه روګردان
رسالت نه دي خبر بنهٔ برابر دي ... د ښمنۍ نه دي پهٔ سده دي روان
منافقه لار ده د اسلام بې خندوخاره ... برابر چې خپل د هبر کړي څوک قرآن
هم د شرکه هم د کبره توبه ګار یُم ... ګنهګار یُمه بسیار د خپل رحمان

شاد محمد هٔ چې پیشوا دې محمد دے
پهٔ امت دے د احمد رب مهربان

# فصل د یوولسم په بیان د هغې عجائبو

## چې په اسمان شپږم کښې په نظر انور د احمد صلی الله علیه و آله وسلم
## کښې راغلي دي او ابن عباس رض د حضرت نه اته څیزه بیا نوي

اول هسې فرمائیلي دي حضرت ص
چې په دې اسمان ورو ختم او چت

دریم هسې دي وئیلي پاک رسول
چې په درد ے د الله رحیم قبول

هر چې زه شوم د ے ملکوته رواں
سفید دُر کافوري ماته شه عیان

کوز در شل یې وه د تحت الثرىٰ لاندې
پاس در شل یې وه د عرش عظیم نه پاندې

خاص ددې دروازې دوه تنې په شمار وې
هفت اسمانه اووه زمکې قلف مقدار وې

اووه زمکې هم اووه واړه اسمانه
برابر وو ددې قلف داوره زمانه

د بزرگۍ او د لوئی ددې قلف ډېر
تعجب کښې شوم د حد په هورته تېر

جبرائیل وپوښته ما هغه زمان
راته یې ووې دې ته وائي باب الامان

بیا یې ووې راته یا پاکه رسوله
په درګاه د رب رحیم کریم قبوله

دوزخونه چې پیدا کړي رب قهار
سلاسل طوقونه یې کړه پکښې اظهار

عذابونه یې قسم قسم امانت
پکښې کښېښول عذابونه نهایت

دوزخونه چې را پورته کړي لمبې
د پردې کړي د دوزخ لړې تمبې

چې پرده د دوزخ لرې کړه پاک ذات
هلاکت کښې راغله واړه مکونات

په فریاد ملائک راغلل سراسر
هفت اسمان د اوو زمکو برابر

نو په زړه د پاک الله رحیم سبحان
واړو وغوښت د الله رحیم امان

نو بخښنه ورته وکړه رب رحیم
خپل کرم ورباندې وکړ رب کریم

د دوزخ د پېدا اتش په منځ پاک خدا
رب رحیم دا دروازه کړ له پېدا

د دوزخ نه پاک الله په دا سبب
په امان کښې کړه همه واړه پاک رب

څکه نوم شه ددې دَر باب الامان
بیا جبرئیل ته ووې دا اخر زمان

چې اوس ماته زدکه پرا نزه دا در
چې په هغه طرف وکړم زه نظر

چې پهٔ اخواکهٔ وي پټ باطن ظهور — چې زهٔ وُوينمه کُل واړه ضرور

جبریل وُویل یا پاکه رسولهٔ — پهٔ درګاه درب رحیم کریم قبوله

پهٔ هغه طرف دوزخ دے ځک د نار — دوزخیانو سره تهٔ ځهٔ لرې کار

چې تن شپه دکرامت ده نهایت — زر زر ځه چې پهٔ مقام دکرامت

چې داخل دکرامت شې پهٔ مقام — ورته ما وکړ پهٔ هسې شان کلام

خواه ناخواه اے جبرئیله برابر — غواړم دا چې زهٔ وګورم سراسر

حکم وشهٔ دالله هغه ساعت — دوست زما دې کړي پهٔ ګوته اشارت

د حبیب زما پهٔ ګوته به دا وُر — دربه لرې شي پکښې وکړه نظر

نو سرور علیه الصلوٰة والسلام — اشارت پهٔ ګوته وکړ زر تمام

دروازه شوه راته لرې هغه دم — تاؤ لوګے شهٔ ددوزخ راښکاره سم

ځلودم هسې وڅلي دي سرورُ — چې مې وکړ پهٔ دوزخ باندې نظر

یو ملک سیاستي هېبتي دېر — پکښې ولید ما چې بل دده پهٔ خبر

هیڅ ملک مې د هغه نه لوئي کلان — مالیدلے نهٔ وو بل ددهٔ پهٔ شان

هفت زمین اُووهٔ اسمانه سراسر — دا ملک وو ددې واړو برابر

او اغوستے ئې پوشاک وو تمام تور — او د وړاندې ئې ولاړ وُو ملک نور

دېر غلیظ شدید ترشرو پهٔ جامه تور وُو — دهر یو لاس کښې ګرز و نه دسور اور وُو

دا ملک پهٔ منبر تخت د آهن ناست وو — پهٔ خدمت دچپل معبود دسره ښهٔ راست وو

او اتهٔ لکه وې پښې ددې منبر — هره پښه ددې منبر وه برابر

پهٔ اووم اسمان ئې سر وو کوز پهٔ زمکه — هره پښه وه ددهٔ لویه دومره ځکه

سر ئې ښکته وو د ننه پهٔ ګریبان — دا تسبیح به ئې وایهٔ د پاک سبحان

سبحان الذی لا یجور[۲۳۶] وهو الملک الجبار[۲۳۸] سبحان المنتقم[۲۳۹]
من اعدائهٖ سبحان المعطی لمن یشاءُ سبحان من لیس کمثلهٖ شیئ[۲۴۰]

او د خولې نه ئې تو ېده اور هر کرت — پهٔ مثال قدر د غرغر هر ساعت

او د پوزې د سور و دوارو نه زور — او لمبې شعلې ختلې ترې د اور

دا ملک وو ډېر ترش مخې په غضب
او ډېر سخت قبض طبیعت ئې خندالب

سترګې لوې دوچندې ددې دنیا وې
دواړه سترګې دد نیا دونه سوا وې

او لمبې به ئې تلې د اور د دواړو سترګو
په لمبه کښې هر بخرې غرنه بزرګو

نو زهٔ دې ملک نه ډېر شوم په خطر
کهٔ ساتلے چرې نهٔ وے ترې اکبر

نو قریب وه روح وتوته مې تیار
جبرئیل ته وکړما هسې ګفتار

چې دا څوک دے چې مې لاړ ددهٔ د وېرې
ورکه کړې مې ده بشه لاده دغور کې

او هر بند د تن مې را غے په لرزان
هوش د ځانه ظاهري مې شهٔ روان

جبرئیل ووې چې دا ملک مالک دے
خزانچي د دوزخ نو دے نامک دے

تر هغې ورځې چې پاک غني رب خدا
دا ملک چې پهٔ کوم ورځ کړ دے پیدا

چرې دهٔ خندلي نهٔ دي نهٔ خوشحال وي
پهٔ غضب غصه د حده پهٔ کمال وي

نو زهٔ مخکښې د هغهٔ شوملهٔ وراندې
ماسلام وکړ هغه ساعت دهٔ باندې

پهٔ سبب د وظیفې پهٔ اشتغال
خبر نهٔ شهٔ سرئې بشکته وو پهٔ حال

جبرئیل ورته زر ووې هسې شان
اے مالکه هیڅ نهٔ ئې پهٔ ځانے

چې دا ځوان دے مبارک رسول احمدؐ
دوست محبوب دے هم حبیب دے د احد

او هر کله چې ئې واورېده زما نام
سرئې پاس کړ پهٔ جواب مې د سلام

او تعظیم ته شهٔ زما د ځایه پاس
ډېر مدار سره ئې وتیو زما لاس

تواضع مدارئې وکړ زما ډېر
بیا ئې ووې راته هسې پهٔ دا خبر

بشارت او خوشحالئ دې تاله زیات
اے رسوله محمدؐه چې پاک ذات

پهٔ وجود مبارک ستا باندې تمام
اور پهٔ تا د دوزخ کړے دے حرام

او هر څوک چې کوي ستا متابعت
نو هغه به هم رب ستا پهٔ برکت

پهٔ هغو به هم الله اور د دوزخ
کړي حرام او تاؤ د اور به کړي پرې یخ

ما ته حکم هسې کړے دے ستار
رحم نهٔ کړم پهٔ مجرم پهٔ ګنهګار

او بدل اخلم د هغونه شان شان
چې پهٔ تا باندې راوړے چا ایمان

هم چې ستا متابعت نه دو گرداں وي
سخت بندي به همېشه په سخت زندان وي

بيا حضرت دي فرمائيلي چې په لاس
د مالک کښې وو يو گرز نيولے پاس

وو اووه سوه سرونه ئې په يقين
که شي جمع اولين خلق اخرين

دهغه به فقط يل خواته يو سر
وا به نه ړوي يل لورته لرو سير

بلکې وائې دا دنگ يل يو روايت
چې مالک ته ووې پاک نبي حضرت

د دوزخ تمام کوهي او همه کندې
مالک وارو پاک سرورته کړې څرگندې

هره کنده کښې ئې وُ ليده سوخته
په عذاب يوه يوه طا نُفه پوخته

او په يو روايت وائې چې سرورؑ
په واپس مراجعت کښې برابر

د دوزخ په کوهو کندو دے راغلے
راوي دا روايت هسې دے وئيلے

خبر په خپل ځائے کښې ظاهر به شي تمام
ان شاء الله [٢٤٠] تعالىٰ كل نام په نام

پينځم هسې دي وئيلي دوست دخدائے
چې هر کله شو مه تير زهٔ ددې ځائے

نو ادريسؑ او نوحؑ نبي ته شوم قريب
ما سلام په دوئ ادا کړ په ترتيب

د سلام زما ادا کړ دوئ جواب
زرد ځايه شهٔ دا پورته په شتاب

پس له هغې راته دواړه شو ترغاړه
په ديدن زما خوشحاله شو د پر دواړه

دا ئې ووې راته هسې په بنه شان
دا ثنا ئې درب ووې په زبان

## الحمد لله الذى ارانا [٢٤١] وجهك

او ثنا ده دا لله پروردگار
چې ئې مخ کړ نور ئې ستا مونږ ته اظهار

چې ادريس عليه الصلوٰة والسلام
ده ليدلے دے دا ځائے واوره تمام

دے ليدلے په چهارم اسمان حضرت
بلکې وائې دا په يل يو روايت

په جنت کښې وو ليدلے پاک سرور
او په دې تسبيح گويان وو د اکبر

## سبحان مجیب السائلین سبحان قابض[۲۴۲] الجبابرة

## سبحان الذی علا[۲۴۳] فلا بالغ علوه احدا

نو بیا وائي پاک سرور اخر زمان ولید نوح مي دي تسبیح سره گویان

## سبحان الحیّ الحلیم سبحان الحق[۲۴۴] الفرد الکریم سبحان

## العزیز الکریم[۲۴۵]

شپږم هسې دي ویلي پاک رسول چې دے دوست درب حبیب محبوب قبول
او هر کله چې دي پیغمبر اتو چې شوم تېر دد ي نیکا تو[۲۴۶] بزرگاتو
میکائیل مي په لوې تخت ولیده ناست په خدمت کښې وه درب رحیم بنده راست
او د ورانديي ولاړ وه لوئي میزان هر چا برے وو لکه هفت زمین آسمان
او وه زمکې هفت اسمان سراسر ددې تلې دیو شکور دي برابر
چې د نړۍ وه ددې تلې ما لید لې د مشرق نه تر مغرب وه رسید لې
او د فتر د صحیفو د کاغذ اتو ورځنه بې شماره ډک دحده زیاتو
هغه دم شوم دده مخې ته وراتلې ما سلام بنده شان ادا کړ په ده یاتلې
د سلام جواب یې راکړ په بنده شان زر تعظیم ته راته پا څېد شتابان
نو په غېږ کښې یې زه اونیوم سوا په دا شان یې راته وکړه دا دعا

## زادك الله تعالیٰ جلّ شانه عزاسمه کراماتاً وفرحاً

یعني زیات دې کړي الله ستا کرامت بلکې هم دې خوشحالي په هر ساعت
پس له هغې راته ووې یا رسوله په درگاه درب رحیم کریم قبوله

تاله زیرے درکوم دا رنګ پهٔ تیت     هېڅ امت نشته پهٔ شان ستا دامت

او نیکي بزرګي لري چې اُمت ستا     هېڅ امت نهٔ لري دا کرامت ستا

او میزان د دوي درونه زيات دے بحسابه     د میزان د نور اُمت نه د ثوابه

خوشحالي ده پهٔ یار بار د هغه کس     چې کوي به پیروي ستا خوش نفس

هم پهٔ زړهٔ کښې چې لري محبت ستا     پهٔ رشتیا سره د بے شمار دا اُمت ستا

او افسوس وي هم هغه له نه امت     چې پهٔ زړهٔ کښې لري ستا بغض پهٔ نیت

تا بیان د مېکائیل وو د پرعیا ته     اوپه بعضې روایت واڅي داشان

چې لرل ئې کو تموالان پوره پهٔ شمار     اوه لکه مېکائیل ئې ؤ سردار

هر کو تموال لاس کښې بېرغ وو یو بېشکه     هر بېرغ لاندې ملک وُو اوه لکه

او صفونه ئې وو را بشکلي برابر     تموول ئې حکم ته ولاړ وو منتظر

ماته ئې ووې مېکائیل پهٔ هسې شان     یا رسوله موږ یو تموول ستا خادمان

پهٔ تا وایو موږ همېش شریف درود     د شمارې د حده لرې نا معدود

لا پهٔ خوا د پېد ا کښ نه د ادم ؏     نو پېغهٔ ویشت زره کاله پوره سم

او پهٔ څاڅکو د باران او هم د برف     چې د زمکې نه ګیا غله عَلَفَ[۲۴۷]

چې را وُتوکېږي یو یو له اکثر     دې ملکونه یو یو وي مقرر

تر هغې چې دا ګیاه پهٔ خپل کمال     وُرسېږي برابر پهٔ پوخته حال

خپل مقام ته بیا واپس وکړي رفتار     بیا ئې نشي ترقیامته دوبار وار

او تسبیح د مېکائیل ؤ پهٔ دا شان     دا تسبیح به دهٔ ویلو پهٔ زبان

## سبحان من ربّ[۲۴۸] کل مؤمن و کافر سبحان من تضع

## من هیبته مافی بطونها الحوامل

اووم هسې پاک سرور خبر ا لیش     هسې شان دي فرمائیلي برابر

پهٔ یو سبز نورانې راغلمَ دریاب
پهٔ هغه کښې وو ملک زیات دحساب
چې هڅوک یې بې د پاک پرور دګار
خبر نهٔ دي څوک د دوئ پهٔ عددشمار
او دوئ وارو به پهٔ دې اوازبلند
دا تسبیح به یې ویلو پهٔ ډیر خوند

## سبحان القادر المقتدر سبحان الکریم[۲۴۹] کریم الاکرم

## سبحان الجلیل الاعظم

جبرئیل نه مې پوښتنه کړه د نوم
چې ددې دریاب کړه نوم راته معلوم
جبرئیل راته داؤوې سبز اسر
چې ددې دریاب دے نوم بحر اخضر
سبب دا چې دے دَ وارې سبزی اصل
دےدَ وارو سبزو اصل پهٔ رنګ وصل
پس له هغې بل دریاب مې ولید تور
چې هغه کښې هم ملک وو دومره نور
چې پهٔ شمار یې بې د پاک الله احد
بل هڅم کس یې خبر نهٔ دے پهٔ عدد
پهٔ بلند اواز همه وارو داشات
دا تسبیح به یې وئیلو د بحات

## سبحان من علا وَقهرَ[۲۵۰] سبحان المطلع علی من فت خا وجهرَ[۲۵۱]

جبرئیل وُ پوښت ما هسې پهٔ شتاب
چې معلوم کړه راته حال ددې دریاب
جبرئیل راته بیا وُکړو دا کلام
ساکنان ددې دریاب واره تمام
بې دخدایه دالله واحد قیوم
بل هیچا ته پهٔ هڅم شان نهٔ دي معلوم
پس له هغې شوم ددې دریاب روان
زر داخل شوم پهٔ اووم اوچت اسمان
او غټ والے د هر یو اسمان پهٔ شمار
د پنځوسوو کلونو پوره لار
او د یو اسمان تر بله سراسر
هم پهٔ هسې قدر لار ده برابر
دا اووم اسمان د سپینې جواهر دے
او پهٔ بل یو روایت د دُر[۲۵۲] ظاهر دے
او پهٔ بل روایت دا ئې دا ضرور
دا اسمان دے حلید ونګ بتهٔ د نور

هسې شان راته دا وُوې جبرئیلے  اودے نوم ددې اووم اسمان قائیل

شاد محمد کا دوست درب دے محمد
سود زیان یودے داحد او دا حمد

لمن ټینګه کړه دخپل نبيٌ سرور  چې محبوب ورته و ئیلے دے اکبر

# غزل درنعتِ احمد مجتبیٰ محمد مصطفٰی صلی اللہ علیہ وآلہ وسلم

ستاد رویه خداے خدائی کړله اظهاره  چې آدم ئې کړ پیدا هم ستا د پاره
په معنیٰ کښې سر د کل پیدا ئش ته ئې  په ظاهر پسر ۲۵۳ باطن د آدم پلاره
د کل وارو مرسلانو شهنشاه ئې  دا لوئی دِ ده موندلې د ستاره
چې یئلے دوست جبیب محبوب احد ئې  په میم فرق دا حد احمد نامداره
زیان او سود دوارو یودے یو ترېله  دوست دشمن هم د دوئ یودے یوئ شماره
امر نهی لار ددین اسلام د دوئ ده  چې اسلامه ده غلطه بېله لاره
چې قائم وي څوک په لارې ستاد شرعې  دي امان په د دوزخ د سختې ناره
هر چې ستامتابعت نکړي کافر دے  سرنګون به وي دوزخ کښې ناقراره
قرب دې موندے قاب قوسین او ادنیٰ دینه  د عربو د عجمو شهریاره
ستا امت د کل امت نه بهترین دے  مسخ فسخ نه شو خلاص د کردګاره
امت ستا به وي خوشحاله په قیامت کښې  ستا د رویه عربي نبي دو ئیداره

شاد محمد خادم د شرعې ستا غلام دے
د غېر شرعو نه ګنار دے هم بېزاره

# فصل دے دولسم[۱۲] پهٔ بیانولو دهغواوو عجائبو

## چې پهٔ اسمان اُووم کښې پهٔ نظر انور د حضرت راغلهٔ

اول هسې پاک سرور خیرا لبشر　　　فرمائیلي پهٔ دا شان نبئ سرورٔ

پهٔ تېر حال د دروازې د خلاصې پس　　　چې پهٔ سر د هفت اسمان وختم بس

چې داخل کړم پهٔ اووم اسمان جلیل　　　ددې در د دربان نوم وو دوحائیل

ما دربان ته سلام وکړ ددې باب　　　د سلام زما يې وکړ ښهٔ جواب!

بیا يې وکړ ښهٔ کامل زما تعظیم　　　راکړ زېرے پهٔ رضا د رب رحیم

د نېکو د قبولوالي داکبر　　　هم د ډېرو بزرګو يې سراسر

دا سره وعده يې وکړه ددې کلکه　　　تابعان ددې ملک ووُ اُوهٔ لکه!

د هر یو اُووهٔ اُووهٔ لکه شمار　　　تابعان وو نور ملک دومره تیار

تمامي ملک سره ددې دربان　　　دا تسبیح وایو وئیله پهٔ ژبان

بسحان الذی بسط السمٰوٰت فرفعها بسحان الذی سطح الارضین

ففرشها بسحان الذی اطلع الکواکب وازهرها بسحان الذی
ارسی الجبال فیها

دوېم هسې پاک سرور اخرزمان　　　فرمائیلي پهٔ ژبان درفشان دے!

ډېر ملک ولیدهٔ ما دحد تمام　　　چې همه وایه ولاړ ووپهٔ قیام

پهٔ اوچت اواز بلند سرهٔ پهٔ لب　　　دا تسبیح به يې وئیله د پاک رب

## سبحان العلی العظیم سبحان الجلیل الکریم[۲۵۴] سبحان من لا یصف الواصفون[۲۵۵] کنه صنعته "عَالِمُ الْغَيْبِ[۲۵۶] فَلَا يُظْهِرُ عَلَىٰ غَيْبِهِ أَحَدًا"[۲۵۷]

دریم هسې فرماٸیلي دي حضرت
ددې نورو په منځ قلب دوي صورت

یعني دې ملکو منځ ته مې نظر کـړ
دب نظر په یو ملک مې برابر کـړ

پیدا کړے وو لوټې هسې رب رحیم
چې يې سروو برابر په عرش عظیم

پښې يې ښکته وې اووې زمکي لاندې
چرې حکم الله وکـړ په دې یاندې

بې تکلیفه یو نمړه بـه کړي د ځان
دا تسبیح به يې وئیله د سبحـان

## سبحان المحتجب بنور جلاله سبحان المصوّر فی الارحام مایشاءُ

څلورم دي فرمائیلي پاک رسول
چې په دردے دالله په دوست قبول

او ددې ملکو منځ کښې مې یو بل
لوټې ملک ولید ما بـل په نظر خیل

چې ددې ملک اووه لکه وو سره
په هر سر کښې يې مخونه او یا زره

په هر مخ کښې وو او یا زره دهانه
هر دهـان کښې وو اویـا ذره ذیانه

او په هره یوه ژبه به يې خبر يې
په اویا ذره لغته کړي ثنا دې

چې دیل په شان يې نهٔ وو یولغت
اووه لکه يې وو څـانګونه نهایت

هره ورځ په نهرالنور کښې د جنت
غوپې خوري پوره اووه سوه کـرت

هر کرت چې شي د نهره دا بـهر
نو زر وُځنږي همـه تـمامي پـر

رب قـادر د هر یو څاڅکي نه پاک خدا
په قـدرت به کړي یو یو ملک پیدا

ان تر ورځې د قیامته په دا شان
واره وي به هم په دا تسبیح ګویان

سبحانکَ ما اعظم شانک سبحانک سیّدی ما اعلیٰ مکانکَ [۲۵۸]

سبحانکَ سیّدی ما ارحَم [۲۵۹] بخلقک !!!!!

پنځم هسې پاک سرورحبیب د رب    فرمايلي پهٔ دا شان سره عجب

هم ددې ملکو پنځم کښې مې حضور    يو ملک وُليد ناست پهٔ تخت ضرور

وو ددې ملک څلور مخونه سم    يو يُ وو پهٔ شان د صاف بني ادم

او بل مخ يُ وو پهٔ شانې د بقر [۲۶۰]    بل پهٔ شانې د مزري وو برابر

او يو مخ يُ د کرکس وو پهٔ مثال    د هر مخ پهٔ مناسب زبان سنبال

وه تسبيح جدا جدا د هر رخسار !    ادم زاد د مخ وو دا تسبيح گفتار !

سبحان من يرزق کيف يشاءُ سبحان من يرى ولا يُرىٰ وهو بالنظر الاعلىٰ [۲۶۱]

د غويي مخ به د شمار نه بې شماره    دا تسبيح به يُ ويله پهٔ قراره

سبحان من يسبح له الخلايق اجمعين سبحان من يرزق من يشاء

سبحانَ من يرزق السّباع [۲۶۲]

او چې مخ يُ وُ پهٔ مثل د مزري    پهٔ زبان يُ وُه دا تسبيح جاري

سبحان الجواد المفضل سبحان من يسبح له الطير [۲۶۳] فى اوكارها رزاق الطيوٌ يا رحيم [۲۶۴]

هر چې مخ يُ د کرکس وه پهٔ شان    دا تسبيح به يُ ويله پهٔ زبان

سبحان من يسبح له الطيور فى اذكارها سبحان رازق الطيوٌ يا رحيم [۲۶۵]

بلکې وايي دا پهٔ بل يو روايت    چې هر مخ به تسبيح ووې هر کرت

خپل خپل جنس له به یې رزق کړي طلب
سوال به یې وکړي په درگاه د رحیم رب

پاک الله ددې دعا په برکت
دې څلورو له روزي دي رب هر ساعت

ورکوي یعني وي مراد بني ادم
درنده او حیوانات او مرغان سم

شپږم هسې پاک سرور خیر البشر
په داشان دي فرمائیلي برابر

چې د یو ملک د پاسه بې وسواسه
دا غلم ناست وو پاس اوچت د تخت دپاسه

رسېدلې یې وو سر په عرش عظیم
پښې یې هسې پیدا کړي رب رحیم

چې وې تېرې د اووم زمین سوا
دومره لوې وو اخرت هم د دنیا

یو لقمه به دده شوي وو د هغه ان
دوه ځانګونه یې لرل په هسې شان

چې یو ځانګ یې د مشرق ته وو زیات تېر
او بل ځانګ یې د مغرب ته وو تېر ډېر

اووه لکه امیران دده د وړاندې
وو ولاړ لوې لوې د حکم دده لاندې

تابعان د هر امیر وو دا بېشکه
د هر یو په شمار اووه او اووه لکه

جبرئیل علیه الصلوٰة والسلام
د پوښت ماچې دا ملک لري څه نام

په جواب کښې دا ته ووې جبرائیل
یا رسول الله دا ملک دے اسرافیل

چې صاحب د شپېلۍ دے دے مقرر
ورته وراغلمه وړاندې برابر

ما سلام ورباندې وکړ په شتاب
د سلام زما یې وکړ نه جواب

په بزرگو کراماتو یې بشارت
ذاکر دا تسبیح به یې وي په هر ساعت

## سبحان السمیع العلیم سبحان المحتجب من خلقه سبحانه ربنا وتعالیٰ [۲۶۶]

اووم هسې دے راغلے روایت
چې وئیلي دي زمونږ نبي حضرت

ابراهیم خلیل الله د رب خلیل
چې بللي دي خلیل سره جلیل

ولید ما په دې اوچت اووم اسمان
جبرائیل ته مې دده وکړ پرسان

دا جواب جبرئیل راکړ صاف تمام
دا نیکه دے ستا اداکړه پرې سلام

ما تعظیم دده په ځاے کړ هم اداب
د سلام یې کړ ادا زما جواب

چي جواب يې د سلام راکړ زيبا　　بيا يې ووې راته هسې مرحبا

## مرحبا بالابن الصّالح والنّبي الصّالح[۲۶۷]

راشه هر کله صالح نبيّ پسره　　اونبيّ نيکه صالحه رب ته غوره

پس له دې يې ماته وکړ وصيت　　چي اے زويه خبر دار کړه خپل امت

د جنت زمکه ده پاکه د حد د بره　　اونيکي يې کشت وکړ ضرور و شمېره

وُني وُکرئ په دې زمکه کښي زياتي　　چي اخير کښي په ارمان کښي نهٔ شئ پاتي

هسې عرض وکړ ترې ما د دې يو بشتني　　د جنت زمکه کښي څهٔ دي کرل وُني

ووې هسې ابراهيم خليل رحمان　　چي په دې وشېلو لګي درختان

## لَاحَوْلَ وَلَاقُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰہِ

او په يو روايت واٸي دا اکثر　　چي په دې وشېل يې دے د وُنو کر

## سبحان الله والحمد لِلّٰه ولا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه والله

## اکبر ولاحولَ ولاقوةَ اِلّا بالله العلى العظيم ؕ ۲

پس له دې نه د اووم اسمان شوم تېر　　راغلم لاندې د سودي فراخ د پر

او په سدره منتهلى باندې د پاسه　　چي زهٔ وُختلم پاس پرې بې وسواسه

**شاد محمد** لوئ رب چي پاک احد دے

چي يلے دوست محبوب خپل محمّد دے

څهٔ به فخر وي له دې نه زياتي نور

چي دے دوست د رب د خپل امت غمخور

# غزل در نعت خیر البشر

سر هم ختم الانبیاء زمونږ سرور دے
چې ښلے دوست حبیب محبوب اکبر دے

بخت بلند به وي هغه چې ستا امت وي
غیر امت ستا د امت نه پس کافر دے

چې مبعوث په رسالت زمونږ رسول شه
دین دده شه دے خاتم پیغمبر[۲۶۸] دے

او هر چا چې قبول کړے دده دین وي
که صادق وي ترې نه دفع هر ضرر دے

که څوک غیر د دوي د شرعې نه په بله
په ظاهر کافر باطن ترې رب خبر دے

لا د د خدائے او د رسول سره یوه ده
غیر د وا نوله سعیر جحیم سقر دے

څوک چې ستا په رسالت وي بې یقینه
د ایمان بې شهې خوف و خطر دے

هر چې ستا په رسالت ئې یقین نه وي
د هغه نه هم په لک واره ښه خر دے

نه خلاصیږي بې له فضله د احد ه
چې ګېر کړے څوک شیطان په دام د شر دے

په تقدیر سره ښه بد رسي د خدایه
د شیطان د بد نامیه کانړے په سر دے

شاد محمد ه غم د دین کوه نور پریږده
د رنګ ساعت دے هر بنده لره سفر دے

# فصل دی دیارلسم [۱۳] په بیان د هغو لسو څیزونو

## چې په سدرة المنتهی کښې محمد صلی الله علیه وآله وسلم لیدلي دي

اول دا د عالمانو سره صاف او په وجه تسمیه کښې دے خلاف

دا د سدرة المنتهی کښې عالمان دائې وجه تسمیه وائي دا شان

بعضې وائي چې له دې پورې اکثر د عالمانو علم رسي برابر

زیات له دې نه نهٔ رسیږي زیات و کم او دا قول دے د ابن عباس رض سم

بعضې وائي چې د سدرالمنتهی په دا شان باندې رسیږي انتها

او هم څهٔ چې څي د ښکته نه پهٔ پورته او د پورته نه چې څي د ښکته لورته

بعضې وائي پهٔ دا شان چې څوک پوهیږي چې ارواح د شهدا تردې رسیږي

پهٔ دا ځائے چې ورسیږي انتها ته تفسیرونو کښې دي ذکر د آیاته

فرمائیلي دي دا ابن عباس سخت چې دا سدرالمنتهی ده یو درخت

جرړې ئې دے د سرو زرو ظاهر او ښاخونه ئې دي هر قسم جواهر

بعضې دي د مرغلرو برابر بعضې دي د زمردو شنو اکثر

بعضې دي د سرو یاقوتو که ئې گورې لار د چړئې ان د ښخه د ښاخ پورې

د ښځوسوؤ هن ادو کالو لار ده پهٔ کتاب کښې برابر دومره پهٔ شمارده

د هاتیانو د غوږونو پهٔ مثال پاڼې دي ددې درخت پهٔ هسې حال

د منگي پهٔ شان ئې وه میوه ثمر منوره وه د نور ه د اکبر

فرمائیلي دي دا پاک نبي حضرت دومره ولیده ملک مې نهایت

پهٔ دې ونه کښې پاس ناست وو بحسابه خبر نهٔ دي څوک پهٔ شمارئې بې توابه

تولې پاڼې پټې کړې وې اکثر ځلیدل لکه زرین جراد [۲۶۹] تاست بر

لکه ملخ زرین به واره ځلیدل پهٔ حساب ئې رب خبر دے او نهٔ بل

او د ستورو پهٔ مثال به ئې کاوهٔ نور او پهٔ یو روایت دا وائي حضور

چې ددې وني پهٔ هره پاڼه پاس ملائک وو پهٔ شماره پهٔ هسې قیاس

لکه ستوري تر اول هفتم اسمان
هم په شمار دو لکه ریگ د بیابان

د زرینو ماشو وو د دوئ صورت
دا همه واره لیدلي وو حضرت

سلامونه تولو وکړ د سرور
زیرے ورکړ په رحمت د پاک اکبر

هم ئي دوي شو خوشحال ستا په دیدار
هم ئي ووي دا بېتونه په قرار

التجا ملک ملک کړي ستا په در
ستا دیدار دے لوئي نعمت د پاک اکبر

بنه ئي ته بنه دي گوهر بنه دي راتلل دي
په دیدن دي نو بویان تازه دگل دي

خاک دلارې دي په سر زمونږه تاج وي
شپه د عمر دي ستا تل شپه د معراج وي

فرمائيلي دي په دا شان حضرت
د همه ملکو واړو عبادت

ماته وباخښه دوئ ماته کړ فرمان
چي د ورځي د قيامت به هسې شان

نو ددي عبادت کل واړه ثواب
کړي تقسيم به په امت زما ثواب

دوئم دا عجيبه هسې پاک سرور
هسې شان دي فرمائيلي برابر

په دې سدرالمنتهیٰ کښي دے مقام
د جبريل عليه الصلوٰة والسلام

او مقام دے د جبرئيل پکښي دا شان
دا وئيلي دي نبي اخر زمان

چي ددي ونې په منځ کښي بنه سنبال
د شانخونونه يو شاخ وو د کمال

د يوي دانې د سبزې مرغلرې
بلندي ئي ده تر هسې حده لرې

او پوره وانې د يو لک کالو لاره
ددي شاخ د يو سر بل سره تيا ره

او په سر کښي ددي شاخ دے يو ورق
په مثال د هفت زمين اسمان طبق

اوه زمکې هم اوه واړه اسمانه
په دي پانه کښي پټېږي يکهمانه

او په هغې پانه پاندې بنه ضرور
غوړېدلے وه عجب بنه فرش د نور

ددي فرش د سرو ياقوتو يو محراب وو
اوچت والے برابر په دا حساب وو

اتيا زره کاله لار لري انجام
جبرئيل دے په هغه ځائے کښي مقام

دريم دا عجيبه واوره په مذاق نيت
چي وئيلي دي زمونږه پاک حضرت

او يو تخت پروت وو ددي محراب د وړاندي
چي دا تخت د پاک سرور وو په نوم باندي

پېدا شي نه ان ترشپې د معراج پورې
دا مجال نشته هيڅ چا له کښه وګوري

نه وو چا لره مجال چي په دا تخت
کښيني نه به پس له دي په تخت د بخت

یعني نشته د ناستي د چا مجال | پاک سرور د ے فرما ئیلے هسې قال
پهٔ دا تخت یاندې پهٔ حکم دجلیل | پاس پرې کښېنولم پورته جبرائیل
او چاپېره ددې تخت نهٔ مې سنبال | نور تختونه ولیدل پهٔ هغه مالے
ددې تخته ؤتمام پراتهٔ دوراندې | یو طرف لس زره تخته پهٔ شمار یاندې
کل د سپینو مرغلرو وو پهٔ شمار | کل تورات پهٔ دوئ لیکلے وو ستار
او چاپېره د هر تخت نه برابر | شلو ښت زره وو ملک ولاړ اکثر
او تورات شریف ئې لوستهٔ پهٔ زبان | بل طرف ته چې مې وکاتهٔ عیان
پوره لس زره تختونه پهٔ شماره | وو پراتهٔ د زمردو شنو ښکاره
او پهٔ دې تختونو لیک وو انجیل صاف | گېر چاپېر د هر یو تخت نه دے خلاف
دیرش دیرش زره وو ولاړ ملک سنبال | او انجیل شریف ئې لوستهٔ پهٔ کمال
او پهٔ بل لوري ترې دا رنګې لس زره | تخته وو پراتهٔ لس زره برابره
او پهٔ دې تختونو ښکلے وو زبور | گېر چاپېره د هر یو تخت نه ضرور
پهٔ شماره څلوښت څلوښت زره پهٔ شمار | وو ولاړ ملک زبور ئې وو ګفتار
څلورم طرف ته هم لس زره سم | تخته وو د سرو یاقوتونهٔ یو کم
او پهٔ دوئ باندې لیکلے وو قرآن | چار چاپېره د هر تخت نه پهٔ دا شان
هم څلوښت څلوښت هزاره برابر | د قرآن پهٔ تلاوت وو مشغول سر
پس له هغې جبرائیل وې یا رسوله | پهٔ درګاه د خپل خالق رازق قبوله
زما تاته دے سروره یو حاجت | حال پرسي ترې نه طلب کړه پاک حضرت
جبرائیل وې یا رسوله غواړم دا | پهٔ دې ځائے کړه دوه رکعاته مونځ ادا
چې مقام زما هم ستا پهٔ برکت | بهره یاب شي د قدمو د حضرت
نو پهٔ هغه دم زمونږه پاک رسول | سوال ئې دا د جبرائیل کړهٔ ښهٔ قبول
نیت د دوو رکعاتو ؤتارهٔ سرور | مقتدیان ئې شو ملک ددې شجر
ددې سدرالمنتهیٰ ملک تمام | مقتدیان شو پاک سرور ئې شهٔ امام
لکه بیت المقدس کښې چې حضرت | کړ د کل پیغمبرانو امامت
او شرف شهٔ د حضرت ورته ښکاره | دا رنګ سدرالمنتهیٰ کښې ؤ شماره

کل ملکوت به ښکاره دده شرف شه — په دیدار دده غم دوئ نه برطرف شه

څلورم دا عجیبه نبي سرور — هسې شاني دي وئیلي برابر

ددې سدرالمنتهیٰ وې څلور ولې — دوه وې پټې دوه ظاهرې شوې پیدا لې

جبرائیل نه مې پوښتنه کړه د حال — راته وکړ جبرائیل هسې شان قال

چې دا دوه ولې جنت له ځي پنهان — د ظاهرو ولو دا دے حال عیان

د دنیا په لور لېږلي دي پاک ذات — د یوې نوم رود نیل د دوئم فرات

د ظاهرو ولو دواړو نه جلیل — کړ دنیا کښې ترې فرات او رود نیل

پېغمبر هسې فرمائیلي دي رسول — چې وئیل مې دي دده په سر قبول

په دا ځائے مې یوه ولیده واله — چې په سبله غاړه ما ددې ناله

ولیده د زبرجد و د ګوهر — د یاقوتو او مرغان سېن اکثر

په دې غاړه مې ددې ولې مرغان — وئیل چې په ګردن کښې وو روښان

جبرئیل ته وې ما کړه پرې خبر — چې څه نوم ددې ولې دے مقرر

جبرئیل ووې چې دا واله کوثر ده — عطا کړې تا ته دا غني اکبر ده

لکه هسې په قرآن کښې واحد ذات — رالېږلے چې په تا دے دا آیات

## إِنَّا أَعْطَيْنَاكَ الْكَوْثَرَ [٢٧]

دا واله په سنګرېزو ده هسې شانه — د یاقوتو زمردو ده روانه

او اوبه ددې د پېونه وې سپینې — په مزه کښې د ګبین نه وې شیرینې

د یاقوتو د ګوهرو پاک احد — لوښتے اېښے وو او هم د زبرجد

د ګوهر د زبرجد د یاقوت واړه — هم ددې ولې پراته ووکل په غاړه

نو یو لوښے مې ددې لوښو بهتر — د اوبو نه مې را ډک کړ د کوثر

چې مې وڅښلے خوږ ېي وې د عسله [٢٧] — هم خوشبویه وې د مشکو نه سل ځله

شپږم هسې فرمائیلي دي حضرت — چې د کل واړو عالمو دے زینت

بېخ د سدرة المنتهیٰ کښې یو چینه وه — صفائي يې د او یو خجل آئینه وه

او روانه وه په حکم د جلیل — نوم وایه شه د ے چینې ته سلسبیل

ولې دا یو روایت د ے هم مسطور — چې د ے ځا ے کښې د سرور بېت المعمور

وو دا غلے د سرور خیر البشر — په دا ځا ے کښې په نظر فیض اثر

اوم هسې فرمائیلي دي سرور — چې ددې چینې په غاړه برابر

یو تهوکے وه لیده ما په دا ائین — چې لرل مخونه دې تهوکي تک سپین

بل تهوکے مې و لیده په رنګ تغیر — دې چینې لره راتلو به هواګیر

غسل دې چینې کښې وبه کړ دوي سم — شول مخونه به يې سپین په هغه دم

پس د غسله به اوبونه راواته — جبرائیل مې ددې حال نه وپوښته

جبرائیل ووې دي دا هغه کسان — چې يې کړي ده نیکي بدي یکسان

بیا توبه کړي د ګناه نه برابر — او توبه يې کړ قبوله پاک اکبر

اتم هسې فرمائیلي دي رسول — کل فرمان مې د ے دده په سر قبول

پس له هغې نه ددې لوښي په حساب — داو رال شیر، عسل دریم شراب

ما د پیو لوښے پورته کړ سنبال — ے عسل مې دواړه پر ښودة في الحال

لوښے دک د پیو وڅښه پاک سرور — او ګېین شراب يې پرېښوه برابر

جبرئیل علیه الصلوٰة والسلام — ورته يې ووې تا کړ خوښ دین د اسلام

په دې دین به تر قیامته امت ستان — وي ثابت به دو ہم دا د ے روایت

چې جبرئیل هسې ووئیلي دي دا شان — دا ثنا د پاک الله غني سبحان

## الحمد لله الذی هدایک الی[۲۲۲] الفطرة لو اخذت الخمر غوت[۲۲۳] امتک

او ثنا ده د الله پروردګار — چې مې تا ته کړه عطا د اسلام لار

کهٔ د میو د څکو کړے دِ وے نیت — گمراه شوے بهٔ ووستا واړه اُمت

او دا کار زموږ پهٔ پاک نبي سرور — دا تمع شوے وو دوه واره مکرر

یو پهٔ بیت المقدس کښې صاف ضرور — دوباره دا پهٔ سدره کښې شول ظهور

نهم هسې پاک سرور خبرا لبشر — فرمائیلي دي پهٔ ښهٔ شان برابر

پهٔ سدره کښې یو ملک شهٔ را عیان — هسې لوئ وو پهٔ جُسه کښې پهٔ دا شان

چې پهٔ زر کاله لار باندې وه بلند — او اوویا زره سرونه ئې وو څرګند

او پهٔ هر سر کښې ئې اویا زره پهٔ شمار — وو مخونه پهٔ دا شمار پوره تیار

پهٔ هر مخ کښې وو اویا زره دهانه — هم ئې هر سر کښې وې ځنې له دې شانه

اویا زره ئې وې ځنې د هر سر — پهٔ زرګونو وو هر ځنه کښې ګوهر

مګر زور ندې وې واړه مرغلرې — اوږاندې ئې وې ځنو کښې ظاهرې

پهٔ قدرت د الٰهي غني تواب — هر ګوهر کښې وو د نور عظیم دریاب

هر دریاب کښې وو مهیات بهر د شماره — هر مهے وو لوئ پهٔ دوه صد ساله لاره

چې مې ولید هم دا مهے عیان — دهر یو پهٔ شا لیکلي وو دا شان

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰه

دې ملک وو اپښے سر باندې پاس لاس — اوبل لاس ئې اېښے شا باندې وو پاس

پهٔ تسبیح باندې مشغول وو نهایت — چې تسبیح به ئې وایهٔ پهٔ هر کړت

د پر ددهٔ خوش اوازی نه بهٔ ضرور — عرش عظیم بهٔ پهٔ لرزه راغے حضور

هم بهٔ راغے عرش عظیم پهٔ اضطراب — دا وئیلي دي حضرت خیرا لمآب

جبرائیل نه وکړ ما هسې رنګ سوال — چې خبر کړه ما ددهٔ د نوم پهٔ حال

نوم ددې ملک کړه ماته را معلوم — چې هم دا ملک دے څوک او څهٔ ئې نوم

جبرائیل ووې چې دا ملک سبحان — پېدا کړے دے الله پهٔ هسې شان

د بابا ادم نه دے پېدا اول — پوره دوه هزاره کاله مفصّل

ورته ومې وئیل اې جبرئیل امینه     دا ملک وو ساکن چرته تردا حینه

جبرائیل[۴] ووې رسوله دستار     په جنت کښې دې یو ښه شان مرغزار

په ښې لور د عرش مجید وو دده ځاې     بیا دلې کښې دې را وستې غنې خداې

مشغول کړې دې په دې تسبیح مدام     ورشه دې له دا کړه بیرې سلام

ما سلام کړه بیرې ادا هغه ساعت     اشتغال کښې د تسبیح وو نهایت

ده مې وانه وریه سلام په غوږ دسر     جبرئیل زما د حاله کړ خبر

په جلدۍ زما تعظیم ته هغه آئې     کره ځانګونه یې خواره په هسې شان

هم اووه واړه اسمانه اووه زمکې     په ځانګونو کښې دده شوې واړه ورکې

زه د شانه یې ونیولم په غیږ کښې     لکه لعل چې څوک وموې په رنګ کښې

هم یې ښکل کړم بیا یې ووې یا حضرت     اې ددین دنیا د کل مخلوق زینته

زیرې تا ياندې دې وې د خوشحالۍ     چې مخلوق کښې نشته څوک ستا دسیالۍ

چې یې تا لره امت ستا د سبحان     ویا ښخښه په برکت د رمضان

نو په دې زیرې یې زه کړمه خوشحال دیر     چې نظر مې وکړ ورانده ورته شیر

دوه صندوقه ولیدل مې دده وړاندې     وې په هر صندوق سل زره جندرې پاندې

دا دنوره ټکولې وې جبلې     وپوښت ما دده احواله جبرائیل

چې دا واړه صندوق تېونه برابر     دا د محمد دي ما یې کړه په دې خبر

جبرئیل ووې چې اې پاکه رسوله     په درګاه د خپل خالق رازق قبوله

ته په خپله ترېنه وکړه ددې سوال     ما ترې سوال وکړ ده وې دا احوال

چې په دې صریو صندوق کښې ثوابونه     دا امت ستا چې یې نشې حسابونه

مګر هغه امت ستا چې روژه دار وي     چې روژې کس به له دې ثواب بېزار وي

روژه دارو له خلاصې دې د دوزخ     زه ګواه یم که څه ګوم دې که یخ

## طوبیٰ لک ولامتک

نو شحالي ده تالره هم ستا امت له　　پهٔ بخت تهٔ ددوئ راځي پهٔ شفاعت له

لسم نقل دے دا رنګ د پاک سرور　　د نبي اخر زمان خبر ابشر

يو ملک مې پهٔ صورت وليد سپين چرګ　　د ياقوتو د قُبّې زبر د عرش بزرګ

او هغه قُبّه پهٔ يو ستن ده د نوَ　　او هغه مارغه دا دے حال فرور

اُوهٔ لکه ئې وزر وُو د سرو زرو　　وو اُوهٔ لکه وزرئې د ګو هرو

څهٔ وزرئې د ياقوتو وو هفت لکه　　زمردو ئې اُوهٔ لکه وو ببشکه

اووهٔ لکه ئې وو د سپينو زرو دوغ　　اُووهٔ لکه ئې وو مشکين نهٔ دي دروغ

د زغفرانو ئې وو اُوهٔ لکه پهٔ شمار　　د وزرو شمار ئې د غه وو تيار

وو لوئي ئې اُووهٔ حُله برابره　　لکه دا دنيا چې واخلې سرا سره

قد ئې دا دے درته وايم کهٔ ئې ګورې　　عرش عظيم د اُوومې زمکې پورې

او پهٔ هر وزر ئې هسې وو تحرير　　دا ليکلي وو پرې پاک الله قدير

## بسم الله الرحمٰن الرحيم لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ

## محمد رسول الله - کل شيئ هالک الا وجهه

پهٔ هر وخت چې د ما نځهٔ پورته کړي سر　　هسې دا پهٔ زبان وائي برابر

## بسم الله العظيم

بيا وزر څانګونه يو تربله دواړه　　سره دُوهي نغمې خوږې شي واړه

ترې را پورته شي اواز هغه ساعت کښې　　دا اواز د نغمو خورشي پهٔ جنت کښې

نو ښاخونه دجنت د هر درخت　　راشي تحول پهٔ حرکت ښا خونه سخت

د نغمو په دې اواز میاندې حُوران
کل آگاه شي نو حوران په هغه آن

زر د شو بالا خانو بزرگو مضبوطو
د جنت چې دي د لعلو دیا قوتو

یو تر بله سره ورشي مخکښې ورانديې
ددې زیرے خو شخبري سره وکاندي

چې دا وخت د عبادت شه د اُمت
دا الله د دوست د پاک نبي حضرت

او هر کله دا ملک چې وُ غبرېږي
نو هغه قُبّه عرش لاندې وُرېږدېږي

دې ملک ته دا الله وُ شي خطاب
چې خوز بېږے ولې ته په اضطراب

ملک وُوائي يو ذات قدسي صفات ئې
د هر چانه په هر څه کښې دانازيات ئې

امت ستا د دوست حبیبُ په دا ساعت
پورته شوے دے سره د مونځ په نيت

نو الله غفار ستار رحیم کریم
حکم وکړي دا د هر حکمت حکیم

## اَنَا وجبتُ لهم رحمتی اِشْهَدْ علیهم

## قد ترحّمتُ وَ نَظَرْتُ علیهم بالرَّحمة

گواه اوسئ اے ملکو په دې تل
رحم ما په امت وکړ د دوست خپل

په نظر مې د رحمت کړه دوئ منظور
او هر څوک چې زه منظور کړمه ضرور

چې منظور دي په نظر زما څوک څوک
ازادي ئې ده دا ورته د دوزخ

او واجب دے هم هغو له جنت
خلاص دا ورته دے د دوست زما اُمت

شاه محمد د غلام اوسه د رسول
چې قبول د ده هم رب ته دے قبول

چې په در د محمد چې شي څوک بند
هم هغه دے رد په در د پاک احد

## غزل در نعت امجد سرورِ کائنات

سرور و ختم الانبیاء دے محمد دے
چې محبوب د کبریا دے محمد دے

د همه پېغمبرانو رسولانو   چې خالق ته دوست سوا د محمد دے

تول همه پېغمبران درب دوستان دي   دلولاک په تاج والا دے محمد دے

چې خالق دخپل مخلوق دے مبدا کړے   مبدا دوست چې ئې د هرچا دے محمد دے

پاک الله دے په محبوب حبیب بللے   چې قریب بې انتها دے محمد دے

حال دقرب ئې رب قرآن کښې دے وئیلے   قاب قوسین او ادنی دے محمد دے

تر قیامته به روښانه دده دین وي   د ګمراهو رهنما دے محمد دے

سنجم عفوه ستا د مخه کړ رب تا ته   چې الناس ته سر بالا دے محمد دے

هر نبي دخپل امت په حق خېرخواه وي   د امت خېرخواه اولی دے محمد دے

چې نبیان ئې وو امت ته په پسخاک کښې   دا رسول مقبول د خدا دے محمد دے

شاد محمده د تیري خطر دې نشته

چې ظلمات لره رنا دے محمد دے

---

## فصل دے څلورلسم پهٔ بیان د هغو واقعو چې پورته د سدرة المنتهیٰ نه احمد ته ظاهر شوي دي!

داوے نقل د رسول آخر زمان  چې وئیلي فرمائیلي دي دا شان

پس له هغې جبرائیل مې ونیولاس  خپل مقام ته بې زهٔ ورسولم پاس

تو بیا زهٔ بې کرم د خپل ځانه رخصت  ورته وُوئیل ما دا هغه ساعت

چې اے وروره جبرئیله څهٔ سبب دے  ته رواڅې پرېږدې ما دا کار عجب دے

جبرئیل ووې چې اے پاکه رسوله  پهٔ درگاه د خپل خالق رازق قبوله

ددې ځایه د تلو نهٔ لرم طاقت  او هم وار زما روس تېر شهٔ د خدمت

حضرت وُوې ورته اے جبریئلؑ امینه　　　نو تا دا وشيلي نهٔ وو د يقينه

چې تا بيا ځمه زهٔ هغه ځائے ته خاص　　　کهٔ بيوونکے تهٔ زما وې د اخلاص

نو تهٔ ولې شوې اوس پاتې او زهٔ ځم　　　نو حضرتؐ ورته لاس واچوه محکم

جبرئيل يې ونيو لاس نه رسول سَم　　　پهٔ پوکښې يې وراندې رابښکهٔ يوقدم

نو جبرئيل عليه الصلوٰة والسّلام　　　د هيبت نه د الله سبلا مقام

شهٔ وجود يې د چرچنې پهٔ حساب　　　پهٔ لرزان کښې رانغے ډېرپهٔ اضطراب

هم د سترګو نه يې او ښکې شوې جارې　　　هم کوله ډېره ډېره سبه يې زارې

او ويئل يې يا رسول الله کورې بس　　　ما اوس خپل مقام ته ولېږه واپس

کهٔ يو کوته قدرې وړاندې ځم فى الحال　　　پاک بهٔ وُسوزم هيبت نه د جلال

دالله رحيم کريم قديم ستار　　　کل ستي بهٔ شم هيبت نه د قهار

# لو د نوت اَلْمِلَةً الاحترقت بالى

ورته وُوې دا خواجه سرور عالمؐ　　　کهٔ زهٔ ېږدمه مخکښې وړاندې يوقدم

نو د شوقه د وصال د غني رب　　　صاف بهٔ وسوزم پکښې نشته عجب

نو هر کله چې سرور وکړ نظر　　　چې بلبرې ي د جبرئيل وجود اکثر

بلکې وهم خوف خطر دے پکښې پاک　　　چې جبرئيل بهٔ شي پهٔ دغه ځائے هلاک

نو پهٔ لاس مبارک پاک نبي حضرت　　　ورته بېرته د تلو وکړ اشارت

پهٔ دا يو قدم سرور خيرالانام　　　وو بيولے جبرئيل عليه السلام

د پېنځو سوو کالو نو پهٔ لار رسم　　　دا زموږ د رسول وو يو قدم

بيا پهٔ يو اشارت هم دوست د جليل　　　خپل مقام ته يې داخل کړ جبرئيل

د جانب نه د الله رحيم تواب　　　پاک سرور ته وُشه دا رنګې خطاب

اے زما پاکه رسوله محمدؐه　　　پهٔ درګاه زما قبوله محمدؐه

فکر څهٔ کوې د لارې د قیامت    د لوئې والي د لار څهٔ څهٔ کوې فکرت ۲۷۶

ستا پهٔ یو اشارت دا ځائے کښې دواړه    د پنځو سوؤ کالونو سم پهٔ لاره

پهٔ جبرئیل قطع کوې پهٔ یو قدم    نشته دې کښې د ذرې څهٔ زیات وکم

نو چې ورځې د قیامت پهٔ شفاعت    چې زیات راولي خپل پهٔ حرکت

د پنځوسو زرو کالو چرې لار    د قیامت یوم کښې بهٔ قطع کړې رو ئیدار

څهٔ عجبه ده اوبل یو روایت    داسې رنګ دې فرمائیلي پاک حضرت

اوهر کله د سدرې چې شوم روان    جبرئیل وویل ماته هسې شان

یا رسوله تهٔ شه وړاندې پهٔ دادم    ورته وویې ما چې تهٔ شه وړاندې سم

جبرئیل علیه الصلوٰة والسلام    عرضه باندې یې وکړه دا کلام

## تقدّم فانّکَ اِکرم عَلیَ اللّٰہِ مِنیّ

تهٔ شه وړاندې پهٔ تحقیق چې تهٔ بزرګترې    هم زمانه لوئې پهٔ نیز د پاک اکبرې

نو زهٔ وړاندې ترې روان شوم هغه آن    جبرئیل راپسې دو ستو وو روان

او پردې ته د زرېفتو مقرر    چې مونږ ورسیدو دواړه برابر

نو جبرئیل هغه پرده وخوزوله    اواز راغے چې تهٔ څوک یې راغلي څله

جبرئیل وویې زهٔ یم جبرئیل امین    ما سره محبوب د خدائے دے بایقین

نو ملک د دې پردې د دوستو سم    هسې شان یې وویل پهٔ هغه دم

## اللّٰہ اکبر اللّٰہ اکبر

نو پردې نه اواز وشه پهٔ پرده    چې د ښتینے یې تهٔ اے زما بنده

# اَنَا اَکْبَرُ اَنَا اَکْبَرُ

بیا ملک پهٔ هغه دم پهٔ هغه آن　　وُوې دا هغه ساعت پهٔ هسې شان

# اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰہُ

د پردې نه د جانبه د ستار　　هسې شان ئې اواز وشه بیا دویار

# اِنَّنِیْ اَنَا اللّٰہُ لَا اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا

بیا ملک پهٔ درېم وار سره ضرور　　زرېٔ وُوې هسې رنګ سره حضور

# اشهد ان محمدًا رَّسُوْلُ اللّٰہ

د پردې نه د پردې پهٔ هسې شان　　اواز وُشه هغه دم پهٔ هغه آن

# اَنَا اَرْسَلْتُ مُحَمَّدًا

ملک وُوئیل پهٔ هسې شانې صاف　　مسلمان دې پهٔ کېنې نهٔ کنې خلاف

# حَیَّ عَلَی الصَّلٰوةِ حَیَّ عَلَی الْفَلَاح

بیا اواز پرې د جانبه د پاک رب　　هسې رنګ پهٔ هسې شان وُشه عجب

صدق عبدی ودعا إلیّ عبادی
انا دعوتهم الی بالی افلح من اجاب داعیّ

---

ملک وُوئیل بیا هسې برابر     چې خدایٔ لوئ اودے الله اکبر

الله اکبر الله اکبر

---

اواز وُشو پرې د خدایه هسې بیا     چې د رشتینے ئې تهٔ اے بنده زما

اَنا اکبرُ اَنا اکبرُ

---

ملک بیا پهٔ هسې شان پهٔ هوس زیات     کلمه وُوې د نفي د اثبات

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ

---

اواز وُشو د جانبه د غفور     تهٔ د رشتینے ئې بنده زما ضرور

لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنَا

---

پس د هغې اواز وُشو یا احمده     پهٔ درګاه درب قبول لَه محمّده

# اَکمَلَ اللّٰه لکَ الشَّرفُ علی الاولین و الآخرین

نو حضرت وائی چې ما جبرئیل امین
ورپوښت حال ددې ملک په هغه حین

جبرئیل ووې په خدایه مې دې قسم
چې وو واره پیدا کړل د کل عالم

دوست نیزدې په تیز د خدایه غني اکبر
زه د واړه پیدا کښه یم بهتر

چې ما دا ملک هیچرې پیښ عیان
نه وو چرې مالیدلې په هیڅ شان

مګر دلته کښې چې را غلو سلامت
دا ملک ولید ما دا ځایه د ساعت

پس له هغې دې ملک د پردې لاس
کړه اوږده او زه یې یورته کړمه پاس

جبرئیل زمانه وودریده قرار
ورته وکړ ما په هسې شان ګفتار

په دا ځایه کښې روانیږې مانه چرته
ولې ما پرېږدې یوازې ته ځې بېرته

جبرئیل ووې چې اے پاکه رسوله
د هر چا نه په درګاه د رب قبوله

هر ملک لره خپل خپل مقام بهتر
دا الله نه دے هر یو له مقرر

د خپل ځایه وړاندې نه لري طاقت
چې یو ګام قدر د تللو وکړي نیت

مګر نن شپه د عزت ستا په سبب
دلته راوستمه ستا په سبب رب

اوکه نه وې نو مقام زما معلوم
لري سدرة المنتهیٰ برابر نوم

حضرت ووې ماګمان کاوه دا اصل
اے جبرئیله چې ته یې درته وصل

لا تر اوسه مګر ته یې په مقام کښې
پاتې شوے یې د خپل مقام په نام کښې

پس حضرت وائي یواځې شوم روان
د تیرې د نور پردو کښې شوم عیان

تر هغه چې د اویا پردونه تېر شوم
په مثال د پردو تېر د برق په څېر شوم

او غټوالے دیوې پردې اظهار
د پنځو سوو کالونو لري لار!

او د هرې پردې منځ کښې برابره
د پنځو سوو کالونو لار ده غوره

ملکي وائي د لته هسې روایت
تر دې ځایه په براق سوروو حضرت

هرچي دې ځائے ته را ورسېدم سم
براق پاتې شهٔ بيانهٔ تلهٔ يو قدم

بيا رفرف سبز ظاهر شه عجائب
صفای کښې وو صفا پهٔ نمر غالب

زهٔ يې سور کړم پهٔ هغې تخت د رفرف
روان ؤم لکه برق پهٔ پاس طرف

چې را ورسېدم پښې د عرش عظيم
پهٔ فرمان سره روان ؤم د رب رحيم ته

روايت دے چې هر کله جبرئيل
چې شهٔ پاتې وړاندې راغے ميکائيل

او سلام تعظيم يې وکړ زما د پر
بيا يې ووې راته هسې پهٔ دا خبر

يا رسوله وخت زما دے د خدمت
قدم پاک دې پهٔ ما کېږده دا ساعت

نو ما کښېښودهٔ پهٔ پر د دهٔ قدم
زهٔ يې وړلم چې ناګاه را غلم سم

اتشين درياب ته راغلم پهٔ يو آن
بلکې ما وکړ پهٔ هسې شان ګمان

چې عالم ملکوت واړه تما
دې درياب کښې يې نيولے دے ارام

ميکائيل زهٔ پهٔ پر خپل د دې در
اتشين نه يې زهٔ تېر کړم پهٔ شتاب

پس له هغې را غلي مخې له پر
وه د هرې پردې لار د دې مودې

د پنځو سوؤ کالونو پهٔ لار شمېر
د هغې پردې تمامو يې کړم تېر

پس له هغې پردې نورې راغلې ماله
وه د هرې پردې لار پنځه صد ساله

ميکائيل راته ښکاره شهٔ د پر ضعيف
نورې پاس د الوتو نه وړو تشريف

الوتے نهٔ شهٔ بيانهٔ ته پاس ميکائيل
زهٔ يې پرېښودم پهٔ دې پردې اول

بېرته مانه را روان شهٔ ميکائيل
پس له هغې وړاندې راغے اسرافيل

شرائط يې د تعظيم او د سلام
ذر ادا يې کړه زما واړه تمام

زهٔ يې کښېښولم پورته پهٔ خپل پر
او له دې پردو يې تېر کړم برابر

چې غټوالے وو د هرې پردې
پوره زر کاله پهٔ لاره نهٔ يو کم

زهٔ يې پورته کړم له دې پردو
دريابونه را غلل وړاندې لوئ عظيم

ما اوؤهٔ دريابه وليدهٔ ښکاره
وو او يا ځله د دې دنيا پوره

هم سره د اسمانونو کهٔ يې ګورې
برابر او د مشرق د مغرب پورې

هاچې زهٔ له دې دريابه شومه تېر | بيا مې هيڅ اواز وانهٔ وريدهٔ لږ ډېر

سم عالم وو د سکوت بنهٔ عجائب | او دا رنګ له دې مخلوق نه شوم غائب

تا به وې چې دواړه کونه برابر | پهٔ لوی کښې محوه ورک شول داکبر

پس بيا ورسېدم هسې رنګ پردو ته | چې حيران يُ پهٔ کتو ومه ليد و ته

کهٔ تمام عمر د دې وکړم صفت | زهٔ کهٔ وکړمه صفت يُ نهايت

نو شکاره به يُ نهٔ کړم هيڅ پهٔ عمر چيل | بې دخدايه نشي وصف يُ له بيل

اسرافيل عليه السلام چې هرکوت | ورکا وهٔ چې به خپل ځانګ له حرکت

تېرېدهٔ له دې پردو پهٔ يو ساعت | ترهغه چې پرده را غله د قدرت

د هغې پردې يُ هم تېر کړم اوچت | پس له هغې پرده را غله د عظمت

اسرافيلٔ شهٔ عاجز پاتې پهٔ دا ځائے | او کا غذ د عذر خپل يُ کړ نمائے

هم د عذر عاجزی نامه يُ خپله | هغه دم يُ راته واړه ولوستله

پهٔ پرده يُ د عظمت کښېنولم سم | او د پاتې راښکه ببرته يُ قدم

پس له هغې ناګاه تخت د رفرف تام | را ښکاره شهٔ راته وُ يُ کړ سلام

او رفرف يو فرش د نور وو برابر | او پهٔ يو روايت دا واڼُ اکبر

ديوې سپينې وانې د دُرعيان وو | پهٔ تسبيح باندې پهٔ هسې ثنا ګويان وو

غُلغله چې يُ د تهليل تسبيح وئيله | پهٔ عالم د ملکوت کښې څرخېده له

نور مې کښېښود د رفرف پهٔ سر قدم | او پهٔ يو لګ حرکت سره يُ سم

زر پاڼُ ته د عرش ورسېدم صاف | دذرې پهٔ دې کښې نشته دے خلاف

لکه شيخ نظام الدين عليه رحمت | دا ابيات فارسي وئيلي پهٔ زينت

ما عاجز کړه د فارسي نه اتفاقي | دا ابيات د معراج زيات بنهٔ لاثاني

چې بيرون د ګنبد سبز د اسمان شهٔ | د صحرا ته بل صحرا د کاب افشان شهٔ

طاؤس سبز يُ پهٔ هسې الوتلو | درانهٔ پر کړهٔ پورته نهٔ وو د ختلو

چې جبرئيل يُ د کابه شو وا پس | ميکائيلٔ نه شو هم تېر پهٔ نيم نفس

ورپسې اسرافیل زارکړه توې نه پر ‌ ‌ پهٔ اورنګ ئې د رفرف کښېښتو بیا
پهٔ سرعت والوت احمد هم مطلوب ځلا ته ‌ ‌ او د یو میدان د بل له بل و بلته
چې ئې و نغښت د اسمانو د دوران فرش ‌ ‌ استقبال ته ئې سرکوز کړ عظیم عرش
زېر قدم ئې د براقه شو کونین ‌ ‌ توغ ئې ښخ کړ پهٔ خېمه د قاب قوسین
پس له هغې فرمائیلي دي رسول ‌ ‌ چې پهٔ درد دے د الله رحیم قبول
هرچې زهٔ د عرش پهٔ ښنې وختم باندې ‌ ‌ نورې دېرې پردې راغلې را له وړاندې
او له دې پردو اویا زره پردې ‌ ‌ د سرو زرو ښې سنبال دي مالیدې
وې اویا زره پردې د سپینو زرو ‌ ‌ او اویا زره هم وې د ښو ګوهرو
نورې وې د زمردو اویا زره ‌ ‌ د یاقوتو اویا زره وې ښې غوره
او اویا زره پردې وې د ښهٔ نور ‌ ‌ د یاقوتو د تیرې وې صاف ضرور
اویا زره د اوبو وې پردې سمې ‌ ‌ اویا زره وې د اور اونهٔ څهٔ کمې
هم اویا زره د باد وې بې خلاف ‌ ‌ او غټې وا لے وو د هر پردې صاف
د اویا زرو کالو نوې وه لار ‌ ‌ نو حضرت د ے فرمائیلے د ا ګفتار
چې رفرف کړم له دې وارو پردو تېر ‌ ‌ پس له هغې یاد کړه دا چې نکړې هېر
پرده دارو برابر د عرش عظیم ‌ ‌ زهٔ ئې کړمه پاس پهٔ عرش باندې مقیم
نو پردې مې اولیدلې اویا زره ‌ ‌ او اویا زره د هر پردې غوره
زنځیرونه وو او هر زنځیر ګردن کښې ‌ ‌ د اویا زرو ملکو وو پهٔ تن کښې.
او لوئې د هر ملک دومره وُشماره ‌ ‌ دیو وُلې وه تر بل زر کاله لاره
دا پردې څهٔ د ګوهر څهٔ د جوهر وې ‌ ‌ او هم بعضې د یاقوتو برابر وې
پهٔ یوه یوه پرده باندې اکثر ‌ ‌ او یو یو ملک وو دوئې باندې نوکر
د هر یو ملک اویا اویا هزاره ‌ ‌ نور ملک ئې تا بعدار وو برقراره
نو رفرف له دې پردونه کړمه تېر ‌ ‌ او زما د عرش د منځه دا لږ د پر
پرده پاتې شوه یوه پهٔ دا حالت ‌ ‌ رفرف هم لاړ شهٔ له ما پهٔ دا ساعت

قد مونو کښې مې ورک شهٔ د ګرف لاندې
پس له هغې یوصورت را غې دوړاندې

برابر لکه د اس وو په مثال
او دیوګوهر سفید روغ وو سنیال

و تسبیح به یې وایه په ډېر سرور
هم د خولې نه تو یېده به د دهٔ نور

د هغې پردې نه یې تېر کړم په یو دم
او پنډې د عرش ته یې و رسولم سم

چې داخل شوم په پرده د کبریا
هلته هغه صورت ورک شهٔ را نه بیا

نو یل ځیز پورته کوونکے او بیوونکے
پاتې نهٔ شو زما بل پورته کوونکے

په هغې میدان کښې پاتې شوم حیران
خطاب راغے د الله رب المنان

چې اے دوسته زما تېر شه برابر
هرچې وکړ ما په هغې ځاے نظر

د پردې د کبریا نه ومه تېر
هیڅ خبر نهٔ شوم په هسې منزل ډېر

پس د هغې نه مې واورېد دا خطاب
د جانبه د الله رب الوهاب

چې نزدې شهٔ ماته ته په مناسب
هرچې زهٔ په دې خطاب شوم مخاطب

نو چې ما پورته کاوهٔ به هر قدم
دومره لار به ما وهله په دا دم

چې د زمکې نه تردې ځایه تمام
دومره لار به ما وهله په یو ګام

نو په زړه کې مې واورېد دا اواز
اُدنُ مِنِّی په غوږ شهٔ زما ساز

چې نزدې شو ماته اورېدهٔ ما سم
په هر وار چې به مې اخیستهٔ قدم

تردې ځایه اَنْ د زمکې ته مقدار
ما وهله یو قدم کښې دومره لار

ترقې به ما کوله لا او چته
حتّٰی دا چې درجې د نزدیکته

چې درجې د نیزدیکت ته برابر
زهٔ وَر وُرسېدم هلته مقرّر

او امام جعفرصادق دي فرمائیلي
په کتاب کښې دي ما هسې رنګ لیدلي

نزدیکت د محمد د ذوالجلاله
وو چې مثله یې ماننده یې مثاله

په درجه د دَنیٰ فَتَدَلّیٰ
شهٔ داخل په قَابَ قَوْسَیْنِ او ادنیٰ

پس یې پورته کړې پردې د هغو تېر شوم
په شال کښې تېز دوان د برق په څېر شوم

بیا پردې دوباره بشکته کړې پاک رب
ومې نهٔ لید هیڅ ملک بیا مقرب

دپردونه شومه تېر پهٔ دا حساب
د تیرېي د اویا زرو د حساب

د اویا زرو پردونه هم د قمر
د اویا زره پردونه د قمر

د پردو د اویا زرو د زمردو
د اویا زره پردونه د گوهرو

د یاقوتو د اویا زرو ظاهرو
د اویا زره پردو د جواهرو

ددې داړو پردو تېرشوم پهٔ یودم
دلته حال نهٔ دے ظاهر د زیات وکم

بدکې ښځ کښې د حبیب او د محبوب
قاب قوسین او ادنیٰ پاتې شو مرغوب

پهٔ مقدار د دوؤ لیندوشهٔ یعنې پاتې
بدکې شته دلته خبرې پهٔ کښې زیاتې

کهٔ پهٔ قاب قوسین ئې چرې اکتفا وے
نوکهٔ دا چرې گنڼلے چا صفا وے

خوره مخواه بهٔ د مکان ووپکښې وهم
د مکان وَهَم راتهٔ یه ئې پهٔ فهم

ورپسې "اَوْ اَدْنیٰ" وو مثیل ستار
قَابَ قَوْسَیْن نه هم قریب قریب بسیار

دي را غلي پهٔ تاج المذکرین کښې
هم پهٔ شرحِ تعارف کښې پهٔ یقین کښې

دي داوړي چې هر کله محمد
دجبرئیل نه دبېلتون ئې را غے حد

پهٔ اوؤ مقاموتېر کړ رب رحیم
ص مقام وو یو لک وارد عرش عظیم

ان تر زېر تحت الثریٰ پوده تیاره
یو لک څله عرش نه ان تردي ځلے لاره

چې جبرئیل محرم د راز وو د سرور
دا ول مقام نه هم نه وو خبر

څهٔ خبر ېي بهٔ دوړاندې مقامونو
د اول چې خبر نهٔ دي د کا مونو

القصه چې محمد صدر د صدر
دکا ئنا تو نه دا رنگ تنگ لاړ پهٔ قدر

دتنگ لاړ ته اصل مراد دے بې مثال
بې بیانه بې و مثیلو د احوال

او هیبت چې د جلال او د جمال
شهٔ ظاهر ورته ضرور پهٔ هغه حال

حال دادے د کلام چې ئې قدم
پهٔ فراخ فرش د قدیم کښېښودو سم

او وو تن ئې پهٔ خدمت ذرهٔ ئې پهٔ قربت
او وو روح ئې پهٔ دیدار سر پهٔ وصلت

او هم سترگې اوږده هٔ د عقل دېر
ظاهري بې بېکار پاتې شو ترې هېر

د عالم د عنایت نه ئې کلام !!
غیبي اوږده د مالک غلام سلام

بلکې بې د واسطې نه يې د خط  د بر يې اوريده په يو صورت فقط

چې يوازې سترگې پاتې بې بهره شوې  واڼې فرياد يې کړ او چت په دا نعره شوې

## مَازَاغَ الْبَصَرُ وَمَا طَغٰى [۲۸۰]

يعني هغه تجاوز او تيريدل  حد نه کړې نورو سترگو تيريدل

مونږ ه نه دے کړے هغه تجاوز  ستا ديدار مې دے غرض په شپه او ورځ

پس له هغې نور د پاک پروردگار  پرده وشلوله هغه دم يو وار

او مهتر د اُنينو شه برابر  زره يې وليد په اٰئينه کښې مقرر

بې زوال جمال يې وليد بې حجاب  او حاصل شه ورته مراد په دا خطاب

## اَلَمْ تَرَ اِلٰى رَبِّكَ

ځاے د سترگو د نظر دده تيار  ومونږ بره هم د يُدْرِكُ الْاَبْصَارُ [۲۸۱]

په نظر سره دده کښې شه اظهار  لکه دې کښې دي و يلي شيخ عطار

په فارسي ژبه هم دا ابيات شيرين  ما فقير ترې په پښتو کړه باليقين

محمد د جهت تير په رو باريک شه  چې نزدې تو وَحْدَهٗ او لاشريک شه

د هغه دربار به څه واڼې محمودؐ  چې بهر دو په دا وخت د خپل وجود

چې شه تير د عقل روحه نه مطلق  شه له حقه نه بې نود وې ليد حق

کوم مقدار چې کاوه سترگو دده کار  زره دده کاوه په سترگو کښې ديدار

محمد په دا هيبت پاتې بيکار شه  محمد د محمده نه بيزار شه

شا د محمد ه څه دې غم د آخرت دے

چې پيشوا دې محمد نبي حضرت دے

پاک الله ورته و ئیلے دے حبیبؐ    نهٔ وویل ورته ددهٔ نه زیات قریب

# غزل درنعت سرورکائنات علیه افضل التحیّات

---

چې خاتم پیغمبر دے محمّدؐ دے [۲۸۲]    چې د واړو نه بهتر دے محمّدؐ دے

بکهٔ را غلے دے اخرته پهٔ ظهور کښې    چې د کل پیدائش سر دے محمدؐ دے

چې ادمؑ د کل عالم ابو البشر دے    د عالم خیر البشر دے محمدؐ دے

چې خطاب یې دوست حبیب محبوب مونږ لے    دالله رحیم اکبر دے محمدؐ دے

چې غارت پهٔ اشارت یې تړې جمال کړے    شق چې موږ ے ترې قمر دے محمدؐ دے [۲۸۳]

چې شافع بهٔ د امت پهٔ اخرت وي    دا زمونږه پاک سرور دے محمدؐ دے

د کافرو خاک پهٔ سر دے تل ترتله    د مومن مخکښې راهبر دے محمدؐ دے

مریضان د عاصیّت بهٔ شفایاب شي    چې ارام د ټوټو جګر دے محمدؐ دے

**شاد محمّده** هیڅ دې غم د تیرې نشته
چې ظلمات پهٔ حق کښې نمر دے محمدؐ دے

---

## فصل د پنځلسم په لطائفو او په اشاراتو چې تعلق په ایات د "دَنٰی فَتَدَلّٰی فَکَانَ قَابَ قَوْسَیْنِ اَوْ اَدنٰی" لري - او په معنٰی کښې دولس لطیفې بیانوو م

لطیفه دِه دا اوله په دا شان ا | او چې اهل د تفسیر تفسیر عیان
کلمې منه دِ د نو جبرئیل مراد کړي | مفسّر په دي بیان دي يې زړه ښاد کړي

### ای دنی جبرئیلُ من الارض فتدلی ای فاسترسل الی محمدٌ صلی الله علیه وسلّم[۲۸۴]

جبرئیلُ زمکې ته را کوز شهٔ او چېل ځان | هغه در نګ يې زر را کوز کړ د اسمان
او د پاره دې د و چې چې و کاندې | په رسول خبر البشر په سرور باندې
بدرقه چې شي د لارې د معراج | د سرور چې دے په سر د لولاک تاج

### فکان قرب بینهما قاب قوسین

اے په قدر د دوو موتو د لیندو | پاک حضرت ته دې شهٔ په مونږ و[۲۸۵]

قال ابن عباس (رض) ای قدر ذراعین ویسمی الذراع قوساً لانه یقاس به المذروع او بل ادنی من ذالک[۲۸۶][۲۸۷] فلم یکن بالقریب الملاصق[۲۸۸] ولا بالبعید[۲۸۹] المانع من التمکن من النظر الیه بل ما[۲۹۰] یقدر من مجالس الخواص من العظماء فی الدنیا[۲۹۱]

او وئیلي دي دا ابن عباس (رض) سم — چې په قدر د دوو گزونه څخه کم
جبرئیل[۴] نزدې شهٔ خواته د سرور[۳] — او و ئيلے شي قوس گزته برابر
بلکې دې نه هم څهٔ کم ضرور وشماره — نو پس نه شوه اندازه ددې اظهاره
له قریب سره پیوسته په بنهٔ شان — د مکان نهٔ شوه مقیده پهٔ مکان
او نُشوه د مکان ودته نظر — دا ایات د قاب قوسین مراد دے بهتر
د کمال د محمد[۳] ته دے دا مراد! — دا ایات د قاب قوسین وُلره یاد
بلکې بعضې کوي دا د نکې معنیٰ — دا ددې ایات شریف ثُمَّ دَنیٰ
چې نزدې شهٔ پاک حضرت قدس دربارته — دا الله پهٔ عنایت قرب د ستار ته
چې د قرب او د عزت د کرامت — دا درجه د قرب حاصله کړه حضرت
کړي معنیٰ فَتَدَلیٰ دا پهٔ اخلاص — سجده وکړه خاص الله ته حضرت خاص
او وئیلي دي حضرت محبوب درب — هم دولت د نیک بختۍ زما سبب
چې زما د نیک بختۍ دے هر دولت — او د پاره دا زما دے د خدمت
ضرور هسې حد ته وُد سید سرور[۴] — چې تمام جهات شهٔ دهٔ ته نا خبر
چې د هغه قدم گاه دے پهٔ کوم ځائے — او قدم شهٔ نا خبر له دوست دخدائے

چې په کوم ځائے کښې دے نفس او نفس شبال
نا خبر شه چې زړهٔ کوم ځائے دے في الحال

زړهٔ دده شهٔ نا خبر چې يې پاک جان
په کوم ځائے کښې چې لري مقام مکان

روح و جان يې خبر نهٔ وو سیر ابر
چې کوم ځائے کښې دے مقام مبارک سر

او جهان يې په طلب وُو د قدم
او قدم يې وو طلب کښې د نفس سم

او وو نفس يې په طلب د زړهٔ بسیار
او وو زړهٔ يې په طلب د روح تیار

روح د سر وو په طلب سر په مقام
وو د وصل د حبیب له حبیب تام

لطیفه دویمه داده وائي عقل
په سفر کښې دے د عشق سره وصل

چې ترڅو پورې به ته کوې دا سوال
او دده او د هغه په هر محال

په دایره د بازګشتې دا بیتدا کښې
یو دوهم خط را ښکلے په منځ دا کښې

بلکې دا ظاهر کېدل ددې ایات
ددنیٰ فتدلّٰی د قدسي ذات

وائي دا یوه دایره شوله فقط
قاب قوسین يې یو دوهم منځ کښې خط

په کښې وُ غور زاوهٔ دې د پاره ملاشي
چې د سترګو نه د سترګو عکس بیداشي

سر يې خلاص دے د غبار غیرنه په صبر
لکه خلاص چې نمر روښانه وي دابر

لطیفه دریمه داده په دا شان
سبکې بعضې صاحبانو دا عیان

صاحبان دا اشارت وائي دا رنګ
کلیمه کښې ددنیٰ ښمائي دا رنګ

د دنیٰ کلیمه وائي اشارت دے
او مقام د نفس پاک ته د حضرت دے

قاب قوسین دے اشارت مقام د جانانه
د سرور خیر البشر اخر زمان ته

او ادنیٰ دے اشارت مقام د سرته
د رسول اخر زمان خیر البشر ته

او په دې څلور مقامو لره یاد
چې نفس زړهٔ روح و سر دے د سرود مراد

خپل معشوق ته نزدې وُرسېد احمد
چې رسول مقبول قریب شه دا حد

مثلاً نفس مبارک د پاک حضرت
په مقام کښې د الله وو د خدمت

او وو زړهٔ يې په مقام کښې د دیدار
دالله د رحیم کریم قدیم ستار

اصل دا واقعه دا رنګ ده ضرور
چې هر یو له دې څلورو نه حضور

معشوقې خپلې سره وو هسې وصل — په دا شان يې حقيقت وائي دا اصل

صاحبانو د تحقيق دي دا وئيلي — په پښتو ژبه ترې ما هسې ليکلي

او حيات د نفس سره دے په خدمت — دے حيات د ذره د رب په محبت

او قيام د روح سره دے په قربت — او غذا د سر د پاک نبي حضرت

په ديدار د کردگار وه چې اغياره — نه بورا خبر د گل نه گل د خاره

دا څلور واړه دولته برابر — يعني دا څلور مقامه سراسر

پاک سرور خير البشر ته وو حاصل — هسې شان وو له بنده خدائے شو واصل

په دا شان که يو نفس نفس د سرور — که جهان ته چرې کړے وے نظر

پاتې شوے بې خدمته به وو صاف — او که ذره يې چرې د نفس په اطراف

يعني ذره يې نفس ته لږ وے نظر کړے — نو دولت د محبت به يې نه وو دړے

پاتې شوے بې محبته به وو سم — او که روح يې ذره ته لږ څه زيات و کم

نظر کړے وے روح ذره ته لږ نگاه — بې قربته پاتې شوے په وو آه

او که سر يې روح ته کړے وے نظر — بې ديداره به وو پاتې د اکبر

د کامله سره دا دسنگې خبر يې — د پر نقصان دے کاملان ترې گوځي لرې

لکه دا چې شيخ رومي دي فرمائيلي — په پښتو ژبه ترې ما هسې ليکلي

چې تا بند کړي د خپل ياره هغه بند دے — چې تا بيائي بې دلبر اره هغه بند دے

که فراق دا شنا کم کيني کم نه دے — خس د سترګو ترنيم تاره هغه بند دے

**لطيفه** ده څلورمه په دا شان — لکه شيخ ابو الحسن هسې عيان

فرمائيلي دي چې اصل حقيقت !! — او ددې ايات معنی په نهايت

رسيدلي نه ده فهم ته بالکل — څه که سعي په کښې کړې ده يو ميل

دې د پاره چې د دې لفظ اظهار — پس له پس نه دے د دې لفظ تيار

يدکې وائي هلته لفظ دے د پس چرته — هلته لفظ د پس چرته دے تس چرته

کليمه د تبدلي وي په مکان کښې — او مکان له هلته څه ځاے د ے کوم شان کښې

او دے کان عبارت د زماني نـه — هلته څهٔ ده زمانه بې نشاني نه

او هم تا بد ے اشارت مقدار ته سم — هلته څهٔ ځلے دے مقدار له زيات وکم

او توسين دے کنايه مثال پهٔ حال — بلکې هلته کښې ځاے څهٔ دے د مثال

يعني ورک دے ، کليمه ده داد شک — پهٔ هيڅ وجه بهٔ څوک دا شک نکړي حک

او دا شک او شک کوونکے دے محروم — ترې اثر د ظاهر واڼي دے معدوم

کليمه د "او ادنیٰ" مبالغه ده — پهٔ دنو کښې ده پې کښې نور ويل ناغه ده

پس دا کوم داني دے صاف راته وواېه — او هم کوم مد نو دے خيال نه کړي بڅا يه

نو علوم د علماؤ له تفسيره — تول ددې کلام نه دي عاجز حقيره

معارف د عارفانو د تقرير — تول ددې معنیٰ نه دي کوتاه کثير

او عقلونه د تمامو عاقلانو — د جهان د معرفت پهٔ دشت رمانو

د جلال دکبريا ستاکښې گمراه دي — ذڼې کل د فصيحانو صاف کوتاه دي

د همه بني آدمو د نعمت — د شمار لو دے کوتاه ستا د صفت

## رُباعي

ستا د عشق پهٔ کنده کل وارهٔ گمراه دي — له صفت ددې جلال ذڼې کوتاه دي

چې د قهر لطف ستا دي اگاه شو ي — ستا و لطف ته را غلي پهٔ پناه دي

او نو دي دي فرمائيلي کهٔ څوک زيات — غواړي دا چې پهٔ معنا ددې ايات

چې خبرې پهٔ کښې وکړي زياتې دېرې — نو له دې نه به ونهٔ کړي زياتې تيرې

دنیٰ عبداً فتدلیٰ فرداً دنیٰ ملکیاً فتدلی
ملکیاً دنیٰ فرشیاً فتدلی عرشیاً دنیٰ مجاهداً
فتدلیٰ مشاهداً دنیٰ طالباً فتدلی مطلوباً
دنیٰ افتقاراً فتدلی افتخاراً دنیٰ منادیاً فتدلی
مناجیاً دنیٰ مادحاً فتدلی ممدوحاً دنی شاکراً
فتدلیٰ مشکوراً

او دنیٰ وائی بنده دے برابر
پسې وائی فتدلی دے اکبر
او معنیٰ د دنی وائی چې ملکي دے
پسې وائی فتدلي ملکي دے
بیا معنیٰ د دنی وائي چې فرشي دے
پسې بیا فتدلي وائي عرشي دے
بیا معنیٰ د دنیٰ وائي مجاهد دے
وائي بیا فتدلیٰ چې مشاهد دے
بیا معنیٰ د دنیٰ وائي چې طالب دے
وائي بیا فتدلیٰ مطلوب غالب دے
بیکې بیا وائي دنیٰ چې افتقار دے[۲۹۲]
وائي دا فتدلی چې افتخار دے
مبکې بیا وائي دنی چې منادي دے
وائي دا فتدلی چې مناجي دے
او دنی مدح کوونکے روز وشب دے
پسې بیا فتدلي ممدوح چې رب دے
وائي بیا دنی شاکر د رب غفور دے
دا د رنگ بیا فتدلی وائي مشکور دے
اے فقیره دا تمول قرب او منزلت
چې ته اودې همه حال او حقیقت
د سرور خیر البشر د پاک حضرت
د یو لکو دریا بونو د عزت
برابر یوه قطره نهٔ ده کمه
د صفت د پاک سرور رسول اکرمه
سبب دا دے چې سرور اخرزمان
وو دا د رنګي پاک حضرت رفیع الشان

کجا وه شاهنشاهي د پاک سرور
دا سمان بلند بختیان اوچت برتر

هم يې نشي یو ذره پورته کولے
نشي دوئ باطن بښکاره پورته کولے

او اوبنان سرمست سرمست ددې زمین
نهٔ توانېږي پهٔ را ښکلو ئې يو حين

او هم تخت شهنشهي د سلطنت
د سرور خیرالبشر د پاک حضرت

د عالم ملکوت مقرّبان
هم همه د جبروت مؤدّبان

نهٔ توانېږي ترې پهٔ فهم راوستل
کهٔ هزار فکرونه وکړي دې کښېنې چل

# ابیات پهٔ وصف د رسول کریم صلی الله علیه وسلّم کښې

دے شهباز دلوئ مکان لامکاني دے
هم غواص د جواهر د معاني دے

د پردو پرده کشا خاصه د غیب دے
هم گنجور د خزانو د ملارب دے

گنجینه دے د کیمیا د کل عالم د
د پېشوا وُدے پېشوا د کل عالم

کلک د ذبو ئې له صفا تو بریده دے
نه ایجاد ئې تر قلمه چکیده دے

د کوم ذیل ئې د کل فتنونه دور دے
د قدم خاک ئې زمونږ د سترگو نور دے

هم اسمان کمربسته دده پهٔ کار دے
هم یو ستورے ئې شاطر د اس رهوار دے

پرهغې کنگر اوچت دده فتراک شهٔ
چې کوتاه ترې فهم عقل هم ادراک دے

لطیفه ینحُمه داده لره یاد
چې حکمت د قاب قوسین نه دے دامراد

پهٔ عربو کښې ده دا قاعده مشهُوره
سرداران د قوم چې صلحه کړي منظوره

چې پهٔ خپل منځ کښې یو عهد د دوستئ
چې محکم ترې پهٔ دا رنگ د راستئ

چې هرگز را نشي عهد شکني
چې دا عهد شي تل باقي امانی

مؤ لیندې دوارو فرقونه سرداران
سره خپلو کښې نزدې کاندې یکسان

بدکي دا دواړه طرفه یو کرت
د لیند و ونیسي موټے تینگ پهٔ نیت

غشي کښېن دي په کښې يو کړت تيار — ليندې دا کاږي او غشي کړي ګذار
طريقه دا ده دوستي ده براسره — ده په منځ د دوئ کښې دا طريقه غوره
او يو والے د رضا د دوئ دوستي کښې — سره يو وي په راحته په سختئ کښې
پس په دې آيات کښې دادے اشارت — چې الله سره زمونږ د پاک حضرت
سره هسې محبت او هم قربت دے — په دا هسې مرتبه ئې محبت دے
د رسول مقبول مقبول دے د دود — او مردود دے د رسول رب ته مردود
لکه دا رنګ په کلام مجيد کښې رب — فرمائيلي دي په دا شاني عجب

## مَنْ يُطِعِ الرَّسُوْلَ فَقَدْ اَطَاعَ اللّٰهَ [293]

هغه چا چې د رسول زما په نيست — په صاف صدق وکړ به متابعت
په تحقيق سره ئې وکړ برابر — دالله متابعت د پاک اکبر
هر چې دے جُرعه [294] نوشانو د سرور — خمخانې د بخششو نو نه اکثر
د حضرت نه ښکه دوئ ته سلامت — رسيدلې ده زمونږه د حضرت
هر طالب د دې خرمن [295] نه په طاقت — انه ولې ده خوشه [296] د ذره په نيت
خواه ناخواه قسمت کوونکو د ازل — د اکرام او د نخوا نچو د لم يزل
بدي نمرې ددې غذا نه غني رب — او په خُلو ده چې مشتاقو کښې په لب
د شرابو د وحدت نه رب رحمان — قطرې دوئ له ورکوي نو لوکښې منان
لکه دي دې عبارت کښې د خو بچه — دي وئيلي عبارت د عرجه

مازال العبدُ يتقرب الیَّ بالنوافلِ حتی اُحِبَّهٗ [297] فاذا اُحِبَّهٗ [298] کُنْتُ [299]

سمعه الّذی یَسْمَع به وبصره الذی یبصر به ویدهٗ الذی

## يبطش بها ورجله التي[٣٠٠] يمشي بها[٣٠١]

زانګلېږي نه چې شي څوک قريب ماته
او په نقلو صدقو د خېږ خېراته

ترهغې پورې چې زه يې کړم قبول
د بنده نه زانګلېږي نه مجهول

هغه وخت کښې چې قبول کړم زه مطلق
ودکړم غوږ چې کوي سمع پرې د حق

هغه سترګې ورله ودکړم چې نظر
تل ليدل د حق کوي پرې برابر

هغه ورکړمه لاسونه چې پرې تل
همېشه د حق کوي پرې اخستل

هغه پښې ورکړم چې تلل د حق پرې کاندي
لکه دا شنوي ده د فقير وړاندې

له جانانه زه ژوندے يم له ځان نه يم
زه له روحه ورته تېر يم جانان نه يم

ګوش او هوش او لاس و پښې مې ده نيولي
دا رختونه مې په دې سراے اړولي

حسن خپل وينې په دې مرآت[٣٠٢] زما کښې
چې دے شي پرتو افګن په ذات زما کښې

سترګې غوږ مې همه کل دده الات دي
آئينې دده زما د تن ذرات دي

آئينه چې شي بشه صافه هم بې زنګه
له جمال د معشوق شي دا همرنګه

تو کوم حد چې بې رنګي د رنګ اختيار کړي
نو خپل رنګ به ته همرنګ سره ديار کړي

هر يو کس چې په درياب د هوا غرق شه
په او بود غم کښې غرق د پښو ترفرق شه

لطيفه شپږمه داده چې پاک ذات
د قوسين دے ذکر کړے په آيات

چې په دې کښې څه حکمت وو د پاک رب
دے په ذکر د قوسين کښې څه سبب

او د دوو غشو يې نه دے کړے ذکر
او سره د دې خبرې د خيال فکر

چې ليندې لرې کوږ والے سراسر
او دې غشو کښې نېغ والے برابر

په څو وجهې دے جواب د دې خبرې
او اوله وجه داده نه ده لرې

که الله وے چرې دوه غشي ياد کړے
فهمدارو به پرتاب وو ترې مراد کړے

لکه څوک چې کاندي دوه غشي ګذار
مراد وه به ترې فهمدارو د دوئي لار

او قيمت دے د ليندې د غشي ګران
نو چې پاک پروردګار چې دوه کمان

یاد یې کړي دوه لیندې دي نوم دوهمه — د تیټیدلو دوه وُدي مراد د دوې قدوهه
او دوهمه وجه دا ده بنهٔ کړه — چې لیندۍ هاوده کارکوونکي ځان لره
او صاحبه دا ختیار ده ځان له صافه — بلکې غشي مشترک دي بې خلافه
یو کمان کښې هزار ها غشي بسیار — هم و یشتلې شي پهٔ کښې غشي هزار
بلکې غشي پهٔ لینده کښې څهٔ لږ دېر — کار کولې نهٔ شي ځان له چې شي تېر
یا لینده د ځانه وُغورزوي بېرته — نو لینده وُنکي دې کښ اد کړي چرته
نو پهٔ دا کښې دې خبرې ته تمام — اشارت دے چې سرور خیر الانام
پهٔ مثال د هسې د پرلوې شهنشاه دے — سپینه وُنکې پهٔ تطر د هر سیاه دے
چې هغهٔ له غلامان دي هزاران — هزاران دي هزاران يُې غلامان
او ددهٔ حکم پهٔ ټولو دے جاري — غلامان يُې چرې نهٔ مومي خواري
او پهٔ دهٔ نهٔ دے لازم متابعت — د هیچا متابعت یو لږ ساعت
او پهٔ دهٔ باندې قیود نهٔ دي واجب — د هیچا قید دهٔ له نهٔ دے مناسب
پس کهٔ دا شبه کوې لرې پهٔ نیت — چې دے یو کمان کښې د پر دا اشارت
یاده وُلوته د دوو لیند و ضرور — احتیاج هم ورته نهٔ وُه څهٔ حضور
نو دے ستاد شبهې دا دنګي جواب — چې د پاک پروردګار زیات د حساب
بندګان دي هزاران او هزاران — هسې دهٔ له پهٔ دا شان دي امتیان
بندګانو له چې بې د پاک ستار — نشته بې خالقه بل پروردګار
دے امت له بې د پاک نبي سرور[۴] — نشته بل بې محمده پیغمبر[۴]
نو دا دوه لیندې دي دې ته اشارت — لکه یو الله دو بېم نبي حضرت[۴]
او دوهمه وجه دا ده واوره صافه — غشي کېږي مشترک بې له خلافه
او پهٔ هرهٔ لینده و یشتې شي عیان — او لینده ده ملازمه د خپل ځان

## ملازم المرءِ[۳۰۳] شرف من المنفک[۳۰۴]

څلورمه وجه داده برابره — چې اګر لینده کېږي ده سراسره

لیکن ژړه ده ددې سمه په صحت — نو دا ژړه جبر نقصان استقامت

د کوږ والي د لیندې نقصان کړي دور — او په دا کښې اشارت دا دے ضرور

چې اگر په گناه نفس چې د بنده — په گناه سره چې شي چرې گنده

چې کوږ والے چرې وکاندې کوم حال — لیکن زړه دده په مثل په مثال

لکه ژړه هسې محکم وي برابر — په توحید درب رحیم کریم اکبر

امید دا دے د الله نه په دا شان — چې کوږ والے ځه د نفس دانسان

او د زړه استقامت ته لرو سبر — رسولے نه شي هیڅ قدر دې ضرر!

بل پخمه وجه دا ده چې هوښیار — هرسړے نه کړي نظر په هسې کار

د کوږ والي د لیندې نه کوي خیال — گوري سم استقامت د غشي حال

د لیندې نه چې بهر اووځي ستیر — دا دے دې ته اشارت او هم نذیر

چې نظر د الله پاک پروردگار! — نه دے ستا کوږ والے نفس گناه په کار

بیلکې ستا په کلیمه د شهادت — په وئیلو ستا نظر دے د رحمت

چې د خولې ستانه په صندق بهرکیږي — لکه دا ایات نذیر د اکبر کیږي

# إِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ[۳۰۵]

**لطیفه** او مه دا ده په زینت — صاحبا نو بعضې دا د اشارت

دي و ئیلي قاب قوسین اشارت سم — دنیا نفس ته چې دوئ دواړه دي خم

او تاثیر د غشي دے په لیندې باندې — هرگز ځان له مراد ته نه رسیږي وړاندې

چې هر کله د لیندې نه شي جدا — پس د هغې د سې تخنبې ته دا بیا

ځو چې سر د غشي سود په کمان نشي — هرگز دے به د سپیدو ترنشان نشي

چې ځو پورې سر ذ نفس بې حیا — چې سره وي برابر د دې دنیا

تر هغه به حق تعالیٰ ته په هیڅ شان
وه به نه رسیږي درته د رحمان

او هم کله چې د نفس سرکش بسیار
او دنیا نه شي جدا او دست بردار

پس له هغې به واصل شي له پاک خدائے
لکه هسې رباعي ده په دا ځائے

په خودی کښې که زما ته همنشین یې
له ما دور یې کله ته زما قرین یې

خودي پرېږده بېده قدم زما په لار کښې
چې په لاره کښې د عشق زما امین یې

اشارت په دې کښې دا دے مفصّل
چې ترڅو پورې لېنده کښې چې عمل

د وېشتلو چې ونه کاندې یو کس
لېنده غشي د وېشتو عاجز وي بس

حاصلېږي نه ترې بې عامل مقصود
تیر کمان وي عاجزان د زیان وسود

نو هم دا رنګ چې ترڅو پورې توفیق
د الله نه دي د چا سره رفیق

نه د نفس نه کېدلے شي خدمت
نه د ذره نه څرګندېږي محبت

بعضو هسې دي وئیلي لره یاد
چې د قاب قوسین نه وائي دے دا مراد

د دوو ورځونه دے مراد صاف برابر
او وادنیٰ دے اشارت دا مقرّر

لکه قرب د سیاهۍ د سترګو سپین ته
یعني قرب د حضرت رب العٰلمین ته

او نژدې شه پاک الله ته په دا رنګ
لکه قرب دے د دوو روځو څنګ په څنګ

هم چې دوه وروځې نژدې دي یو تربله
لا دي نه نژدې وائي خدائے په خپله

چې هغه ده سیاهي د سترګو صاف
عبارت دے سفیدۍ ته بې خلاف

**لطیفه اتمه** دا ده په دا نیت
وائي بعضې صاحبان د اشارت

د دنیٰ فتدلیٰ ده معنیٰ دا
چې هر کله پاک سرورؐ محبوب د خدا

چې د قرب مقام ته ورسېد سرورؐ
نفس خپل یې پرېښو هلته برابر

چې هرګز ددې مقام نه یې په بېرته
لا ربه نه شم بل مقام دے هسې چرته

د اشنا د وطن خاک به سر پا شمه
دغه کور مې شه دېرخوښ دلته به یمه

الله ووے ورته اے زما حبیبؐ
په درګاه زما د واړو نه قریب

هغه ذات پاک مقدس چې ته یې حضور
راوستلے یې ته دلته کښې ضرور

نوتادردے چې هم هلته دا مقام — تاته وُرسوي هسې ماف تمام

دا شي بحث به له دې خبرې زيات — ان شاء الله تعالیٰ کهٔ وي حيات

بعضې وائي چې معنیٰ د تدلّٰی — وُلړي فتدلي نه چې څهٔ بل

يعني اے نتدلل خاصه سرور — بلکې وناز بېد حضرت خير البشر

دا بُ دُ د نيل چې اے پاکه ستاره — دايم زهٔ چې دې پهٔ دې دولت بېشماره

مشرف دې کړم پهٔ دې دولت دسره — د عالم د عالميانو دې کړم غوره

لطيفه نهمه داده چې معنیٰ — بلکې هسې وائي داده د دنیٰ

پر پښتو نفس خپل آسمانٔ کښې پاک حضرت — وائي دا فَتَدَلّٰی کښې پهٔ حمت

پر پښتو زړهٔ مبارک پاک نبي سرورٌ — او پهٔ سدرا لمنتهیٰ کښې برابر

پر پښتو روح پهٔ قاب قوسين کښې هغه حين — سِر د دهٔ او هم د ربّ العٰلمين

باقي پاتې شهٔ نور ووې دب عيان — دادے زړهٔ او ووې زړهٔ پهٔ هسې شان

دادے روح او ودې روح چې دادے سر — ووې سر دادے حبيبٌ معشوق دلبر

الله ووئيل چې اے نفسه بشکاره — ما نعمت مغفرت درکړ تالره ! ۳۰۲ء

اے زړهٔ تالره مې عشق محبت درکړ — روحه تاله مې قربت کرامت درکړ

او اے سره زهٔ يم ستا او تهٔ زما ئې — دې جهت نهٔ اَوْ اَدْنیٰ ووئيل خدائے

# رُباعي

---

کهٔ مَهْرُو زما د مخ دودکړي جمال — ترا شنې مې کړي ظهور حسن آفتاب خپل

کړم به عرق چې نوائي جدائي خپله — وائي دے څهٔ غواړي ستا څهٔ شه اخبا خپل

---

لطيفه لسمه داده چې پهٔ ميان — د عربو کښې مشهوره ده داشان

چې د دوؤ قبيلو سره پهٔ منځ کښې — جګړه پورته شي نزاع او پهٔ دېرو نځ کښې

اوچې وغواړي چې مر کاندي انکار    د فتنې نور پیسان ئې کړي داکار

دیوې قبیلې مشر ملک خان    ژله کړي کوزه برابر دخپل کمان

په لنده پوړې د بل دریس افسر    هغه ژره و تړي کلکه برابر

او دبلې قبیلې رئیس سردار    هغه هم وکاندې هسې دننګې کار

بل دریس هم هغه ژره دریس بل    کوږ کښې زوړند کړي سره دکمان خپل

نو ددواړو قبیلو سره اکثر    سبب وګرځي دامن برابر

نو الله ووې چې اے زما حبیبه    د هر چانه په درګاه درب قریبه

او ده تالره لنده د شفاعت    او ده مالره لنده ده د رحمت

ته زما د رحمت ژره د شفاعت خپل    په کمان خپل پوړې وتړه په نیت خپل

چې زه ستا د شفاعت ژره په کمان    د رحمت خپل پوړې وتړم کمان

چې په ساق د عرش عظیم پوړې ضرور    دواړه زه کرم اوبړاندې په حضور

ترهغې چې څو باقي وي عرش عظیم    کار د صلحې به په منځ کښې وي تسلیم

نو دا غوټه به زما د محبّت    هم به صلحه برابر ستا د اُمت

وي باقي دواړو طرفونه تیاره    منځ کښې صلحه به زمونږ وي قراره

لطیفه یو لسمه دا ده مسافه    برابره ئې شبهې او ئې خلافه

الله ووئیل چې اے زما رسوله    په درګاه زما د هر چانه قبوله

او ته ژره د شفاعت خپل برابره    په لنده پوړې زما د رحمت غوره

بلکې وتړه ته ژره د شفاعت خپل    په کمان پوړې زما د لوئې رحمت خپل

او زه ژره به د رحمت خپل په ښه شان    وتړم د شفاعت ستا په کمان

نو ته تېر د خپل کمان د عنایت    په لښکر د معتبرو دا مت

منځ کښې وغوزوه ته ددې د پاره    چې زه تیر د کرامت له یوه واره

د کمترو د عاجزو په لښکر    دامت ستا کښې ګذار کړم برابر

چې لښکر د معتبرو دامت ستا    په مدد شي بخښیده د شفاعت ستا

او خراب او عاجزان ستا د امت ‌ ‌ ‌ خلاص به یا موږ زما په لوی رحمت

لطیفه ده دو لسمه ددې شانه ‌ ‌ ‌ چې معنیٰ د دنیٰ داده صاف عیانه

هر چې وو د عالمیا نو څخه اثر ‌ ‌ ‌ ټول یې ونړاوه واړه برابر

واڼي دا فتدلیٰ کښې دا دننګ پاک ‌ ‌ ‌ هر چې وو د اد میانو یې اشتراک

همه واړه یې کړه قطع امانت ‌ ‌ ‌ ترهغې پورې چې دے په اجازت

د غیبي سره یې واورېده آواز ‌ ‌ ‌ د پردې د الٰهي رحیم بې نیاز

اُدْنُ منی[۳۰۸] او یعني په محل ‌ ‌ ‌ د قرب نږدې کښې یعني مه اوسه معطل

او مقام د قرب زمانه کړه را دو ‌ ‌ ‌ پس له دې په ځاوه د امر یو

کښېناست دے د اُدْنُ منی د رب ‌ ‌ ‌ منځ کښې محو ورک شو ورځ او هم بل شب

او سوز پاتې کناره شه هغه د رنګ ‌ ‌ ‌ چې سرور خیر البشر دا رنګ لار تنګ

چې هیبت شه د جلال او د جمال ‌ ‌ ‌ کل ظاهر شه پاک سرورته په کمال

پس له هغې بیا عزت د ربوبیت ‌ ‌ ‌ او از وکړ را شه پورته ته او چت

شه دا خل په هسې رنګ بساط د قرب ‌ ‌ ‌ د پر خوشحال شه په بساط نشاط د قرب

چې الا مناسبت په منځ کښې سم ‌ ‌ ‌ پاتې نه شه د حادث[۳۰۹] او د قدم[۳۱۰]

پردې تولې د منځ پورته شوې اعلیٰ ‌ ‌ ‌ نو فکان قاب قوسین او ادنیٰ[۳۱۱]

او د دوو لیندو په قدر سلامت ‌ ‌ ‌ یو صفت دے د قدم بل یو صفت

د حادث دے په کښې نشته لږ و بر ‌ ‌ ‌ چې اګر نږدې ور ورسېد سرورؐ

او مګر یو شوي نه دي برابر ‌ ‌ ‌ نو په دا سبب یو وا لے سرا سر

د حادث او د قدیم د صورت صاف ‌ ‌ ‌ نو محال دے اتحاد نه د ے خلاف

نو هر کله د د نو نه چې دنیٰ ته ‌ ‌ ‌ رسول ورسېد بې حد درجې اعلیٰ ته

علم عین وګرځېده نبي سرورؐ ‌ ‌ ‌ لرې والي جدائي سره اکثر

د منځ بېرته شه دور والے جدائي ‌ ‌ ‌ خط د وهم د رب رحیم پاک الٰهي

چې دا بېره د دوو لیندو ده په بنه شان ‌ ‌ ‌ له منځ پورته شوه دا بېره په هغه آن

او ابد سره یو ځائے شۀ د ازلے — او ازل ابد کښې وزغلید یو ځل

شۀ وجوب یکرنگ امکانه سرۀ مُلحۀ[۳۱۲] — قدیم وکړه د حادثه سره صلحه

او وټیلي دي پۀ هسې خوش منزل — ووې هسې پۀ دا ځائے کښې دا غزل

# غزل

بلندي د بلند عشق کښې دغه لار وُثقیٰ زما ده

با غنچه ددۀ د وصل پۀ مقصود اقصیٰ زما ده

لا ترخوبه دي پۀ دام کښې د اوبو دختو بند وي

پۀ میدان د لامکان ئې پۀ منزل ماویٰ زما ده

سر د مَازَاغَ الْبَصَرُ[۳۱۳] چې شۀ قریب همت زما ته

هره شپه ددۀ د عمر د معراج اسریٰ زما ده

ښځۀ د مجمع البحرین کۀ امکان دے کۀ قدم دے

پښه ئې پورته د قوسین کړه اوس پۀ "او ادنیٰ" زما ده

د موسیٰ غوندې زرګونه طالبان مې د دیدار دي

کوئې د رَبِّ اَرِنِيْ[۳۱۴] ګوره پۀ سینه سینا زما ده

کوهِ طور کۀ عرش و فرش دے هم کۀ برّ دے او کۀ بحر

تجلّيٰ ئې قسم قسم پۀ خاطر شهلا زما ده

د غیبي صورته عکس پۀ آئینه د روح ښکاره شۀ

کله دا جلوه د حسن پۀ صورت سیما زما ده

د پانده سترګې محرومې له دیداره د یار تلې

دا جلوه ددۀ د حسن پۀ دیده بینا زما ده

طوطيان د قدس واړه راطلب په مهمانۍ کړه
اے بنده ځان ترې فدا کړه زمانه فنا زما ده

---

# غزل د صفت محبوب کبريا

د مکانه چې قدم په لا مکان بۀ دي
دا ز موږ رسول سرور اخر زمان بۀ دي

هسې قريب ئې د خاوند سره بيا مونډ
چې فکان قاب قو سين ئې ځائے سبحان بۀ دي

اؤ ادنى په کښې صفت د ځائے غائب شه
قاب قوسين ځائے د قبضو د دوؤ کمان بۀ دي

سربلند به وي هغه په اخرت کښې
چې څوک ستا په لارې سر و مال او ځان بۀ دي

ستا د لارې نه هغه دروغي په مېله
چې د ځانه لرې بل خواته ايمان بۀ دي

د موسىٰ ژبه کوتاه د ارني شوه
چې د لن تراني ۳۱۵ مهر پرې رحمان بۀ دي

عرش عظيم ئې ديدار په گرد لوئي کړي
چې په سرد عرش قدم په ډېر احسان بۀ دي

صحت ياب ئې شه دگوده د پښې اده
کوز د زمکې پاس قدم په هفت اسمان بۀ دي

سوال قبول د ميکائيل الله رحيم کړ
چې زين پوش په دوش د دوست چې ربه شان بۀ دي

ملائيکو مقربو د خپل و سعه
په خدمت کښې د سرور ليمه چشمان بۀ دي

او توريت انجيل زبور نازل د خدائے وو
شو منسوخ د نسخ حکم پرې قرآن بۀ دي

رهنما فرقان نازل په دوست الله کړ
فرض واجب چې کس کوي په دا فرمان بۀ دي

**شاد محمد** وائي هغه په ستا تابع وي
چې په ځان باندې څوک اسم د انسان بۀ دي

---

# فصل دے شپارسم پهٔ ذکر د قرب د حضرت صلی الله تعالیٰ علیه وآله وسلم ـ حق سبحانهٗ وتعالیٰ وته او لطائف او اشارات

---

تشهد کښې هسې رنګې دي را غلي ․․․ چې حضرت رسول دي هسې فرمائیلي
چې پرې در دَ عرش عظیم ته شوم داخل ․․․ جبرئیلؑ پاتې اسرافیل مې شهٔ واصل
او اویا زره پردې مې ولیدې ․․․ چې غټوالے د هرې یوې پردې
او یا کاله لار پوره ده کهٔ ېې ګورې ․․․ د یوې پردې نه ان تر بلې پورې
او یا کاله لار ده نهٔ ده زیات وکم ․․․ د یوې نه دا تر بلې منزل سم
دا پردې څهٔ د یاقوتو دي ضرور ․․․ بعضې دي د جواهرو خوش ظهور
او دي څهٔ د زمردو ښو مهینو ․․․ څهٔ د سرو زرو او څهٔ د زرو سپینو
څهٔ د او سپنې او څهٔ دي د فولاد ․․․ څهٔ د زېړو وڅهٔ د برف او څهٔ د باد
زیړ د واورې څهٔ د باد څهٔ د اور سور ․․․ دا پردې څهٔ د تیرې دي څهٔ د نور
څهٔ د کاڼې او پهٔ هر پرده صاف ․․․ یو ملک دے مؤکل نهٔ دي خلاف
او پهٔ حکم کښې د هر ملک عیان ․․․ او یا زره نور ملک وو امیران
چې د هر ملک او یا زره پهٔ شمار ․․․ نور ملک فرمان بردار وو تابعدار
اسرافیل پردې اولې ته واصل شهٔ ․․․ حرکت ته د پردې ېې زړهٔ مائیل شهٔ
پرده دار ملک آواز وکړ چې څوک ېې ․․․ او را غلې د کوم ځائے او د کوم توک ېې
اسرافیلؑ وې اسرافیل یم مقرر ․․․ پرده دار وې مل دې څوک دے برابر
اسرافیلؑ وې را سره دے محمدؐ ․․․ خاص استازې دے د پاک الله احد
هغه دم پرده کړه بېرته پرده دار ․․․ زهٔ ېې ونیوم د لاسه پهٔ متلوار

هغه درنګ يې راته ووې په داشان          چې راځه په امرحکم د سبحان

## مُرَبّا مرالله[۳۱۶]

اسرافيل راته په بېرته شه رخصت          دا يې ووې حد مې دا وو د خدمت

نو هغې پرده دا رسېلې ته زه سم          زر يې زه ورسولم په يو دم

دوه پردې لره يې وړکړ حرکت          پرده دارو پوښته حال هغه ساعت

ورته ده د ځان زما ووې احوال          هغه هم پرده کړه بېرته هغه مال

هغه هم پردې دربچې ته يو ان          زه دا خدکرم ددې بل په مثل شان

خبر په هسې طريقه او په دا خبر          دا ويا زدو پردونه شومه تېر

او حتیٰ پردې اخرې ته ضرور          چې دا خل شوم نو وه دا پرده د نور

پرده دار ددې پردې مې و نيو لاس          يو کوسه باندې يې کښېنولم پاس

دا کوسه د سپين ګوهر وه په ښه شان          د ياقوتو سرو يې پښې هم بازوګان

نو ناګاه ددې پردې مې د دهشت          اواز واورېده چې زه يې په هيبت

شوم بېخوده د اواز ددې پردې          له کوسه په پرېوتو شومه نژدې

د يو ځاڅکي يو قطره مې ولېد له          چې په يو روايت عرش نه څڅېد له

بدکې واقې دا په بل يو روايت          چې دا ځاڅکے د اوبو وو د رحمت

نو هغه قطره مې و نيوه د هان کښې          زر مې تېره کړه په هغه دم روان کښې

نو قسم دې وي زما د رب په نوم          چې هيڅ څېز ددې قطرې نه مې معلوم

څکلي نه دي نه يېدلي مې شيرين          راته علم اولين او اخرين

ددې ځاڅکي نه ظاهر شه کل څرګند          مبارک زبات د ځان زما شه بند

چې ګنګ شوے د هيبت وه د دهشت          د خبرو مې بيا نه مونده طاقت

او هغه هيبت په ما باندې بسيار          غالب شوے وه بېحده هم بېشمار

پهٔ ارام پهٔ خوشحالئ پهٔ تسلیٰ　　شو بدل پهٔ نهایتې خوشحالئ

بیا وشُلې دي سرور خیرا لبشر　　چې الله کرم د هیبت دهشت بهر

ماته امر پهٔ ثنا وشُل شه تام　　داته وُشهٔ پهٔ وشُل ددې کلام!

## اَلتَّحِیَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوٰةُ وَالطَّیِّبَاتُ

پېشکشي ده زما خاص دخدائے دپاره　　بدني اوهم مالي زکوٰة بېشماره

او دا درې کلیمې جمع ده بنهٔ صافه　　د کل واړه کلیمو ده بې خلافه

او قولاً فعلاً او هر څهٔ نیک اعمال　　ددې درې واړو بهرنه دي مثقال

دا ثنا چې پاک رسول اخر زمانٌ　　پهٔ جناب اقدس کښې عرض کړه دسبحانٌ

پېشکشي دسلام پاک الله منانٌ　　دجیبٌ خپلنه قربان کړه پهٔ داشانٌ

## اَلسَّلَامُ عَلَیْکَ اَیُّهَاالنَّبِیُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَکَاتُهٗ

او سلام دې وي زما نبيٌ پهٔ تا　　اے هغه ذاته چې یُ نبيٌ زما

او جیب زما یُ او زما رحمت　　پهٔ تا باندې دې وي اوهم برکت

نو حضرت زمونږه دا رنګې جواب　　دسلام وکړ د پاک الله تواب

## اَلسَّلَامُ عَلَیْنَا وَعَلٰی عِبَادِاللّٰهِ الصَّالِحِیْنِ

یعني ستا دې وي پهٔ مونږ باندې سلام　　هم پهٔ هغو بندګانو نیکو تام

نو هر کله چې ملکو د اسمان　　دا درجه د محمد اخر زمان

پهٔ حق وُلیدهٔ نو ټولو پهٔ یو ځل　　اواز پورته کړو ملکو پهٔ اتکل

غلغله چې له عالم ملکوت ؟؟ په دا شان پورته شوه هم د جبروت

## اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ ه

شاهدان یو مونږ چې نشته بل معبود او برحق مګر خو یو دے ودود
شاهدان یو په تحقیق چې محمد او بنده دے دے رسول دے د احد
چې بهر د خپله ځانه شه تمام هذه وخت یې قبول بیا مونږ د سلام
دغه ته بېرته شوه پرده یې د وصال هم په لاره د تعظیم د لوی جلال

## بیان د لطائفو او د اشارا تو په التحیات کښې

رساله کښې د شرائف الاوقات لطیفې دي څو ویلي په احتیاط
بلکې اهل اشاراتو صاف عیان لطیفې دي فرمائیلي په ښه شان
له دې څو لونه پنځلس برابر په دې ځائے ظاهر وُمه سراسر
لطیفه اوله داده چې حضرت او د دې څېړه پېشکشي رسول په نیت
یو له دوله د الله رحیم ستار په عوض د دې الله پروردګار !
ورعطا کړه کرامته دا څلور اول دوه وته د وروستو بیا دوه نور
اول ده یو سلامت بل نبوت دے وروستے دوه د دېم رحمت بل برکت دے
ولي دا د دې څېزه یو چې سلامت دے دوېم وائی نبوت د دېم رحمت دے
یو یو یاد کړه قدسي ذات والاصفات وویې لفظ د برکت یې برکات ؟؟
دا په جمع سره وو ایه بیان سبب دا دے چې ته پوه شې په ښه شان
بلکې دا برکات ابد الاباد دي په زیادت کښې د حسابه نه زیاد دي
او که لفظ د برکت اګر واحد دے دلالت په زیادت کوي زائد دے

ذکرکیږي خاص په خپل وخت کښې په جمع
خواه ناخواه به پس له ډېرو کالو شمع

داسلام په برکت د محمدؐ
د مشرق نه ترمغربه پورې حد

روشن کړے دے جهان کل امانت
نقاره به د دولت ده د اُمت

په نظر عالي همت دده یکسان
غږ به لې ده اطراف کښې دجهان

تاج و تخت دې لرې دواړه داجهان
تخت دې زمکه هم دې تاج داغ اسمان

که سدره په نورتنویره له انوارده
ستاد صدر ارائش ته جان نثارده

د لویمه بالاخانې ته د لوې عرش
شه یوځاے ستاد کرسۍ د پاره فرش

چې دې نور له پاک وجودشي جهانتاب
یوذرّه د سورې شي ورته افتاب

آئینه دارکه د سپانه دے دا غلے
نور دې څرنګ دے په زمکه ځلیدلے

لطیفه دوېمه داده چې رسولؐ
ښکاره کړے وو سلام ئې د قبول

نو نېکان ئې په کښې یادکړل دامت
هسې وو وئیل زمونږ نبي حضرتؐ

اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِيْنَ ه

---

هسې شان په پاک سرورؐخیرالبشر
اواز وُشه پرې د دره داکبر

یامحمد خرجت جبرئیل من تبشاراً وانت یدخل امتك فی سرنا

اے حبیبه زما زه جبرئیل لره
په حرم خپل کښې لارنه ورکوم کره

په دا منځ کښې راولې ته امت خپل
ماجبرئیل هم بهرکړے دے بالکل

چې احمد نوش کړه هغه شراب حق جوئې
څاڅکے کړې ترې په زړونو زمونږ توئې

چې شونډې ئې اراسته په شکرخند کړې
دامت په حق ئې توئې تودې دقند کړې

چې همت ئې تونکړ په ګنج دشاه شه
کل مقصود دده حاصل دپاک الله شه

لطیفه درېمه داده چې حضرت
ووې اسلام علینا په بنه نیت

د درګاه ته د الله رحیم تواب      ورته وشهٔ پهٔ دا شان سره خطاب

چې اے دوسته زما بې له تانه بل څوک      د لته نشته سوا بې له تانه بل څوک

ته چې وائې علینا بلکې دا نون      تشنیه د څهٔ د ے څهٔ لري مضمون

حضرت ووې اے خداونده چې امت      زما واړه او اګر چې دا ساعت

پهٔ ظاهره جُسه ما سره حضور      څهٔ کهٔ نشته دے پهٔ روح سره ضرور

پهٔ باطن کښې ما سره دے برابر      همیشه زما پهٔ دوئ دے نیک نظر

هم زما مهربانې ده دوئ سره      کهٔ غائب وي کهٔ حاضر وي کهٔ ښکاره

اوس چې زهٔ دې کرم پهٔ امن پهٔ سلام      دکل واړو مکروهاتو نه تمام

نو دا رنګ سلامتي کښې پهٔ ښهٔ شان      خواه ناخواه بلکې هم هغه عاجزان

ستا پهٔ دا مهربانئ کښې پهٔ هر دم      ما سره شریک دې دې کښې سره سم

لکه زهٔ یُم مستعد پهٔ دا دولت      هم وي هغه فقیران پهٔ دا ساعت

کهٔ ګدائي فیض د خوان دا حسان واخلي      پهٔ کوم شان خوان د سلطان بې نقصان واخلي

لطیفه ده څلورمه چې رسولؐ      پهٔ درګاه د پاک الله باندې قبول

خپل امت له سلامت کښې شراکت      ورکړ صاف ئې شراکت پهٔ سلامت

پهٔ رحمت پهٔ برکت کښې ئې ورته کړ      برکت او پهٔ رحمت کښې ئې ورته کړ

چې رحمت او برکت واړه تیار      سراسر د سلامت دي تابعدار

میلکې یو روایت دا دے برابر      چې هر کله ووې دا نبيؐ سرور

## اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِيْنَ ه

---

د خداونده دا الله رحیم وهاب      ورته وُشهٔ پهٔ دا شان سره خطاب

## لوترکت السلام [۳۱۷] الیناحتی سلمنا [۳۱۸] علی امتک لکان خیرالهم

د امت کهٔ دې سلام چرې تا ماته | کهٔ پرې یښے وے نو دوئ له وه ښهٔ زیاته
نو د دوئ پهٔ حق به زیاته وه بهتره | کهٔ پرې یښے دې وے ماته وه به غوره
او مګر چې شروع دوئ باندې تا وکړه | حواله هم حُکه تاوته ما وکړه
لکه حسې پهٔ دا ځائے کښې دا ایات | فرما یلے دے الله رحیم پاک ذات

## اِذَا جَاءَكَ الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِاٰيٰتِنَا فَقُلْ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ [۳۱۹]

---

او پهٔ هغه وخت کښې راشي چې عیان | تالره چې برابر هغه کسان
چې راوړي ایما نونه دي اکثر | او زمونږ پهٔ ایا تونو برابر
نو پس وایه ته پهٔ دوئ باندې سلام | د اسلام سنت طریق لار د اسلام
او رحمت او برکت د سلطنت | ستا د پاره پهٔ دوئ باندې سلامت
مسلم لوم پهٔ دوئ ستا برابر | لکه هسې دي و سټلي پاک اکبر

## كَتَبَ رَبُّكُمْ [۳۲۰] عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ

---

د کرم د خزانې پهٔ مبرکت | کرم پهٔ دوئ بهٔ حواله پهٔ دا ساعت

## تَبٰرَكَ الَّذِيْ بِيَدِهِ الْمُلْكُ

---

صفات لوئ دي هغه خدائے له چې پهٔ لاس | د قدرت کښې د هغهٔ ملک دے بې قیاس
لطیفه پنځمه داده چې سبحانے | ووې اے زما جیبه پهٔ دا شان
چې څه کله امت خپل دې پهٔ سلام | بهره مند کړ زما کل واړه تمام
ما هم تا سره کړ شرط پهٔ دا صفات | پهٔ ایامو د حیات او د ممات

ستاکښې شپه په مقرره کړم هر کال
ستا امت له ددې شپې په شان مثال
او هغه ليلة القدر ده شپه شب
لکه هسې چې وئيلي دي پاک رب

# لَيْلَةُ الْقَدْرِ خَيْرٌ مِّنْ اَلْفِ شَهْرٍ [۳۲۱]

او دا شپه چې ده د قدر ده بهتره
په بزرگۍ کښې ده د زرو مياشتو غوره
په دې کار کښې د امت خاطر داري
ستا به وکړم هم رضا د دوئ جاري
په دا شپه په امتيانو ستا اکثر
سلام وايم به په دا شان برابر

# مِنْ كُلِّ اَمْرٍ سَلَامٌ [۳۲۲] هِيَ حَتّٰى مَطْلَعِ الْفَجْرِ [۳۲۳]

لکه هسې په دا ځاے کښې دې تقرير
رباعي په دا مقام کړله تحرير
په احمد چې رب سلام کړ په معراج
ده په تخت د سلام کښېښو په سراج
پرې سرشار به ولې نه وي شب دقدر
چې سلام کړي رب په دې بنده محتاج
په تياره پښې او به نن شپه ژړوندي
کړه طلب د معشوقۍ په شه ده داج
لطيفه شپږمه دا ده په دا شان
ووې هسې پاک الله رحيم رحمان
اے زما دوسته حبيبه محمّده
له هرچا ماته قريبه محمّده
لکه تا سره چې نن بې وسيلې
د مېلکس سلام کلام کوم دلې
په دا رنګې به په ورځې د قيامت
کوم ستا له خاکسارانو د امت
لکه هسې دي وئيلي رب رحيم
په اخلاص د زړه په صدق مې تسليم

## سَلَامٌ قَوْلًا مِنْ رَبٍّ رَّحِيمٍ

بیلکې داد ے همېشه زما سلام
په دوئ بانډې همېشه علي الدوام

مګر تن ورځ په سبب د آب و ګل
په غوبږ ونو کښې درونن والے د ےحاصل

اوري نه دوئ په غوبږ ونو باندې پاک
د قیامت په ورځ چې دا پرده د خاک

ددې غورو جُسو پاکونه شي پوره
هغه ورځ به مې سلام اوري هم لورته

لکه شیخ رومي په دی تمثیل کښې غوره
مثنوي ده فرمائیلي برابره

په لحد کښې به خبر شي په خپل کام
چې ته اورې درحیم رحمان سلام

شې به پوه په هغه وخت باندې ضرور
چې دستر ګو دقدرت نه وُم مستور

لطیفه او ومه داده وایُم صاف
چې دے دې کښې د بزرګانو اختلاف

مراد د هغه بندګانو دے معروف
په نېکۍ او په راستۍ چې دي موصوف

او دا کومه طائفه ده بعضې وائي
چې ملک دي هم ملکو لره ښائي

بعضې وائي انبیاء او مرسلان دي
بعضې وائي چې کل وارہ مؤمنان دي

بیلکې وائي په دې عجب دلیل
لکه هسې دي و ئیلي رب جلیل

## اَنَّ الْاَرْضَ يَرِثُهَا عِبَادِيَ الصّٰلِحُوْنَ ۳۲۶

په تحقیق زمکې لره مې وارثان
ما دي کړي بندګان همه نېکان

او اکثر مفسرانو دا مضمون
تفسیر کړے د عِبَادِيَ الصّٰلِحُوْن

دے امت د محمد اخرزمان
نو هر کله چې الله رحیم رحمان

ګناه ده ورته ښکاره ددې امت
او ددې ګناه سره ددې اُمت

وو ئیل دوئ ته عِبَادِ الصالحون
نو حضرت خیر البشر په دا مضمون

چې شاګرد دے د مکتب دالله حق
نو اخستے ئې وو هلته دا سبق

ټول همه امت چې وو خه دده خپل
او صالح ئې ورته هلته وو ئیل

## وَعَلٰی عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِیْن ۰

اے فقیره چې نیکي چرې یو کس — کړي نهٔ وي ورته بل نیک واڼي پس
او دا عین دے کرم مهرباني — دا د حمد ده چې حمد د لاثاني
که یو کس دي بد یې کړي برابره — او بد واڼي ورته دا عیب دے دسره
پس احد او محمد پهٔ دا صفت — دکوم سره موصوف دے نهایت
او د عیب نه دي دوئ پاک او هم بېزار — مجرد دے معنا که پهٔ یو وار
که پهٔ زیري د عباد الصالحون — مونږ سره ددې وعدې پهٔ دا مضمون
او هم سترګي د دید او د لید و — او غوږ ونه مو د حق د اورېد و
او پهٔ ذره چې خطرباندې مشرف کړي — څهٔ عجیبه ده که غم مو برطرف کړي
لطیفه اتمه داده برابره — روایت دے چې هر کله رسول غوره
چې قبول د سلام وکړو د سبحان — بندګان ئې کړهٔ هم یاد ئې صالحان
نو الله پهٔ واحد والي باندې خپل — ګواهي ورکړه او دا ئې دو ئیل

## اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ

نو حضرت پهٔ بندګۍ خپلي دا شان — ګواهي ورکړه پهٔ هسې شان عیان

## اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ ۰

یعني اے الله تا ورکړه ګواهي — پهٔ خپل شان لکه چې تهٔ ئې ستا بناهي
ګواهي ورکوم زهٔ هم پهٔ خپل ځان — برابره لکه زهٔ چې یم عیان

اودے تاله عزت د دبو بیت    اوده ماله عاجزي د عبودیت
ورته ووې الله اے زما حبیبه    د هر چانه په درګاه زما قریبه
ته په خپله بندګۍ باندې ضرور    اے حبیبه ته نازېږې پرې حضور
حضرت ووئیل هو رب العٰلمین    په بندګۍ خپله نازېږم دیقین
چې مې بیا موند په بندګۍ کښې دا مقام    نو به نور په څه نازېږمه تمام
هغه ځاے له چې دې زه یم راوستلے    لکه دا ایت شریف دے فرما ئیلے

## سُبْحٰنَ الَّذِیْٓ اَسْرٰی بِعَبْدِہٖ ۳۲۵

تلل دو کړي مې بنده خپل له معلوم    تا بللے یم په خپله بنده توم
دې ورکړي بنده خپل لره مې تلل    تا بللے یم په نوم د بنده خپل
هغه نوم چې ته پرې ما بولې تمام    دے طاقت د چا بدل چې کړي دا نام
لکه ته چې یې عزیز په دبو بیت    زه عزیز یمه په دا عبودیت
له بندګۍ به شي سلطان په تخت د ناز    که خدمت کړي د محمود لکه ایاز
په نازک وجود به پاتې له مقصود شي    بهره مند به په دنیا له خپل بهبود شي
که په ناز دې بولي مه ورځه په نازکښې    چې له ناره فضیلت دے په نیازکښې
لطیفه تهمه داده چې دے نقل    هغه پوه دے چې لري څوک د سر عقل
چې هر کله محمد نبي اکرم    ووې پاک الله پیدا چې کړ قلم
نو قلم ته پاک الله رحیم تواب    وکړ هسې په دا شان سره خطاب
چې ته وليکه قلم ووې اکبره    چې څه وليکم زه ستا په فرمان غوره
الله ووې ورته هغه چې اول    او اخر دے پیدا اُش د لم یزل
قلم ووې ویا الله پروردګاره!    چې شروع وکړم په څه اول دواره
الله ووې ورته هسې شان قلمه    اول دا کلمه وليکه زر سمه

# لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ

قلم وګرځېده څلور هزاره کاله ـــ یک قلم دا کلمه کړله فی الحاله
و شهٔ حکم پهٔ قلم بیا دو باره ـــ چې ذر و لیکه پهٔ هسې شان ښکاره
قلم ووې چې څه و لیکم سبحانه ـــ حکم و شهٔ چې دا و لیکه عیانه

# مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ

بیا څلور هزاره کاله دا قلم ـــ څلور زره کاله وګرځېده سم
نو پس دا کلمه دې قلم کړه کښل ـــ هغې پس ته ئې بیا دېر دېر وژړل
بیا قلم ووې چې اے الله اکبره ـــ چې دا کوم بنده دے ستا د حده غوره
او هم نوم دده نزدې چې د نوم ستا دے ـــ خطاب و شهٔ چې دا نوم د هغه چا دے
کهٔ مې نهٔ پیدا کولے مصطفیٰ[۱] ـــ پیدا کړي به مې نهٔ وو دا اشیاء
نو دا نوم د محمّد[۲] اخرزمان دے ـــ دے محبوب زما مبداء د کل جهان دے
پهٔ قلم باندې هر کله محبت ـــ غالب راغے د حضرت هغه ساعت
نو قلم پهٔ هسې شان سره تمام ـــ پهٔ رسول ئې وکړ دا رنګې سلام

# اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ اَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهٗ

نو وائې وکړ پاک الله پروردګار ـــ نیابت د محمد نبي دوښيدار
امتیان ئې کره دده دهٔ سره ضم ـــ پهٔ جواب کښې ئې دا ووې د قلم

## اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِيْنَ ه

دا سلام او جواب پاک پروردګار
امانت اېښے تر دې وو برقرار

د معراج پورې يې وُساتهٔ تمام
نو پهٔ شپه يُ د معراج باندې سلام

د قلم سرور ته ورساوه سم
دا سلام وو پهٔ حضرت د دې قلم

او جواب خپل يُ پهٔ ژبه پهٔ بيان
د حضرت وکړ پهٔ فضل د سبحان

نو سلام له دې جهته دے سنت
او جواب يُ دے فرض شوے سلامت

اے فقيره او سه زرهٔ باندې خوشحال
چې سلام دا د قلم پاک ذوالجلال

د اولې ودځې نه دے ضائع کړے
خپل محبوب يُ هغه ځائے ووسامع کړے

د هغه دربار کلک يو اميدوار
چې مومن واورو دا سلام چې پهٔ باربار

او پهٔ روح پُر فتوحْ مومن د پاک حضرت
لېږ و نن ورځ پهٔ باربار پهٔ هر ساعت

عبث نهٔ بهٔ کاندې وُبه کړي پرسش
او پهٔ سبب د ګناهونو د بخشش

او بيا هم د بلندۍ د درجا تو
شي زمومن د درجا تو د حد زيا تو

هېڅ د هغه د دريابه د کرمه
څهٔ عجبه نهٔ ده زياته ده کهٔ کمه

## وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ه [۳۲۶]

او الله ستار جبار کريم رحيم
زمونږ دے صاحب د فضل د پر عظيم

لطيفه لسمه داده سرابره
چې د نقل خطاب وشهٔ د اکبره

عينِ وخت کښې دراتلو د پاک حضرتؐ
د معراج نه چې کوي مراجعت

الله ووې اے زما حبيبهٔ
پهٔ درګاه زما د هر چا نه قريبه

چې هر څوک ځي بېرته کورته د سفرهٔ
وړي دوستانو له ضرور پېشکشي غورهٔ

د سفرنه د معراج ځے ته ؤ واپس
امت ئې ل له به ته ځۀ ورې په هوس

حضرت ووې اے خداونده مهربانه
هرچې حکم کوې ماته د هر شاته

هم هغه به یوسم زهٔ وله تیار
ورته ووې هسې پاک پروردګار

اے حبیبه زما هغه کلمات
چې تا ووې او بیا ما ووې پاک ذات

بیا ملکو کلمات چې ووئیل
پیشکشي یوسه په حق د اُمت ئېل

دې د پاره چې هر مونځ کښې هرساعت
چې دا لولي په دولت د سعادت

ابدي سره به بنهٔ شي مشرق
غم د زړهٔ نه به ئې کل شي برطرف

لطیفه یوُ لسمه داده سمه
پهٔ کښې نشته د دې څهٔ زیاتو کمه

روایت دے چې هر کله پهٔ دا شان
تشهُّد کښې بنده وُوائي عیان

# اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلٰوٰةُ وَالطَّيِّبَاتُ

الله وُوئیل چې اے بنده زما
چې په ما باندې دې وُوئیله ثنا

زهٔ به هم پهٔ تا پهٔ ورځې د قیامت
ثنا وُوایم به زهٔ پهٔ دا ساعت

لکه هسې چې دا قول د پاک اکبر دے
پهٔ دا ځائے پهٔ دا مقام کښې برابر دے

# تَحِيَّتُهُمْ فِيهَا سَلَامٌ [۳۲۷]

او هر کله چې دا وُوې چې هر کس
پهٔ خوشۍ پهٔ فراخۍ او پهٔ هوَس

# وَالصَّلٰوٰةُ

نو الله وُوائي اے بنده زما
او هم زهٔ صلٰوة لیږم به پهٔ تا

لکه دا قول د پاک الله قديم دے　　　هسې د ننگ ايات و ښېلے رب رحيم دے

## هُوَ الَّذِیْ یُصَلِّیْ عَلَیْکُمْ [۳۲۸]

هر چې وُوائي بيا دا والطّيبات　　　پاک الله عالي صفات اوقدسي ذات

وُوائي اے بنده زما تا به کړم پاک　　　د گناه نه هم ستا د سکون خاک

لکه دا قول د خدائے دے برابر　　　په کښې نشته د ذرّې څه لروير

## اَلطَّيِّبٰتُ لِلطَّيِّبِيْنَ [۳۲۹] وَمَسٰاكِنَ طَيِّبَةً فِيْ جَنّٰتِ عَدْنٍ [۳۳۰]

او هر کله چې بيا ووائي په زبان　　　په نما څه کښې برابر په هسې شان

## اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ

الله ووائي چې اے بنده زما　　　او زه هم سلام لېږم ضرور په تا

لکه دا قول د پاک پروردګار دے　　　هسې دا ايات و ښېلے پاک ستار دے

## سَلَامٌ قَوْلًا مِّنْ رَّبٍّ رَّحِيْمٍ [۳۳۱]

او هر کله چې هر کس يعني انسان　　　اَيُّهَا النَّبِيُّ وُوائي په زبان

الله ووائي چې کړي مې وعده ده　　　د حبيب خپل سره دائمي اراده ده

د هغه په وسيله چې د قيامت　　　په ورځ تا وبخښم ده په شفاعت

په حق ستا به شفاعت د خپل رسولؐ　　　اے بنده په حق کښې ستا به ئې کړم قبول

لکه دا قول د پاک الله سبحان دے — ما مثلے برابر په دل وجان دے

## يَوْمَ لَا يُخْزِي اللّٰهُ النَّبِيَّ [٣٣٢]

او چې وائي هر کله برابر — هسې شان په خپل زبان دا مقرّر

## وَرَحْمَةُ اللّٰهِ

پاک الله وُوائي دا هغه ساعت — اے بنده زهٔ هم کوم په تا رحمت
لکه دا قول د پاک الله پاک خدائے دے — دا ايات شريف ثبوت په هسې ځائے دے

## كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ [٣٣٣]

او هر کله چې دا وُوائي انسان — يعني دا وَبَرَكَاتُهُ عيان !
پاک الله پروردګار قَهَّار جَبَّار — وُوائي اے بنده په تا باندې بسيار
برکت کوم په تا په دا مثال — لکه دا قول دے صاف ذُوالجلال

## وَبَرَكٰتٍ عَلَيْكَ وَعَلٰى اُمَمٍ مِّمَّنْ مَّعَكَ [٣٣٤]

او هر کله چې دا وُوائي ضرور — يعني اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا په سرور
پاک الله وُوائي هسې شان تمام — زهٔ د دنيا کښې کوم تا باندې سلام

## مِنْ كُلِّ اَمْرٍ سَلَامٌ ۳۳۵ء

او هر كله چې ؤوايي انسان
هسې ؤوايي په اخلاص په خپل زبان

## وَعَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصّٰلِحِيْنَ

نو بيا وليكي الله پروردگار
او ددې بنده د پاره برقرار

د ملكو په شماره د اسمانونو
په شماره د موجوده د هرخيزونو

په شماره د هر بنده نيك نيكه لس
او هر كله چې دا ؤوايي هر كس

## اَشْهَدُ اَنْ لَّآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ

هسې ؤوايي رحيم كريم پاك خدائے
اے بنده ضامن يم در به كړمه ځائے

ملكيږه خپله كښې در به كرم ضرور
لكه دا قول دے صاف د پاك غفور

## وَحَسُنَ اُولٰٓئِكَ رَفِيْقًا ۳۳۶ء

او هر كله چې دا ؤوايي بنده
هسې شان لكه په دا شان زبنده

## اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ

پاك الله رحيم كريم قديم ستار
ؤوايي هسې پاك رحمٰن قهار جبار

اے بنده ضامن دِيمه زهٔ احد
شفيع ؤكرځووم ستا به محمدٌ

لكه دا قول د پاك الله اكبر دے
ما منلے برابر په ستر گو سر دے

## وَلَا يَشْفَعُوْنَ اِلَّا لِمَنِ ارْتَضٰى ۳۳۷

لطیفه ده دولسمه هسې شان — دي راوړي چې حضرت آخرزمان

د معراج په شپه کښې دوه ځیزه حضرت — بیا موندل مدح یوه یو سلامت

او په دوارو ځایه کښې تاته کړ هېږ — سلامت دا وه چې شه دا بیان مېږ

او مدح په په هسې بزرگ آیات — اود آمَنَ الرَّسُوْلُ ۳۳۸ کښې د پاک ذات

شي بیان چې په کوم وخت رحیم اکبر کړه — په ایمان د خپل رسول گواهي ورکړه

نو حضرت زموږ سرور خیرالبشر — بالضرور زد ئ ؤو سپل دا برابر

## وَالْمُؤْمِنُوْنَ كُلٌّ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ ۳۳۹

اے خداونده لکه تا چې په ایمان — گواهي ورکړه زما زه هم عیان

په ایمان د امت خپل سره ضرور — گواهي ورکوم زه ستا په حضور

لطیفه ده دیارلسمه له دې بابه — چې خطاب وُشه د دره د ثوابه

اے جبیبه زما ته شپه مېلمه راستېٔ — په خوا ځه بالدې زما ته ته راستېٔ

په خوا دی کښې چې پرې نږدې تېک مردان — هم پرې نږدې دامت خپل قلاشان

او که ته چرې پرې نږدې څه لرو سر — زه ئې نه پرېږدمه مبالکل سراس

گنهگار د امت خپل له تیاره — پېشکشي یوسه ته دامې د دربار ده

## قُلْ يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اَسْرَفُوْا عَلٰى اَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ جَمِيْعًا ؕ

يعني وُوايه ته اے زما حبيبه
له طرفه زما دا ماته قريبه

واوُرئ هغه بندګانو چې زيات د بر
تا سوکړي اسرا فونه د حد تېر

تجاوز د حد د شرعِ نه په ځان
تا سوکړي اسرا فونه و حد تېر

په نفسونو خپلو باندې برابر
نا اميد مهٔ شئ رحمت نه د اکبر

په تحقيق سره الله پروردګار
وُ بخښي به ګناه کل ستا سو ستار

ګناهونه و بخښي به تول په جمع
د رحمت نه قطعه نهٔ کړئ هرګز طمع

لطيفه ده ثوار لسمه دا حُجّت
شيخ احْمَدِ غزالي عليه رحمت

په عيون المجالس خپل کښې بهتر
دي راوُړي چې هم کله پاک سرور

چې په فرش د فراخئ کښېښود قدم
او نقود د ګمې خپلې ئې محکم

په پګړۍ د حقيقت ئې وُ تړل
خزانې د غيب ته ذدې وُسپارل

او هم شونډې د ادب ئې په دُرشل
د عزت باندې ئې کښېښوې وُئې ويل

## لَا اُحْصِيْ ثَنَاءً عَلَيْكَ كَمَا اَثْنَيْتَ عَلٰى نَفْسِكَ

نهٔ ده کړې مې ثنا تا له بالکل
لکه تا چې ده و ئيلې په ځان خپلے

نو له دره د حضرت رب الارباب
وُشه هسې پاک حضرت ته دا خطاب

يا رسوله په تحقيق هغه ثنا
چې کولے نهٔ شوه او س دا ثنا تا

او له ماته په ما باندې دا ساعت
دا ثنا وُوايه وُوئيله حضرت

## اَلتَّحِیَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلٰوةُ وَالطَّیِّبَاتُ

نو هر کله چې حضرت اخرزمان وو          په سایه د بنده ګړ وو دا بیان وو

## لَا اُحْصِیْ ثَنَاءً عَلَیْكَ كَمَا اَثْنَیْتَ عَلٰی نَفْسِكَ

په سایه د وَحْدَهٗ لاشریک سم          وراغے نو دا یې دُوې هغه دم

## اَلتَّحِیَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلٰوةُ وَالطَّیِّبَاتُ

حقیقت سره شیٔ پوه چې په دې ډیه          څوک به هسې ژبات باندې دا غالیه
نهٔ شي څوک ثناکولے د سبحان          چې ودنکړي د څو پورې دے ژبان
په دې سترګو باندې څوک د پاک ستار          بالکل نهٔ شي یې کولے څوک دیدار
د هغه پورې چې پاک الله سبحان          چې ودنهٔ کړي پاک د رحیم کریم چشمان
او په مثل د یعقوب علیه السلام          چې اُمید یې د لیدو لره تمام
ډېر اُمید یې د یوسفؑ وه د جمال          نو په دې قول درب پاک ذوالجلال

## وَابْیَضَّتْ عَیْنٰهُ مِنَ الْحُزْنِ

او سپینې یې کړې دا سترګې په غم          کښې د هغه چې یې وو باسُللي هغه دم
او هغه وخت چې قمیص د خپل پسر          د یوسفؑ را شي نو دربه کړي نظر

## فَارْتَدَّ بَصِيْرًا [۲۴۳]

نهٔ پهٔ دې سترګو کولے شي دیدار — نهٔ دا عشق پهٔ دے سینه شي اُمیدوار
څوچې دا سترګې ورسکړي پهٔ بدل کښې — وُبه نهٔ وینې ز پیاً مخ د سنګار
لطیفه ده پټلسمه پهٔ دا شان — اے فقیره پاک الله ربُّ المنان
دپردې پورته کولو ته اوّل — دجمال خپل نه پهٔ خوا د لم یزل
خپل حبیب ته دښودلو د جمال — لا اول هم دلیدو د ذوالجلال
عشق د ټول امت یٔ سترګو دهمت کښې — هغه نُور د سترګو یٔ کښېښوده حضرت کښې
یعني عشق د ټول اُمت د پاک سرور — کښېښود سترګو کښې د ختم پیغمبر
دې د پاره چې هر کله چې کوم مال — نمرېٔ پورته کړي د خواته دوصال
او احوال به نهٔ کړي هېر د امت خپل — نوچې څهٔ وخت پاک الله دا وُویل

## اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ اَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهٗ [۲۴۴]

نو واڼيُ دا دے دې پردې ته اشارت — دا ۓ وُویٔل في الفور هغه ساعت

## اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِيْنَ

بلکې دا دے اشارت پهٔ شراکت — دعشاقو پهٔ لیدو دیدار کښې نیت

زما سترګو چې کوئ دیدن دیار — څهٔ پهٔ یاد کښې موراڅې له دے افکار
تل د وصل شربت څکئ زهٔ هجر وسوم — کړئ نظر د ورایه ورایه پهٔ بیمار

چې پهٔ سترګوکښې ډېر ډېر وګړم کړم دیدار     پس له سولویه اېږه خپله ډیر یاد کړم

شاد محمد شاکر او سه پهٔ اسلام

ځان پهٔ صدق د حضرت لره غلام

شفاعت ئې هر عاصي درنځ علاج دے     پهٔ سر کړے ورته خدائے دلولاک تاج دے

---

# غزل در نعت سرورکائنات علیه اکمل التحیات

---

دوست محبوب د پاک اکبر زموږ رسول دے

خاص مقبول درب پهٔ در زموږ رسولؐ دے

تمامي پېغمبران دوستان د خدائے دي

پهٔ کل وارو کښې بهتر زموږ رسولؐ دے

مشهور ابوالبشر بابا آدم دے

د جهان خیرالبشر زموږ رسولؐ دے

نازولي دالله تمول مرسلان دي

زيات د وارو نازپرور زموږ رسولؐ دے

هر نبي پهٔ اُمت خپل بهٔ ډېر مشفق وو

مشفق تر زيات دپدر زموږ رسولؐ دے

هم اول هم پهٔ اخر باندې بالهٔ شي

د خاتم پېغمبر زموږ رسولؐ دے

ملا بسته ئې پهٔ کمربند د شفاعت ده

شافع کل چې سخت محشر زموږ رسولؐ دے

لکه نمر هسې خورشوے پهٔ کل ملک کښې

نمایان پهٔ بحرو بر زمونږ رسولؐ دے

دلیران پیغمبران پهٔ دربدر دي

دلیرانو نه دلیر زمونږ رسولؐ دے

ترقیامته بهٔ روښانه ددهٔ لار وي

صاف روښان لکه د نمر زمونږ رسولؐ دے

یوه پښه پهٔ زمکه بله پهٔ عرش پورته

هسې تېز لکه نظر زمونږ رسولؐ دے

**شاد محمدؐ** هم غلام د رسولؐ اوسه

چې داد کړ غریب پرور زمونږ رسولؐ دے

---

# فصل دے اولسئم پۀ بيان بزرک دا آيت
# د آمَنَ الرَّسُولُ کښې

عالمان جمهور د اهل د تفسير ټول ‌‌ ‌‌ پۀ دې حکم متفق دي کل يا ټول
چې هر کله پاک حضرت خير البشر ‌‌ ‌‌ پۀ مقام د قرب داخل شۀ د اکبر
او سلام د حضرت جل سبحان ‌‌ ‌‌ وا ورېده پۀ غوږ رسول آخرزمان
او مرتبې علم اليقين نه هغه حين ‌‌ ‌‌ ور سېد درجې ته د عين اليقين
او شاهد ده شۀ دا غيبي ايمان ‌‌ ‌‌ لکه دا خبر راکړے دے سبحان

آمَنَ الرَّسُولُ بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْهِ مِنْ رَّبِّهِ [۳۷۶]

نو هر کله پاک الله چې پۀ ايمان ‌‌ ‌‌ گوا هي د رسول خپل ورکړه رحمان
نو حضرت خپل امت د ځان سره ‌‌ ‌‌ پۀ ايمان کښې يې شريک کړه دا ښکاره

## وَالْمُؤْمِنُوْنَ [٣٢٢]

او دا دنګې وو مقام چې شهادت
پهٔ راستیه پهٔ کښې کېدهٔ شهٔ نهایت

شهادت دده هٔ پهٔ دې ځائے کښې ضرور
او سره د پاک الله رحیم غفور

نهٔ وه هیڅ وصل کېدلو وجه بله
بې له دې وجهې لیدلو وجه بله

روایت دے میل چې پاک رب ذوالجلال
د حبیب خپل نه یې وکړو دا دنګ سوال

چې آمن الرَّسُولُ یعني ایمان
دے راوړے رسول خپل پهٔ ماعیات

نو رسول وُوئیل هو والمؤمنون
كُلٌّ اٰمَنَ بِاللّٰهِ [٣٢٣] پهٔ مضمون

تو الیک المصیر پوره دې مراتب
وُوې هسې پاک سرور خیرالبشر

یعني او ایمان راوړے دے ماصاف
او هم داړو مؤمنانو تاف تر قاف

پهٔ همه وارو احکامو ستا ثواب
دا مدّه نه راته وُشهٔ دا خطاب

## قَدْ غَفَرْتُ لَکَ وَلِاُمَّتِکَ

پهٔ تحقیق سره ته وبخښلې ما
او هم وبا خښنهٔ اُمّت مې وارهٔ ستا

نکته دا ځائے ده چې صدق صداقت
پهٔ دروغونهٔ بدلیږي د حضرت

صدق نهٔ پهٔ کذب کیږي درسول
مقبول نهٔ کیږي مردود د حق قبول

صدق هیچرې پهٔ کذب سراسر
نهٔ بدلیږي د حضرت خیرالبشر

او د بعضو قول دا دنګ دے تیار
چې دا دواړه قوله دي درب ستار

پهٔ دلیل د عطف د والمؤمنون
معطوف حکم لري صاف پهٔ دا مضمون

معطوف حکم د معطوف علیه پهٔ شمېروي
نو هم دا دلیل زمونږ د پاره دېروي

لکه نښته دے زوال چې د ایمان
د حضرت رسول سرور اخرزمان

او دا رنګ د مومنانو وي هم حال
دا یمان د دوئ به را نشي زوال

بل پهٔ دې کښې واڅئ دا دي اشارات
هر چې وکړي چې صفت د چا پاک ذات

نو بیا خپل صفت کړه لره احد
نهٔ کوي نهٔ رسوي څهٔ ورته بد

څوک د چانه شکر وکړي برابر
نهٔ کوي ترې نه ګیله بیا سراسر

او بیا وُوئیل الله رحیم کریم
دا ایات شریف پهٔ صدق مې تسلیم

## كُلٌّ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَمَلٰئِكَتِهٖ [۳۴۹]

او پهٔ دې کله صاف ظاهر عیان
خدائے جدا کړل مومنان او کافران

د مکې چې ملائیکو ته ضرور
دوئ وئیل پهٔ ورته لونه د غفور

او بیا ووئیل الله رحیم ستار
كُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ سره قرار

نو پهٔ دې کلیمه پاک الله ودود
کړل جدا ئې مومنان ترسا جهود

ترسایانو جهودانو نه پاک خدا
مؤمنان ئې تردې دواړو کړل جدا

چې پهٔ بعضو کتابونو پهٔ ایمان
به داوړو پهٔ بعضو ئې نهٔ راوړه ځان

پس له هغې پاک الله رحیم پاک ذات
ووې هسې پهٔ دا شان شریف ایات

## لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْ رُّسُلِهٖ [۳۵۰]

دا یو شکر دے چې پاک الله احد
د اُمَّتْ نه کوي خدائے د محمدؐ

چې دوئ ووئیل چې مونږ له دا بنائي
انبیاؤ منځ کښې سره و جدائي

مونږ پهٔ ټولو دے داوړے ایمانونه
درو غرض نهٔ وا یُو یو ته هم بالکل

پس له هغې ووئیل الله رحیم — دا ایات شریف په صدق مې تسلیم

## وَقَالُوْا سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا ۳۵۱

واوُرېدل مونږه په غوږ دزړه په نیت — او په زړو نو خپلو کړو متابعت

یا دا رنګ وایو چې اے خدایه ستاره — تا په مهر کرم خپل سره بېشماره

په کرم مهربانۍ سره صفت — تا زمونږ وکړه دحده نهایت

مونږ ددې خود بینۍ خپلې سره سم — حکم ستا وړو په کتبې نشته زیات وکم

او کوو په بندګۍ مونږ اقرار — چې هرچند کوي صفت زمونږ بسیار

لېکن مونږ به پښتې دحد دبند ګۍ — بهرنه کړو به هرګز په زندګۍ

ستا په دې ستائش نه شو به مغرور — بیا په هسې شانې ووئیل غفور

## غُفْرَانَكَ رَبَّنَا ۳۵۲

عین وګوره درب مهربانۍ — لایزال دلم یزل بنه لا ثانی

چې دخپلو بند ګانو نه سبحان — غواړي نه شکر وکړي څه عیان

بند ګانو نه یوازې عبادت — غواړي نه چې شکر کړي دزړه په نیت

پس که وکړي یو ګناه دحده بد — نو ګیله ورځنې نه کا پاک احد

چې هر کله د ګناه نه دوئ ضرور — چې بخښنه وغوښته درب غفور

نو هم دوئ ې په بخشش سره کړل غوړ — دا کرم فضل پرې شوے د اکبره

استغفار ددوئ الله رحیم پاک ذات — خپل کتاب کښې ئې ظاهر کړه په ایات

په کتاب کښې ظاهر کړه توبه غوښته — او ګناه د دوئ ئې ولرله پسته

په کمال دوستۍ وکاندې دلالت — شفقت بسیار په حال او په نسبت

د امت د محمد نبي حضرت ... کهٔ ترې غوښتے ئې وي چرې عبادت
بندګانو به د شکر د دولت بخت ... حق تعالیٰ نه به موندهٔ دوئ به پهٔ وخت
او پهٔ وخت د عبادت د پاک اکبر ... موندهٔ خدائے نه به د شکر دولت بر
او کوله چې ګناه بنده ضرور ... نو د شکر ګذارئ بنده معمور
نهٔ موندهٔ به ئې خدائے نهٔ دا دولت زړه ... په ګناه کړه ئې ګله کړې د بنده
پهٔ ګناه ئې د بنده ګله کوله ... نو ستاربهٔ ورته چا نهٔ وو وئیلے
ښکاره شوے به د دهٔ نهٔ وو معلوم ... دا الله دستارئ بهٔ چرې نوم
نو زمونږ سره ئې دا رنګ مهرباني ... وکړه خدائے پهٔ کرم فضل لاثاني
د هغه بندګانو خپلو سم ... چې ظاهر شي پرې کمال فضل کرم
لکه وائي پاک الله رحیم سبحان ... بندګانو خپلو وا روته دا شان
چې اے واورئ بندګانو دا د سره ... ماته ستاسو دے هم دا عبادت غوره
بندګانو زما ستاسو نه دا قدر ... عبادت غوره کوم دا قدر صدر
چې محتاج کنئ خپل ځان تاسو وجود ... دا رنګ نهٔ وائي لکه وائي دا جهود

## اِنَّ اللّٰهَ فَقِیْرٌ وَّنَحْنُ اَغْنِیَآءُ ۳۵۳

جهودانو به وئیل چې رب رحمان ... دے فقیر دے او مونږ یو همه غنیان
الله وائي چې پهٔ دې وئیل سره ... فقیر کړه جهودان ما کل سره

## وَضُرِبَتْ عَلَیْهِمُ الذِّلَّةُ وَالْمَسْکَنَةُ ۳۵۴

بلکې تاسې پهٔ خپل ځان باندې ضرور ... فقیري ثابته کړې ده حضور
فقیري خپله مو درکښې زما ورانه دې ... دهٔ راورې ماته تاسې لاندې باندې

پهٔ بدل دگدای کښې یادشاهت ددکړه تاسوله د ملک مې د جنت

وَاِذَا رَاَيْتَ ثَمَّ رَاَيْتَ نَعِيْمًا وَّمُلْكًا كَبِيْرًا ۝ ۳۵۵

پس له هغې وو ښيل الله قدیر دا ايات شريف چې دا ځائے دے تحرير

وَاِلَيْكَ الْمَصِيْرُ ۝ ۳۵۶

ستا پهٔ لوري مو باز گشت دے ستا مووا ک موږه ځان وته پاک بوځه نه ناپاک

پس له هغې پاک الله کريم سبحان دا ايات دے فرما ئيلے پهٔ دا شان

لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا ۝ ۳۵۷

نهٔ به دي خدائے تکليف پهٔ هيڅ نفس اوڅ مګر به دي ددهٔ پهٔ قدر د طاقت

بيلکي دا ايات د پاک الله تواب ددعا د رسولؐ کړے دے جواب

بيلکي وو ښيل پاک ذات والاصفات هسې شان الله سبحان شريف آيات

رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَا اِصْرًا ۝ ۳۵۸

پس له هغې پاک الله رحيم سبحان دا ايات وه فرمايهٔ پهٔ هسې شان

## لَهَا مَا كَسَبَتْ ۳۵۹؎

او چې مراد ترې نه طاعت دے برابر ۳۶۰؎ پس له دې وو شُیل پاک الله اکبر

## وَعَلَيْهَا مَا اكْتَسَبَتْ ۳۶۱؎

او چې مراد ترې معصیت دے په هر حال ؎ بې پروا وُلاړهٔ خپل ځان ذوا لجلال

بندګانو خپلو فعل نه ضرور ؎ بې پروا وُلاړهٔ ځان ترې رب غفور

او هم وُيُ و يُل کهٔ چرې عبادت ؎ کړئ هم ستاسې د پاره دے خېرت

کهٔ ګناه کوئ هم ستاسو ده د پاره ؎ او ضرر نفعه يُ هم د حد بېشماره

ګرځېد وسکې پهٔ لورستاسوده نه ماته ؎ خېر او شر نفع ضررئُ دے کل تاته

پس د هغې حکم وکړ يادسولهٔ ؎ ده تن شپه شپه د بخښش زما قبوله

د بخښش شپه ده زماله ماوُغواړه ؎ چې زهٔ دد کرم کهٔ څهٔ غواړې هغه واړه

نو حضرت وُويُل يارب سبحانه ؎ زهٔ کوم له تانه دا درخواست منّاته

## رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَا إِنْ نَسِينَا أَوْ أَخْطَأْنَا ۳۶۲؎

اے خاونده داتهٔ مونږ ته کړه عطا ؎ نیسه مهٔ مونږ پهٔ ګناه هېره خطا

پهٔ خطا سره ګناه زمونږه هېر ؎ نیسه مه کهٔ څهٔ زمونږ وي لږ کهٔ ډېر

نو الله رحيم کريم قديم توّاب ؎ خپل محبوب وته يُ وکړ دا خطاب

چې خطا او هېر مې تاته سلامت؛ ؎ وُبا خښهٔ ماته سَرَه ستاد اُمت

ستاده سواله مې پرې زيات درېم کرم ؎ وکړ دا چې يو ګناه پهٔ زور ستم

يو ګناه زبرد ستي سره ترې خپله ؎ و شي هغه مې هم دوئُ ته و بخښله

پس د هغې بنه دا ووې قدسي ذات ؎ پهٔ دا شان سبحان رحمان شريف صفات

## رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَيْنَا إِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهُ عَلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِنَا [٣٦٣]

اے خداونده چې هغه بارونه ګران
په مونږ مه ږده د رومبو امت په شان

شریعت زما په شان د شریعت
د دوي مه سختوه وکړه عنایت

نو له دغه د الله رحیم تواب
خپل محبوب ته په دا شان وه شه خطاب

## وَيَضَعُ [٣٦٤] عَنْهُمْ إِصْرَهُمْ [٣٦٥]

یعني دوي نه مې بارونه ګران کړه دور
روایاتو کښې راغلي دا ضرور

او هغه بارونه ګران شریعتونه
چې ترې لاندې پخواني وو امتونه

پاک حضرت زمونږ الله ته به بیل بیل
عرض کاوه ورته یا خښه به لم یزل

څو حکمونه د هغونه دا دي صاف
چې به لاړه امتیان پرې وبې خلاف

نو په حکم به د خدائے غني تواب
په تن او د بعضو بعضو به په باب

هسې شان به وو لیکلي چې بې ګناه
دې بنده کړي ده دا رنګې ګناه

سزا دا وه چې په خپله ته خپل ځان
دوژنه یا ځان ستي کړه په نیران

بل بار ګران دا وو د دوي چې به پوشاک
چرې شه به ترې پلید خراب ناپاک

بدلې نه به پاکېده چې پرې کولو
پاکېده په پرې کېده نه په وینځلو

بل هم چا چې به کنځل د مور و پلار
چا ته وکړل مرګ به شه ورله پکار

هغه دم به دده قتل شه واجب
او هم چا چې په دروغ بې مناسب

ګواهي په دروغ وکړه دروغ خاص
نو د قتل به یې وو ورله قصاص

لمونځ د دوي بې مسجده په بل ځائے
نه کېده نه قبلوه به غني خدائے

بل هرگز نهٔ وو دوا د دوئ پهٔ دین  تیمم اوبیله دا وکړه یقین

چې زکوٰة د دوئ پهٔ مال کښې سراسر  څلورمه حصه وه وکړه باور

لکه دوه سوه دو پو کښې سم پهٔ شمار  وو زکوٰة پنځوس روپۍ پکښې تیار

بلکې دا چې د دوړې میاشتو کښې سم  پس د مونځ دما سخوتنه هغه دم

شهٔ پهٔ دوئ بهٔ هم جماع او خوراک بند  تر هغې چې بل ما ښام بهٔ شهٔ څرګند

چې دا خل به ئې ماښام شهٔ پهٔ وطن  اسوده به ئې پهٔ خوراک جماع شهٔ تن

او نماز د ماسختن چې بهٔ ئې ادا کړ  د خوراک او د جماع به ئې ځان جدا کړ

نو د بهٔ دوئ شوهٔ پس د مونځ روژه دار  ان تر بل ماښام مه وو به انتظار

چې به ئې وخوړه روژه چرې پهٔ هېڅ  نو هغه روژه به ئې شوه باطله دېڅ

نو حضرت چې د دا د تګ د تخفیف سوال  د یارانو ګرانو کړ د ذوالجلال

پاک الله ورته پهٔ مهر پهٔ کرم  عفوه کړل به ورته واړه هغه دم

او امت د دهٔ ئې د دې ګرانو یارانو  کړل ازاد ئې د پهٔ خوا امت کارونو

## وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ تَعَالیٰ وَحْدَهٗ ٣٦٦ع

---

پس د هغې پهٔ درګاه د ذوالجلال  پاک سرور وکړ پهٔ هسې شانې سوال

## رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهٖ ٣٦٧ع

---

اے خدایه او نده مهٔ ږده ته پهٔ مونږ باندې  طاقتونه چې زمونږه وي پرې لاندې

درا ښکوئې چې مونږ نهٔ لرو طاقت  د هغې یارانو مونږ کړه سلامت

نو بزرګانو د دین دا دي فرمائیلي  پهٔ سرستر ګو مې پهٔ صدق دي منلي

چې دا یار د جدا له نبي سرور  دے یاد کړے پهٔ کښې نښته لرو بر

ای خداونده موږ د خپل فراق په یار — موږه مه ازخته کوه په هسې کار
سبب دا چې دوست د یل دوست د هر غم — او بلا فتنې ته ځان نیسي هر دم
او یو یار نشي را بښکلی د فراق — د فراق د یار د لاندې وي نا چاق
ډیرو ډیرو عارفانو برابره — دا دعا کوله اې خدایه اکبره
موږه مه کړه په فراق خپل گرفتار — نوره هره بلا وي که صد هزار
که کوې نو کړه نازله په موږ نوره — بلا بې د فراق خپل نه نوره گوره
لکه خدای ته لره شریک په هیڅ شان نشته — بې فراق بله بلا په جهان نشته
لکه حسې دي وئیلي رب رحیم — په تصدیق د زړه په صدق مې تسلیم

## لَا يُكَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا ٣٦٨

چې طاقت هر کله تاسې له د یار — د فراق نشته زما طاقت قرار
را به نه ولم هرگز په تاسو باندې — تا سو نه به کړم هرگز دې بار لاندې
بیا یې وَاعْفُ عَنَّا ووې اظهار — یعنې عفوه کړه ته موږ ته هغه کار
هر چې تا ته ناپسنده وي خراب — نو دا را غي دا لله د در جواب

## يَعْفُوا عَنِ السَّيِّئَاتِ ٣٦٩

تو الله عفوه د کل گناه په جمع — څکه یاده کړه چې دا ولوئ طمع
چې هم پوه شئ دا چې هیڅ گناه ضرور — دهغه عفوې نه ده بهر دور
بیا یې ووئیل واغفر لنا ستیال — یعنې اې خداونده ته یې ذوالجلال
چې دواړو گنا هونو موږ ته غوته — عفوه وکړه نو یې ته کړې خدا پته
چې پرده زموږ ونه شلیږي دسره — بې له تا ته الٰهي ربه اکبره

پهٔ قبیح بد عملو نو برابر — زموږ بې له تا بل څوک نشي خبر
نو د دره د الله رب الوهاب — راغې هسې پهٔ دا شان سره جواب

## إِنَّ اللهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا [۳۷۰]

پس د هغې هغه دم هغه ساعت — پهٔ دا شان وو ویل هسې پاک حضرت
وَارْحَمْنَا یعني وکړه پهٔ موږ باندې — رحم خپل د فضل نه کړه موږ لاندې
لکه موږ ته ګناهونه چې بې شماره — وُ بخښل او پټ دې کړل زموږ د پاره
ګناهونه زموږ کل واړه أَمَان — پهٔ موږ وګرځوه روح او هم ریحان
نهٔ پوهر او جراحت زخم سخت تر — نو جواب راغې د پاک الله اکبر

## [۳۷۱] وَكَانَ بِالْمُؤْمِنِينَ رَحِيمًا [۳۷۲]

کهٔ مې نوې کړې رحم پهٔ امت ستا — هلاک شوې بهٔ امت وُه امانت ستا
او د کَانَ کلمه یې دې د پاره — وُ ویله چې د پاک پروردګاره
د ازل نه وو پهٔ دې امت رحیم — چې پېشوا یې کړ زموږ رسول کریم
اے رسوله نه چې ستا دعا مطلق — زهٔ رحیم کرمه پهٔ دوئ د دوئ پهٔ حق
بلکې وو زما پهٔ دوئ باندې رحمت — ته چې یې ماته کړې ددې دعا پهٔ نیت
اے رسوله پهٔ دوئ باندې عنایت — زما زیات دے تا نه هم پرې شفقت
دے یو وخت ستا شفقت پهٔ دوي ضرور — او رحمت دې ازلي زما غفور
بلکې دکړ وخت هم ستا دا رنګې کار — چې ازل زما وګوره برقرار
څرنګ کار کوې زما ازل فی الحال — او ستا وخت دا رنګه کار وکړ سنبال
اے زما دوسته زما پاکه رسوله — پهٔ درګاه زما د هر چا نه قبوله

پهٔ هغه وخت چې تهٔ نهٔ وې برابر زهٔ د پاره د دوئ وُمه سراسر

اوس چې تهٔ د دوئ پهٔ حق کښې ئې ضرور زهٔ به ولې د دوئ نهٔ یمه غفور

یا رسوله تهٔ د خپل امت د پاره هسې کس ئې چې خبر شې ددې کاره

چې ما دوئ لره ورکړے ئې اظهار او زهٔ دوئ لره نه هغه یم تیار

چې تا دوئ لره ورکړے یم مدام دے له مانه دا روان دا انتظام!

او زهٔ هغه تا چې دوئ لره! زهٔ ورکړے یم تا دوئ لره کره

او تهٔ دوئ پهٔ سبب مونده ئې له ما نهٔ چې دوئ یمه مونده زهٔ له تا

هغه څوک چې دوئ له مانه دے مونده د هغه پرې شفقت دومره دے بشکلے

او چې زهٔ ئې پهٔ خوده بې نیازه خپله یم مونده زهٔ پهٔ خپله نهٔ د بله

نو وګوره چې زما بهٔ پهٔ څهٔ شان شفقت وي بیا ئې وُوې دا عیان

# أَنْتَ مَوْلٰنَا [٣٧٣]

---

یعني اے حافظه هم ناصر زمونږه اے رحیم کریم ستار قادر زمونږه

د درګاه نه دا ستا سبحان تواب هغه آن پهٔ هسې شان دا غے جواب

# ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ مَوْلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا [٣٧٤]

# وَاَنَّ الْكٰفِرِيْنَ [٣٧٥] لَامَوْلٰى لَهُمْ [٣٧٦]

---

بیان ئې ووې دا سید المرسلین فَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ [٣٧٧]

جواب را غے د دوستانو پهٔ دربار بدلې نهٔ دے پهٔ طلب بیان ئې دا کار

پهٔ کرم زما واجب دے سراسر د دوئ فتح او نصرت پهٔ ما اکبر

لکه هسې دي وئیلي رب رحیم
په تصدیق د زړه په صدق مې تسلیم

## وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِينَ (۳۷۸)

هم صاحب د اشارت په دې دعا کښې
چونکه ده ښکاره کړې مدعا کښې

چې حضرت زموږ رسول اخر زمان
دې دُعا کښې یې چې د خپل ځان

یک تنها نه دے خاص کړے د ځان خپل
ځکه دا چې نه دي کړي یې دا وئیل

## وَاغْفِرْ لِي وَارْحَمْنِي

یعني و بخښه ته دوئ پاکه سبحانه
رحم وکړه ته په دوئ د هره شانه

نه د دا دواړه دي وئیلي پاک سرور
او له دے سببه ځان کړه یې خبر

په دې دواړه امر کښې یه پاک حضرت
په دعاکښې یه جدا وو د امت

خپل امت ته یه رسول اخر زمان
په دعاکښې جدا شوے وو عیان

بلکې ځان خپل یې په هسې مدعا کښې
د اُمت خپل سره خلط کړ په دُعا کښې

اشارت وو دده دې ته چې اکثر
که ظاهر دوئ سره نه یم مقرر

مگر یم د دوئ سره په شفقت
هم کرم چې خدائے په ماکوي رحمت

دوئ هم ما سره شریک دي په هر دم
چې په ماکوي رحیم هر کرم

هر سختي چې دوا نه لري په ما
په دوئ هم رحیمه مه لره روا

هر دولت او سعادت چې په ما باندې
کرم خپل کوې دوئ هم کړه ترې نه لاندې

دوئ زما سره برې کل کړه خبردار
لکه دا ابیات په مدح د روښیدار

پیشوا گورئ د همه پیغمبرانو
د گناه عذر پذیر دے د خوارانو

که دا ستا په شان وي بل هغه هم ته یې
ستوده په دا بڼه د کل هم ته یې

د ټولو ګنهګارو دې کلید ټې — نېکو بد د دې را ښکاره کړه نیک مزید ئې
هم یو څیز چې تحفه تاله د رب درکړې — تا مونږ ټولو ته پیشکش هغه دا وړې
چې په زړونو د خاکسارو ته امین شوې — څکه زمکې ته را کوز د عرش برین شوې
چې زمونږ زړونو د پاره شولې ښکته — شهٔ هزار صلوٰت سلام په تا رحمة
دا درود دې فراوان له ما بحد وې — پیوسته دې در روان ستا په مرقد وې
او س یوه لطیفه واوره په کمال — پوره ښهٔ امید وارئه سره په حال
نو په دې د عا کښې واوره برابر — دا دې نقل چې حضرت نبي سرور
دې سوالاتو کښې پنځه څیزه د پاره — خپل امت له طلب کړې له ستاره
اول عفوه دویم واړې مغفرت — او رحمت او ولایت پنځم نصرت
عفوه یو مغفرت دوه دریم رحمت — او پنځم نصرت څلرم واړې ولایت
او اوله ازادي د عذابونو — او بخشش د ګناهونو، د عیبونو
او رحمت په ټولو واړو ګنهګارو — او هم واړې په کل واړو خطا کارو
ولایت هم په اسلام کښې مقرر — او په ټولو بخششونو سرا سر
او فتح په د شمن باندې د پاسه — د دې کل سوالونو هسې سم دلاسه
جوا بونه ئې په مراد سره کامل — پاک حضرت ته د درګاه نه شهٔ حاصل
د جنابه د رب را غلل هغه شان — چې رضا وه څهٔ د دوست د پاک سبحان
هغه شان وکړل الله رب المنان — لکه شول چې په دا شان سره بیان
پس د هغې حضرت چپ په دا جواب شهٔ — سر ئې ښکته کړ پرې دا د رب خطاب شهٔ

## یَا مُحَمَّدُ اِرْفَعْ رَاْسَکَ

اے رسوله محمده سر کړه پورته — ولې سرخیل د کړې ښکته لورته
سر کړ پورته نو زمونږه پاک حضرت — د رب ته د دې شهٔ په وصل هغه ساعت

ای خداونده په دې امر کښې هر دم        یم په فکر چې دی دا محض کرم
چې تا وکړ په ما باندې سراسر        دا زما د اندازې نه دی بهر
تو الله والا صفات او قدسي ذات        په دا شان سره جواب وکړ اثبات

## فَعَلتُ[۳۸۰ع] ذٰلکَ بالفضلِ[۳۸۱ع] لا بالمکافات

دا کرم لطف چې وکړې مې په تا        محض وکړه ته دا فضل زما
او نه ستا په بدله دی د عمل        لکه نن شپه چې مې تا سره یو ځل
کرم لطف چې مې وکړ په دا شان        نو په ورځې د قیامت به په میدان
عرصات کښې به په ورځې د قیامت        تا سره به هم تمام به ستا اُمت
په دا رنګ معامله به په کمال        کرم لطف به ځېل وکړم په هر حال
ای کریمه چې په سرای کښې د وجود        لاس دې پرانست په کرم لطف د جود
مونږه ستا یو ګدایان ته مو پادشاه یې        هم د وارو جرم بخش او عذرخواه یې
مونږه کل یو جفاکار ته وفادار یې        د دې کل عیبونو ته مو خریدار یې
مونږ یو واړه جفاکار او ګنهګار        و نما ځلو په کرم تا وفادار
رحیم سره کینه نه وي لایقه        علامه د کرم ده دا تل واثقه
په ضعیف باندې قوي نکړي ستم        په ګدا اکړي شهنشاه مدام کرم
ستا مدام لطف وکرم او سخاوت دی        خاص زمونږ د ګناهونو مغفرت دی

**شاد محمد** که ګناه دې ډېر بسیار دی
خوف دې نه دی چې الله دې پاک غفار دی
چې رسول دې محمد خیر البشر دی        خاص استازی دا الله خالق اکبر دی

# غزل در محمدت عالیحضرت رسول کریم صلی الله علیه وآله وسلم

۳۸۲

چې بللې يې په دوستنامه جليل — تل دې وو مصاحب کښې جبرئيل

ستا د خدای سره يو حکم دے بل نه دے — ستا د حکم به کافر نه کړي تعميل

هر چې ستا من کړي ټينګه پرې يې شته دي — هاله نوش به کاندي آب د سلسبيل

لا د خدای او د رسول دده پوه ده — که شک کاندي څوک دے ځان باندي بخيل

هر ملک دې شا هتري ته اميدوار وه — فخرياب دې په زين پوش شه ميکائيل

هزار کاله يې دا سوال وو له بنه خدايه — مشرف په در خدمت شه په تعجيل

چې نازل قرآن شريف الله په ستا کړ — نو منسوخ يې کړ تورات زبور انجيل

شفقت مهربا خد ته چې ستا خيال کړي — که په نفس خپل وي ظالم نوشي اميل

سفيد رويه دي چې ستا په لار وي تللي — د غيرتلونکو به مخ تور دي لکه نيل

ستا معراج کښې ملک کل د خدمت خلاص شو — شپېلۍ لرې کړه د لسوا سرافيل

د جاندارو د ارواح د قبضو لو — لاس په سرشه په دا شپه کښې عزرائيل

کل نبيان دي مقتديان شو ته امام شوې — که آدم[۱] عيسی[۲] موسی[۳] وو که خليل

نا فرمانه به له تا نه څوک اوخوري — فرمان وړونکي به وي ستا له شمس شکيل

شاد محمد صدق قسم کړه خدای عافي دے
که ګناه لري صغير[۱] کبير[۲] قليل[۳]

# فصل د اتلسم په بیان دے

## قوله تعالیٰ فَاَوْحیٰ اِلیٰ عَبْدِهٖ مَا اَوْحیٰ ه [۳۸۳]

---

یعني وحي وکړه پاک پرور دګار — په بنده خپل چي دے مراد نبي روښدار
یعني دوست د پاک الله رحیم احمد — چي موسوم دے محمّدؐ محمودؐ احمدؐ
ورته یې وویل هغه چي یې وویل — او ظاهر یې نهٔ کړه فهم نه د بیل
چي څهٔ یې وویل له دې سبب اکثر — د دوستانو منځ کښې سرپټ دے بهتر
د مقام دده د پاک پرور دګار ! — ذکر کړے دے ویلي دي ستار

## قَابَ قَوْسَیْنِ اَوْ اَدْنیٰ [۳۸۴]

---

پهٔ مقدار د دوؤ لیندو یعني کمان — یا کمتر او کیفیت دده بیان
د کمي مقام یې "اَوْ اَدْنیٰ" دے سم — چي ښکاره یې نهٔ کړ چا ته زیات و کم
او هم دا د نږدې پربښوده مهمل — ظاهر نهٔ کړ دا زیو بل ته لم یزل
او احوال د رسیدو د پاک حضرت — بلکې سدرالمنتهیٰ ته پاس او چت
د لیدو د عجائبا تو سراسر — دده یې وو پاک الله رحیم اکبر

## إِذْ يَغْشَى السِّدْرَةَ مَا يَغْشَىٰ ۳۸۵

او بیان یې وُساتهٔ پهٔ کښې نوریږ ‌ ‌ ‌ د خلوت رازونه یې ذکره ظاهر غوټ

پهٔ خودلو د دیدار کښې هم سبحان ‌ ‌ ‌ د پښتو الي طریقه الله رحمٰن

دهٔ پرې ښېښې دا قدرې رب رحیم ‌ ‌ ‌ فرمائیلي دي پهٔ صدق مې تسلیم

## لَقَدْ رَأَىٰ مِنْ آيَاتِ رَبِّهِ الْكُبْرَىٰ ۳۸۶ ۳۸۷

---

پهٔ کولو د خبرو کښې دا شان ‌ ‌ ‌ فرمائیلي دي دا پاک الله سبحان

## فَأَوْحَىٰ إِلَىٰ عَبْدِهِ مَا أَوْحَىٰ ۳۸۸

---

عالمانو دي د پاره کم و زیاتو ‌ ‌ ‌ په تعین کښې د دارسنګي کلماتو

دخل نهٔ دے کړے او پهٔ دي راز باندې ‌ ‌ ‌ بدکې مُهر د پښتو الي پهٔ ساز باندې

لګېدلے دے پهٔ دې باندې عیان ‌ ‌ ‌ چې پرانهٔ نست پهٔ کُنجیې د بیان

او هم بعضې روایات صحیحه د پر ‌ ‌ ‌ چې پهٔ صاف نظر انور د حده تېر

او د بعضې عالمانو سراسر ‌ ‌ ‌ رسېدلي دي د دوئ پهٔ صاف نظر

پهٔ سوزن سره هغه یې د تقریر ‌ ‌ ‌ دي راوستي پهٔ لړه کښې د تحریر

هغه تولونه څلوېښت قوله تیار ‌ ‌ ‌ دي کتاب کښې برابر پوره پهٔ شمار

صاحبانوته د عقل کامل سم ‌ ‌ ‌ عرض کېږي د قلم پهٔ زیر قدم

اول قول قبلېدل دي برابر ‌ ‌ ‌ د پنځو وقتو نمونځونو مقرر

ثوابونه فضائیل او ثمرات ‌ ‌ ‌ لکه دے د دوئ ثواب د حده زیات

پس له دې نه بهٔ شي ذکر برابر ‌ ‌ ‌ إن شاء الله تعالیٰ وي د مکرر

دوم قول پهٔ مراد خپل سره بهتر دے ‌ ‌ ‌ د خاتمو صاف د دې سورة بقر دے

لکه تېر شو اشارات پهٔ دې مضمون ‌ ‌ ‌ لکه تېر شي پهٔ سبا باندې پرون

دو بِم قول دا دے صاف ظاهر عیان
په حدیث کښې د رسول اخرزمان
وارد شوي دي په دا شان دي راغلي
چې حضرت رسول دي هسې فرمائیلي

## رَأَيْتُ رَبِّيْ فِيْ أَحْسَنِ صُوْرَةٍ ۳۸۹ فَقَالَ ۳۹۰ يَا مُحَمَّدُ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ فِيْمَ يَخْتَصِمُ الْمَلَأُ الْأَعْلَى ۳۹۱

یعني وُې لیده ؤ پاک پروردګار !
نهایت په ښې مانند صورت بسیار
یعني ډېر په نیک ترین صفت بحد
بلکې ووې ماته هسې پاک احمد
یا رسوله محمده پیغمبره !
چې جګړه کوي ملک په څه خبره
یعني واړه ملائیک د هفت آسمان
څه جګړه کوي په څه باندې امان
نو ما ووې ورته اے خدایه ستاره
ته عالم یې دانا تر یې زیات د شماره
ماله نښته دے په دا باندې خبر
پاک الله ته به معلوم وي سراسر

## فَوَضَعَ كَفَّهُ بَيْنَ كَتِفَيَّ فَوَجَدْتُ بَرْدَهَا بَيْنَ ثَدْيَيَّ

پس د هغې کېښنه پاک پروردګار
کف د ست د عنایت د حق بسیار
د اوږو د دواړو په منځ په هسې شان
زما کېښنهٔ راته واړه شول عیان
چې اثر د نهایت هوس سُرور
د دواړو تو په منځ کښې شه زما ظهور
او هر څه د آسمانو نو د زمین
دو حالات غائب څیزونه هغه حین
تول ظاهر شو راته واړه برابر
پس د هغې راته ووې پاک اکبر

## یا محمد صلّی اللّٰه تعالیٰ علیه و اٰله وسلّم

## هل تدری فِیمَ یَختَصِمُ الملاء الاعلیٰ [۳۹۲]

یا پوهېږې چې په څهٔ بانديې تمام
ملائیک جګړه کوي پهٔ څهٔ کلام

پس مې وُوې ورته اے ربّهٔ رحیمه
ګناهونو کښې خبرې کړي قدیمه

کفاراتو د ګناه کښې کل زمان !
ملائیک سره پهٔ دې کښې دي ګویان

یعني څهٔ بانديې بخښلې شي ګناه
چې پهٔ څهٔ به د ګناه مومي پناه

راته ووې دا اللّٰه رحیم اکبر
هسې شان الله رحمان دا مقرّر

## ما الکفارات

راته وُوې دا اللّٰه رحیم پاک ذات
چې څهٔ څیز دے د ګناهو کفارات

نوما وُوې ورته هسې هغه دم
لکه هسې پهٔ دا قسم سرَه سم

## اسباغُ الوضوءِ فی البردات والمشی بالاقدام الی الجماعات وانتظار الصّلوٰةِ بعد الصّلوٰة

پېتهېدل د ګناهونو برابر
پهٔ درې څیزه سره کېږي مقرّر

اول دا چې رسول ابد ست کښې آب
هر محل خپل ته پوره پهٔ خپل حساب

او پهٔ وخت کښې د یخنۍ سردي دڅې
محلونه خپل پوره چې او بهٔ مومي

او و نځٔل وي برابر د هر اندام
چې پهٔ وخت کښې دابدست پهٔ کمال تام

دي وینځل په آب د واړو اندامونو — دا سبب دے د بخشش د ګناهونو

دو هم دا دے تلل پیاده په جماعت — د نمانځه د پاره صاف د زړه په نیت

دریم دا کول دي مونځ ته انتظار — چې یو وکړي خیال د بل لرې تیار

چې ادا کړي یو وخت مونځ چې برابر — په راتلونکي نماز وخت کوي نظر

چې هغه به ګذاره هم ضرور — او هر څوک چې په دې دړې امرومذکور

چې محکم شي نوړ وندون به يې بسیار — په بنه وجه نیکه کړي وي قرار

نیک نامي سره له دې جهان ویجاړه — بهترین سره بهترته به شي لاړه

لکه دے چې په هغې ورځې د مور ه — پید اشوے زیږ یدلے وي نوګوره

دي داوړي دا په بل یو روایت — چې په منځ کښې د اوږ و د پاک حضرت

په ورغوي چې دلاس د عنایت — دا دلله شه مشرف هغه ساعت

نو ظاهر شوه ورته واړه غائبات — نو بیا وګوره دا پوښتنه ترې پاک ذات

## ۳۹۳
## فیم یختصم ملائکة الملاء الاعلیٰ

---

یعني ولي د عالَم بالا پاس — ملائیک جګړې کړي اے خیر الناس

یعني دوسُیل سرور خیراً لبشر — اے خداونده ملک واړه سراسر

د عالَم بالا کل واړه ضرور — دا جګړه کوي تمام ستا په حضور

## فی الکفاراتِ

---

کفاراتو کښې یعني هغه څیزونه — چې پټیږي پرې تمام کل ګناهونه

---

## والمنجیات

په هغو څيزونو کښې دي ثوابه چې سړے مومي نجات پرې د عذابه

## والدّرجات

او په هغو عبادات کښې چې کس هر سړے پرې درجې مومي په هوس

## والمهلکات

او په هغو کښې چې کس له هلاکيږي څه کارونه چې سړے پرې هلاکيږي
نو دا ووې راته پاک الله ستار چې د شيطنه ئې بنده زما غفار

## صَدَّقْتَ يا محمد ۳۹۶

پس د هغې پاک الله رحيم رحمان حکم وکړو ملائيکو ته دا شان
چې ملکو بيا موندنا ئې حل کوو نکے او د هغو مشکلاتو بيل کوونکے
چې ئې شوي دي څلور زره صاف کاله حل کيدل نه پرې جګړه کوئ ترحاله
اوس حبيب زما ته وکړه چې پوښتنه هر مشکل چې لرئ تاسې د هر څه نه
بلکې دا غے اسرا فيل ورته قريب دا پوښتنه ئې ترې نه وکړه د حبيبٌ

## يا محمد صلی الله عليه وآله وسلم ما الکفاراتُ

يا رسوله محمده څه څيز بامند چې پښيدل د ګناه کيږي چې وکاندي

نو جواب کښي ورته وو ښیل حضرت — پهٔ یخنۍ کښي او د سوځنه[395] پهٔ صحت
چي او بهٔ پهٔ محلونو پهٔ حساب — پهٔ کولو د اسبد ست کښي پهٔ یخ آب
جماعتونو له پیاده تلل پهٔ ښهٔ لار — او یو بل ځای کښي د بل کړل انتظار
نو الله رحیم کریم قدیم احد — وو ښیل چي صدقت یا محمدؐ
چي د ښتني ئې زما پاکه رسوله — پهٔ درګاه زما د هر چا نه قبول ي
پس د هغي میکائیلؑ راغي دوړاندي — دا پو ښتنه ئې دا نه وکړه لاندي باندي

# ما الدّرجات

چي پهٔ کوم یو عبادت کښي درجات — حاصلیږي پر ي بنده ته د حد زیات
پاک حضرت محبوب درب نبيؐ سرور — پهٔ دا شان ئې ورته ووې برابر

# اطعام الطّعام افشاء السّلام والصّلٰوةُ باللّیل وَ النّاسُ نیام[396]

یعني دا چي ورکول دي د طعام — او پهٔ جهر ا چول دي د سلام
او کول د لمونځ دي شپه کښي چي عالم — هغه وخت چي خلق اوده وي په خواب د م
نو الله پروردګار ستا سبحان — راته ووې بیا صدقت پهٔ ښهٔ شان
یعني دا چي ئې د ښتنې یا سروره — یا رسوله محمدؐ خبر ا بشره!
پس د هغي جبرئیل راغي ضرور — دا پو ښتنه ئې دا نه وکړه پهٔ سرور

# ما المنجیات یا مُحَمَّدُ[397]

یا رسوله کوم څیزونه دي ښهٔ زیات — چي بنده پري د عذاب مومي نجات

يعني امن وركوو نكي د عذابه ‏ ‏ ‏ دا لله رحيم كريم قديم توابه
نو حضرت خيرا لبشر اخرزمان ‏ ‏ ‏ ورته ووئيل رسول په هسي شان

## خشية الله تعالىٰ في السّرّ والعلانية
## والقصد في الفقر والغناء والعدل في الغضب والرّضاء [٣٩٨]

يعني دا د پاک الله نه ويرېدل ‏ ‏ ‏ په ظاهر او په باطن او ميانه تلل
فقيري او توانګري منځ كښې په جهر ‏ ‏ ‏ او دے عدل عدالت په وخت د قهر
پس د هغې عزرائيل ورانديې شه پېش ‏ ‏ ‏ دا پوښتنه ئې را نه وكړه دسوال نوېش

## ما المهلكات يا محمد [٣٩٩]

كوم څيزونه دي دكس دهلاكت ‏ ‏ ‏ نو دا ووې ورته پاک نبيٌ حضرت

## شُحٌّ مُطَاعٌ وَهَوًى مُتَّبَعٌ وَاِعْجَابُ الْمَرْءِ بِنَفْسِهٖ [٤٠٠]

او اول مهلک دے بُخل چې څوک كس ‏ ‏ ‏ حكم وړي د بخل شي هلاک به بس
پېروي د نفس مهلكه ده د سره ‏ ‏ ‏ چې خپل ځان ورته د نوروښكاري غوړ
دا سبب د هلاكت دے صاف عيان ‏ ‏ ‏ نو صَدَّقْتَ يا محمد [٤٠١] ووئې پاک سبحان
او د شتينے ئې زما بنده دسوله ‏ ‏ ‏ په دركاه زما د هرچا بنه قبوله
پس دے نقل دا څلور وې مسئلې ‏ ‏ ‏ د مذكوو شوې بشپې پرې تسلې
چې جګړه وه پرې څلور هزاره ساله ‏ ‏ ‏ چې په حل د مسئلو وو دپرخوشحاله

مګر نهٔ حل کېږي بي د پاک تواب　　چاله نهٔ ورتهٔ بالکل ددي جواب

چې پهٔ شپه ئې د معراج د پاک سرورده　　جوابونه ئې وا وُرېدل یاد ئې کړه غوره

او پهٔ حال د حقیقت ئې شول خبر　　نو وسُپلي دي چې دا سبب اکبر

د معراج د حضرت دا وه پهٔ کښې شمېر　　لله مخکښې رو بڼے بیان شهٔ تېر

لله والله اعلم بالصّواب　　څلورم قول دے دا چې دا خطاب

دالله دا چې اے یا محمده　　پهٔ درګاه قبول زما واحدا حده

چې هر کله کوي نوم څهٔ دا مدّعا　　پس د نوم څهٔ لوله تهٔ هسې دُعا

## اَللّٰهُمَّ اِنِّیٓ اَسْئَلُکَ الطیباتِ[۴۰۲] المنکرات و حب المساکین و ان تغفرلی خطیئتی و ترحمنی و تتوب عَلَیَّ واذا اردت فتنةً[۴۰۳] فِیْ قَوْمٍ فَتَوَفَّنِیْ[۴۰۴] غیرمفتون

---

پنځم قول دا دے وائي ابن عباسؓ　　چې خاص ذوئې ده د ترهٔ د خیرالناس

وائي هسې چې سرور ته پاک اکبر　　هسې وُوې پهٔ دا شاني برابر

## عبدتّنا فی الخلوةِ فاشفع لامّتک فی الخلوة

---

اے رسوله کهٔ دي ماله بشهٔ شان　　عبادت خلوت کهٔ کړے وي پنهان

نو کوه هم د اُمت خپل شفاعت　　برابر کوه پهٔ وخت کښې د خلوت

شپږم قول دا دے وائي دا ضرور　　صدیقه بي بي عائشه چې رب غفورؓ

ووې هسې پاک سرور ته پاک سبحان　　خپل محبوب ته هسې ووې پاک منّان

## لولا العتاب ما کان معک یا متک الحساب

چرې ما ملامتي قدر کـړه — دوسته نهٔ کښلي ستا امت سره
او نو ما به هم پهٔ ورځي دقیامت — حساب نهٔ وه کړے ما ستا د اُمت
اُووم قول دے چې پاک الله تواب — هسې شاني وکړخپل دوست ته خطاب

## یا محمد انا وانت وما سواذلک خلقتها لاجلک

مقصود زهٔ او تهٔ یو هر څهٔ چې سوا — زما ستانه دي د ې تمول د پاره ستا
اے رسوله مقصود زهٔ او تهٔ یو سم — چې زما ستانه کل واړه زیات وکم
یعني تمول مخلوق تمام دے ستاد پاره — داددرجه یٔ ده مونړ لي د ستاره
د دوؤ کو نو پیدا ئش کښې دا حکمت وه — چې احمد ته یٔ ظهور د کل امت وه
کهٔ دا نور احمدي نوے ځلید لے — نه ادم نه به عالم وه چالید لے
د وجود د طبا شیرکیکوړے سپین — د صباح ددهٔ د نورشهٔ را مبین
کهٔ دا کون دے کهٔ مکان ددهٔ دخیل دے — کهٔ دا جان دے کهٔ جهان ددهٔ طفیل دے
اتم قول دے د سعید بن جبیر — فرمائیلي دي چې پاک الله دا خبیر
وحي وکړه چې رسول اخر زمان — پاک الله غني سبحان پهٔ هسې شان

## اَلَمْ يَجِدْكَ يَتِيمًا فَاٰوٰى

اے مونږ لے نهٔ وے ما یتیم بې کس — پس طاقت دولت مې درکړ تاله پس

## وَوَجَدَكَ ضَالًّا فَهَدٰى ۷۰۶ء

---

او هم وُموند لے تۀ مي پۀ دریاب — د بحده محبت خپل کښي غرقاب

پس مقام تہ دقرب خپل مي تۀ ضرور — او نو ما وو د سَوْلے پۀ سرور

## وَوَجَدَكَ عَائِلًا فَاَغْنٰى ۷۰۷ء

---

او هم وموند لے تۀ مي فقیر سم — پس غني مي کړلي تۀ پۀ هغه دم

## اَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ ۷۰۸ء

---

اے هم پرا مي نسته ستا سینه — ستا سینه مي صافه کړه لکه آئینه

## اَلَمْ اَضَعَ عَنک وزرک ۷۰۹ء

---

او هم بېرته نۀ کړما ترې هغه بار — دگناه مي تۀ کړ بېرته ترې بېزار

## اَلَمْ اَرْفَعُ لَكَ ذِكْرَكَ ۷۱۰ء

---

اے پورته نۀ کړ ستا ذکر مي پورته — ذکر ستا مي پورته نۀ کړ پۀ هر لورته

نهم قول دے چي پاک الله رحمان — وحي وکړ خپل حبیب ته هسې شان

چي پۀ کل پېغمبرا نو دے حرام — دا جنت چي تو پرې کېږ نږدې تۀ یو کام

اوحرام دے نور پۂ کل وارہ اُمت
څو داخل ستا امت نشي پۂ جنت

لسم قول دے چې وُوې ذوالجلال
یا رسوله چې مې ستا د امت مال

نۂ کړه پرچې اوبه د نۂ شي پرې حساب
هم عمر ونه لوئې ورته کړۂ ما ثواب

او چې زړونه د دوئې وارو د یوېل
د دنیا سره محکم نۂ شي بالکل

او هم دوئې به زۂ پۂ مرګ ناګهاني
هلاک نۂ کړم ستا امت تهول اماني

چې لا پرته شي.بې توبې د دې دنیانه
مرۂ به نۂ کړم دوئې پۂ مرګ ناګهانه

دوئې پېدا مې کړه اخره زمانه کښې
نشي پاتې دېر د قبر آستانه کښې

پس د مرګه چې د قبر پۂ زندان
مده دېره پاتې نشي بندیوان

بل دے دا یوُ لسم قول تیار
پاک رسول ته ووې دا پروردګار

# اهل ذکری فی ضیافتی

یعني وارہ یاد دوئنکي کل زما
دي زما پۂ مېلمستیا کښې تل زما

او د یوئنکي مې د شکر نهایت
پۂ زیاتوالي کښې زما دي د نعمت

او کوونکي کل زما د عبادت
دي زما پۂ کرامت کښې هر ساعت

صاحبان د شکر خپل بۂ د رحمت
نا امېد نۂ کړم هرګز پۂ اخرت

او هم دوئې د بیمارانو دي پۂ شان
او هم زۂ یمه طبیب د دوئې د ځان

چې رحمت زما پۂ حق د دوئې شفا دے
د دې هسې بیمارانو دا دوا دے

# اِنْ تَابُوْا فَاَنَا حَبِیْبُهُمْ

چرې دوئې کۂ توبه وویسته یو وار
پۂ طرف وُګرځېدۂ زما ستار

او نو زۂ بلکې د دوئې یمه حبیب
یعني دوست او معشوقه دوئې ته قریب

او کهٔ چرې توبه وُنکړي حضور — پهٔ بلا او پهٔ غمونو کښې ضرور

هم دردونو کښې به دوئ لره مدد — ورکړم ذهٔ واحد کريم رحيم احد

چې د ټولو گناهونو دوئ اکثر — هم عيبونو نه يُ پاک کړم برابر

دولسم قول دے دا چې پهٔ حضرت — وحي وشوه دا الله رب العزّت

چې دې ذړهٔ کښې دې کوه هسې ژونت — چې زما پهٔ طرف ستا دے ضرور يُون

د ټولګي نه د فنا يُ ته پهٔ شمار — لره دوست چې لري هر چاله دوست يار

ترې اخرجه اکېد ونګے يُ يوځل — چې دې ذړهٔ دے پهٔ څهٔ رنګ کوه عمل

چې جزا يُ ده راجع ستا پهٔ طرف — نېک عمل لرې بجده دېر شرف

کهٔ نېکي کوي نېکي يُ بدله ده — کهٔ بدي کوي بدي يُ حواله ده

يعني دا چې د نېکۍ نېکي بدل دے — د بدۍ بدي بدل د بد عمل دے

او د ټول مخلوق نه برېکړل اميد ټيل — چې پهٔ لاس د دوئ کښې هيڅ نشته بالکل

او تهٔ اوسه همنشين له صاف زما — چې زما پهٔ لور راتلل دي اخرستا

د زړه لرې تعلق کړه د دنيا — چې ته نهٔ يُ دې د دنيا لره پېدا

يعني مهٔ لره دنيا سره الفت — دا دنيا ده سرد سره کل زحمت

چې مې ته دې د دنيا لره اکثر — پېدا کړے نهٔ يُ دې له برابر

د يا دلسم قول دے دا پهٔ هسې شان — دبي بي فاطمه زهرانه دا عيان

چې مې وکړه دا پوښتنه د سرور — چې الله تاته څهٔ وُويل پېدره

او چې تاته څهٔ وئيلي دي پاک رب — د معراج پهٔ مبارک مبارک شب

نو حضرت وُويل هسې هغه حين — چې دا وُوې ماته رب العٰلمين

**قَالَ لی رب العِزَّةَ جل جلاله نظرت فی ذنوب اُمَّتِکَ**[۱۲]

**فلم اَرَ الوَجه اِلّاالعفو**[۱۳]

پهٔ گناه د اُمت ستا چې مې نظر کړ — بې د عفو يل علاج مې ترې بهر کړ

وُمي نهٔ ليدېږي د عفوې بل علاج
ده دا عفوه مي علاج ددې محتاج

ځواب لسم قول دے دا چې پاک ستار
هسې وکړله پوښتنه د دوئيد ار

اے حبيبهٔ بدلکې تا زما د پاده
پېشکشي دې ده داوړې څهٔ تيار ده

نو ما وُدې اے خداونده مهربانه
پهٔ دوو مُوټو کښې مې هسې له دې شانه

پهٔ يو موټي کښې مې تا لره تقصير
د طاعت مې دے داوړے هواگير

پهٔ بل موټي کښې جفا او معصيت
ما راوړے ستا دربار له دا ساعت

ما بخښلے دے سره پهٔ خپل رحمت
او د دوئ گناه جفا پهٔ شفاعت

نو الله وکړ بيا حکم ماته دا
چې تقصير و طاعت ما دامت ستا

ستا سره دې ما بخښلي سراسر
چې تهٔ وکړې شفاعت يئ برابر

پنځلسم قول دے دا پهٔ هسې شان
چې دا ابن عباسؓ کړے دے بيان

الله ووئيل چې اے زما حبيبؐ
پهٔ درگاه زما د هر چا نه قريبه

چې څهٔ غواړې مانه وغواړه چې درکړم
چې هر څهٔ لرې مطلب چې درله سرکړم

حضرت ووې اے خداونده تهٔ ودود
يئ دانا زما پهٔ مراد او پهٔ مقصود

نو الله رحيم کريم قديم سبحان
خپل حبيبؐ ته وُوئيل پهٔ هسې شان

## أَنْتَ شفيعهم فيما يقصرون في فرائض طاعتي وانا اَكُونُ شَفِيعًا لهم فيما يَقصرون في سنتكَ يا محمدؐ

---

اے رسوله تهٔ شفيع د خپل امت
او سه تهٔ د دوئ پهٔ ورځې د قيامت

کهٔ زما فرضونکښې کړے وي تقصیر　　یم شفیع د دوئ پهٔ خپله زهٔ قدیر

ستا سنتونکښې وي کړي تقصیرات　　شفاعت به ئې غواړم تا نه زهٔ پاک ذات

شپاړسم قول دے داچې پاک اکبر　　وَو ئیل ئې داته هسې برابر

اے حبیبه زما ستا تمام امت　　د دوؤ حالو بهرنهٔ دے امانت

یا به وي فرمانبردار یا گنهگار　　د دې دواړو نه بهرنهٔ دے قرار

او طاعت د دوئ زما دے پهٔ رضا　　او گناه ئې ده زما پهٔ مقتضا

او هغه چې پهٔ رضا زما دي سم　　قبلونکے د دوئ زهٔ یم پهٔ هردم

چې زما پهٔ مقتضا وکړي یو کار　　او بخښونکے د دوئ یمه زهٔ ستار

بل دے دا او ولسم قول اظهار　　فاطمې بي بي دے کړے دا گفتار

چې حضرت دې فرمائیلي چې مې سوال　　پهٔ درگاه وکړ د پاک رب ذوالجلال

چې قبول ما ته وُ بخښه زما اُمت　　حکم وُشه دا مسئله هغه ساعت

چې د رحمه بخره ستا امت تمام　　ورته و باخښه ما ستا پهٔ سوال کلام

او دوه بخرې به پهٔ ورځې د محشر　　درته و بخښم به واړه سراسر

اتلسم قول دے داچې د ثواب　　پهٔ حضرت زمونږه وُشهٔ دا خطاب

اے حبیبه زما د غواړه ضرور　　او هر څهٔ چې غواړې درکړم زهٔ غفور

حضرت دوئ ځل ایه غواړمه امت خپل　　نو دا حکم د رب جلیل د فرمائیل

او یا ذره مې بخښلي دي اوس تا ته　　نور څهٔ غواړې زدکه وُوایه اوس ما ته

حضرت وو ئیل چې غواړمه امت　　نو او یا ذره ئې کړ ده ته عنایت

یا الله وُوې نور څهٔ غواړې حبیبه　　د هر چا نه پهٔ درگاه زما قریبه

حضرت ووې امت غواړمه اکبره　　یا الله وُ بخښل ده ته او یا ذره

یا الله ووې نور څهٔ غواړې حضرته　　نو پهٔ دا درنگې او هٔ سوه کرته

خطاب وُشهٔ به د دره دا حد　　او هر بار به امت وغوښت محمدؐ

اخر حکم هسې وکړ رب سبحان　　چې ته څو مره امت غواړې پهٔ دا ان

حضرت ودې ذه غو بښتو ئكې يم رحيمه　　ته بخښونكې يې زما ربه قديمه

چې امت لرم هر قدر بدا بد　　هغه ټول به بخښش غواړم سراسر

حكم دا غې اے زما پاكه رسوله　　په درګاه زما د هرچا نه قبوله

كه اوس د بخښم ذه ستا ته ټول امت　　نو زما به شي ظاهر دې كښې رحمت

او عزت به پاتې دې كښې شي ستا پټ　　اوس امت درته يوقسم بخښم عنټ

دوه حصې په توقف كښې دا ساعت　　زه لرمه چې په ورځې د قيامت

ته زمانه خپل امت غواړې حضور　　زه بخښمه درته كل امت ضرور

هم په دې كښې شي ظاهر رحمت زما　　هم مخلوق ته به ظاهر شي عزت ستا

نولسم قول دے دا چې د سبحانه　　وې وشوه په حضرت د هسې شانه

اے حبيبه زما هغه ورځه سمه　　چې پېكښې شوه پيدا بي بي مريمه

نو هر چا به د هغې په ښه ساتنه　　محبت كاوه هر چابه د هر څه نه

او هر يو وئيل چې زه يې ساتم په وس　　نو ما حكم وكړ دا چې دې هر كس

قلمونه دې د او سپنو په آب كښې　　هر يو وغورځوي زر دې په دريا كښې

چې قلم د هر چا و خوت پاس په سر　　دا و بو د پاسه وخوت سر ابر

هغه كس دې ددې حكم كړي تعميل　　د بي بي مريمې شي دې دے كفيل

قلمونه چې دې ټول په كوم دم　　په او بو كښې چې دوې وغورځول سم

په كامل قدرت سره نو ما تواب　　كړ قلم د ذكريا مې پاس په آب

وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ إِذْ يُلْقُوْنَ اَقْلَامَهُمْ

اَيُّهُمْ يَكْفُلُ مَرْيَمَ ﴿ع﴾

---

يا رسوله كه وې ته صلته حاضر　　قلم ستا به مې پسِتلے وه ظاهر

یعني ستا قلم به ما وو بیهی کړې … کفالت به مي وو تالره درکړې
او نو دا رنګې چي ورځ شي د قیامت … نو په حق به برابر ستا د امت
کوی هر څوک به خبري په دا شان … چي د دوئ به زه والي خاوند عیان
کوم چي دي فرمانبردار پکښې تمام … نو د دوئ به انبیاء علیهم السلام
او د دوئ په شفاعت کښې به هادم … دوئ جګړه کوي په مثل د آدمؑ
دے به وائي چي زما دي دوئ اولاد … نوحؑ به وائي چي زمانه دي دوئ زاد
یعني دوئ زما د پشته دي پیدا … ابراهیم علیه السلام به وائي دا
چي زما دي په ملت دوئ مقرر … هر یو هسې به دعوه کوي اکثر
په دا شان سره به دوئ وي دعویدار … او چي دوئ کښې سره وي څوک ګنهکار
نو دوزخ او هم مالک وکړه یقین … نو لبنی او هم ابلیس شیطان لعین
یا غیره دوئ به جګړه کوي مطلق … د حق والي چي دے دا زمونږه حق
او نو زه چي یم خاوند د کل جهان … حکم وبه کړمه زه په هسې شان
قلمو نو غور ځولو باندي سم … کرم بهر د شفاعت به ستا قلم
تول به پاتي د دعوې شي برابر … امت ستا به تا ته وسپارم اکثر
شلم قول دے چي دوست د ذوالجلال … دي وسپلي په دا شپه مي وکړ سوال
یعني وکړ حضرت دا سوال د ثواب … چي په ورځ د قیامت ما ته ته حساب
دامت خپل راته وسپاره رحمانه … حکم وشه راته هسې د سبحانه
اے حبیبه زما څه غرض مطلب … په دې کار کښې دے ستا و خوند و طلب
نو ما ووې دا غرض مي دے حضور … او چي دوئ په عذاب نشي په ضرور
حکم وشه دا لله هغه ساعت … اے حبیبه زما زه به په قیامت
دوئ سره به دا رنګ وکړمه حساب … چي له تا نه به يې هم وکړم حجاب
تا به هم نه کړم په دوئ باندې خبر … په اعمالو بد خرابو سرا سر
چي هر کله ته د دوئ يې پیغمبر … ډېر شفیق يې ته په دوئ باندې زیاتر

او له تانه به يې هم کرم گناه پټه — بېگانه ته به يې ضرور کړم پټه غټه

يا رسوله تهٔ پهٔ دوي باندې پهٔ نيت — تهٔ لرې پرې شفقت د رسالت !

اوچې تهٔ يې پېغمبر دوئ دي امت — لرم زهٔ پهٔ دوئ رحمت د ربوبيت

ځکه داچې زهٔ رب يم او هم خدائے — اوکهٔ تهٔ يې پېغمبر يې رهنما يې

نو زهٔ يم د دوئ معبود او رب اکبر — او تهٔ نن ورځم وينې دوئ اوس برابر

زهٔ ازل نه تر ابد يودې نظر — لرم زهٔ د عنايت پهٔ دوئ اکثر

اے چې تاکړو پهٔ ازل بود له نابود — امېدوار يو هميشه دا ستاد جُود

يو د ټولو سازنده ذُ بې طرب — بې له تانه لرو بل پالو نکے رب

هم له تانه لرو مونږ امېد و بيم — خاص کرم وکړه پهٔ مونږ چې يې کريم

اے خداونده پهٔ اُمېد راغلي ستا يو — کهٔ اگر راغلي مونږ بې سر و پا يو

تهٔ زمونږ يې چاره سازپهٔ تا نازېږو — کهٔ مونږ وشړې پهٔ کوم دربه سازېږو

پهٔ منزل نارسيده ذُ نظر وکړه — پهٔ بې کس غم کشيده ذُ نظر وکړه

قبله نه جوړ وو بې د ستا له دره — چې خالق هم مو رازق تهٔ يې اکبره

يو ويشتم قول دے هسې پهٔ تحقيق — دا وئيلي دي حضرت[۲۱۸] ابوبکر صديق (رض)

د حضرت نه مې خواست وکړ ددې سوال — چې ما پوه ددې ايات کړه پهٔ احوال

## اَوْحىٰ اِلىٰ عَبْدِهٖ مَآ اَوْحىٰ[۱۹]

حضرت ووې اے ابوبکر صديقه (رض) — پهٔ هر ځائے کښې تهٔ زما سره رفيقه

پاک الله ووئيل ماته هسې شان — لرم دوسته دا خبره زهٔ بيان

چې خبرې وکړم ستا امت سره — اوکهٔ مطلب زمانه وے کړه

نو په کمه ياپهٔ زياته گناه باندې — ستا امت به مې حساب ته نه کړي وړاندې

دوه ويشتم قول دے دا حضرت عمر (رض) — وکړ سوال ددې خبرې د سرور !

## اَوْحیٰ اِلیٰ عَبْدِهٖ مَا اَوْحیٰ (۲۶)

ماته هم یوه خبره د اساعت ‎ ‎ د دې وکړه راته ووې دا حضرت
پاک الله زما امت نه ګیله غوتبه ‎ ‎ راته وکړه دوئ ګناه کوي په پټه
دوئ کوي ګناه په پټه هر زمان ‎ ‎ او ظاهر ښکاره کوي به دوئ نیک ځان
په دا زو نو پټو زهٔ د دوئ نظر ‎ ‎ کوم هم درته بخشش کوم اکثر
او پرده ئې پټوم زهٔ په هر دم ‎ ‎ په بخشش ورته کوم مدام اکثر
در ویشتم قول دے دا صحیح په شمار ‎ ‎ چې عثمان او هم علي حیدر د کرار
فرماشیلي دي چې مونږه هم في الحال ‎ ‎ د حضرت د دې خبرې وکړ سوال

## اَوْحیٰ اِلیٰ عَبْدِهٖ مَا اَوْحیٰ (۲۷)

نو دا دوئیل د رسول اخر زمان ‎ ‎ هسې ووې راته دا الله رحمان
اے حبیبه ستا نو چې به ضرور ‎ ‎ امتیانو ګناه وکړله حضور
چې به وکړله ګناه ستا امت ‎ ‎ نو په دوئ باندې به ما هغه ساعت
عذاب سخت به مې دا ولیږه تمام ‎ ‎ لکه قوم باندې د نوح علیه السلام
چې ګناه وکړه دوئ غرق کړل ما په زمکه ‎ ‎ د صالح پیغمبر قوم اماني څکه
امت ستا چې ګناه وکړې په کمال ‎ ‎ ستا دې سره د دوئ پټوم حال
بله دا چې په سبب د ګناه خپل ‎ ‎ امتیان ورو مبني په زمکه مې غرق کړل
وجودونه مې د چا کړه د خوګانو ‎ ‎ خوګ مې کړل په مشابه د شادوګانو
خوګ مې کړل د سیلوګانو په وجود ‎ ‎ لکه قوم چې په مثل د داؤد دا
یا چې قوم مې د عیسیٰ علیه السلام ‎ ‎ خوا د و زاد او هم هلاک کړ کل تمام

او امت ستا چې ګناه کوي هر ځل ، — دا ګناه د دوئ په نیکو مې بدل
ګناهونه په نیکو د دوئ بدل کړل — امت ستا د ګناهونو صاف مېنقل کړم
بله داده چې هر کله کم و زیات — امتیانو پخوانو په خپل حیات
که ګناه به ئې چرې وکړه مقرّر — ما به کانهي ورول د دوئ په سر
لکه قوم چې مې د لوطٔ پیغمبر کړل — په یو دم مې کړل فنا سره یوځل
که ګناه کوي هر قدر ستا اُمت — زهٔ په دوئ کوم باران د خپل رحمت
بل دے دا ځلیر یشتم قول عیان — فاطمې بي بي د ټیلي دي دا شان
چې ما هم کړه خبر داده په دا حال — چې ما هم د پاک حضرت وکړ سوال

## اَوْحیٰ اِلیٰ عَبْدِهٖ مَا اَوْحیٰ [۲۳]

حضرت ووې چې الله پروردګار ! — ګله وکړه د امت زما اظهار
او دا دنګي ئې ووې یا زما حبیبه — په درګاه زما د هر چانه قریبه
زهٔ ضامن یمه د رزق سرابر — د کل وارو بندګانو سراسر
امت ستا په ضمانت زما ستار — کوي نه څهٔ اعتماد او اعتبار
او دا غلط نهٔ وي دوئ باندې څهٔ غم — ورکوي غم له په ذرهٔ کښې للاهردم
نا را غلے غم اول خوري هر ساعت — دوهم دا چې ستا د پاره خاص جنت
دے جوړ کړے هم دوستانو ستا د پاره — او امت ستا د جنت په سمه لاره
مینه نهٔ کوي معنیٰ څهٔ یعني صاف — نیکي نهٔ کوي د نیکو لجي خلاف
دریم دا چې مې جوړ کړے دے دوزخ — د دشمنانو ستا له کړم به ئې په کښې بنغ
امت ستا درانلو سعي کوي زور — راولي ځان د دوزخ په طرف لور
یعني دا چې ګناهونه کوي متل — زما حکم ماتولو کښې بالکل ؛
د لیري کوي هرګز نهٔ لري ویره — ما تول زما د حکم کښې غوره ا

خلودم داده چې دوئ زما سره ؛ — د شمني كوي خطا هره هم ښكاره

او زما د بندګانو سره تل — كوي صحبه يعني هسې رنګ بالكل

دوئ ګناه كوي پهٔ پټه برابر — هېڅ زمانه نهٔ شرميږي سراسر

او د خلقونه ويريږي هم شرميږي — د دوئ وړاندې ګناه نهٔ كوي ويريږي

او د دوئ د ملامتې سنه خطر كا — او زما د خوف خطره لاس پهٔ سر كا

بخښم زهٔ د دوئ نه نهٔ غوارم عمل — د سبا ورځې نن ورځې پهٔ يوځل

دوئ روزي د هفتې مياشتې او د كال — او ردېږي له ماته غواړي پهٔ هر حال

شپېږم زهٔ روزي د دوئ پهٔ هېڅ سبب — بل له نهٔ وركوم بل د دوئ عجب

دوئ زما عبادت بل له وركوي؛ — عبادت پهٔ ديا دوئ اكثر كوي

او تل دوئ پهٔ عبادت كښې شريک بل — مالره پيد كوي هميشه تل ؛؛

وركومه زهٔ عزت او هم ذلت — دوئ بې ماته كوي بل ته امېد نيت

دوئ زمانه ډيره نهٔ كوي د سره — بندګانو نه زمانه كوي وېره

او دم زهٔ وركوم دوئ لره نعمت — ماله شكر نهٔ كوي پهٔ هېڅ ساعت

او زما د بندګانو كړي ادا — شكريه كښې مې شريک كاندي پيدا

اتم هردم ملائيک زما هر حال — ماته وائي د دوئ تل خراب اعمال

او زهٔ نهٔ كوم ګيله د يو پهٔ سر — ملائيكو ته پهٔ هېڅ وجه اكثر

كه بلا او رنځ وروليږم لږ شان — نو دوئ ماته به ګيله كوي هر آن

بې شكوي زما پهٔ خلقو ته تل وائي — او زما د شكره دوئ به بې پروا ئي

د بلا نازليدل درب رحمت دے؛ — دا نزول د انبياؤ عافيت دے

د بلا زخم مرهم د بې ديخمه دے — خوند د دې شرابو ترېخ د شيرينه دے

اسمان نهٔ تړي پهٔ تاباندې پولاد — څوچې سيله نهٔ كړي تا وته اظهار

ځاۓ د غم دے دا جهان محنت آباد — د محنت سره يهٔ څوک وي پهٔ ذرهٔ ښاد

د اسمانستوري زمونږ قتل ته خيردي — غم راحت د تېرېدلو پهٔ تدبير دي

هغه کس چې یې یقین په ارادت وي
کار د ده به همېشه په سعادت وي

چې یقین او توکل د ده پناه وي
لیک په ذره کښې یې الرزق علی الله وي

ستا روزي به بېرته نه شي ستا د دره
کړه طاعت غم د روزۍ مه خوره دسه

سوال کوه خاص په درګاه د ذوالجلال
چې رزاق دې همېشه دے لایزال

په لحظه د عمر نشته اعتبار
د لس کالو رزق څه له یې دې تیار

د نېکونکي د روزۍ په در را درومه
د غه خوره په د غه ځاے په طمعه شومه

که اګر چې خلقو ډېر کړے کوشش
ځاے د خپلې روزۍ زیات نه کړ خورش

تل کوشش کوه د دین کوشش د دین دے
رزق دولت په کوشش نه راځي یقین دے

که په دین کښې دې کوشش کړ د تمیز
تا به خداے کړي په جمله عالم عزیز

بل دے دا پنځه ویشتم قول اظهار
دې وسیلې دا حضرت نبي رونیدار

چې د دره د الله رحیم سبحان
وحي را غله په ما دا هسې شان

چې په منځ کښې زما هم ستا امت
او ده شرطه دي په بل یو روایت

وایي نهه دي دا ټول سراسري
اے حبیبه ده دا ستا خاطرداري

دا همه خاطرداري ده ستا د پاره
اے زما دوسته حبیبه هم رونیدار

اول شرط دا دے چې امت عیان
که طاعت کوي هر قدر زه رحمان

زه به نه کړم او په قدر د طاقت
هم د ده دوي د دوي نه غواړمه طاعت

نه په خپل مناسبت سره سبب سم
ولیکن بدل د دوي د طاعت کم

ورکوم ثوبه په قدر د برابر
د طاعت نه ورکوم به سراسر

په لایفت به د بخشش د خپل کرم
بدله به ورکوم په هغه دم

دویم شرط دا دے که چرې چې یو کس
امت ستا نه د ګناه وکړي هوس

یعني ستا امت ګناه وکاندي وران
بیا توبه کړي توبه و باسي دا شان

چې ګناه نه کوي چرې دوباره
زه توبه د ده قبوله کړم بکاره

پاک شي دے د ګناه هونونه دا رنګ
ګویا ټول عمر ګناه نه دي په څنګ

یعني چرې چې پهٔ عمر ژوندون ځېل　　　گناه نهٔ وي کړې هیچرې بالکل
دریُم شرط دا دے چې زهٔ ستا د امت　　　پهٔ اووهٔ اندامو واړو هر ساعت
زهٔ کوم و بندگانو ته نظر　　　او کهٔ چرې شپږ اندامه برابر
پهٔ گناه اخته وي یو باقي اندام　　　وي اخته پهٔ عبادت زما تمام
نو دا هغه شپږ اندامه گنهگار　　　ورته و بخښمه زهٔ رحیم ستار
پهٔ سبب هم د دغه یو نیک اندام　　　دا اووهٔ واړه اندامه يې تمام
د دوزخ د اوو کند و به يې آزاد کړم　　　مستحق به يې پهٔ اتو جنتو شاد کړم
څلورم شرط دے هسې رنګ مراد　　　چې بنده کړې گناه کړي چرې یاد
دے خفه شي پرې هم وکړي پښیماني　　　نو زهٔ ده ته کړمه عفوه اماني
او د عفوې پرې زهٔ راکاږم قلم　　　ورته و بخښمه واړه هغه دم !!
پنځم شرط دا دے چې هر کله ضرور　　　یاد وي گناه بنده زما حضور
او چې خوري پښیماني پهٔ گناه باندې　　　نو زهٔ دې کړم پهٔ دردونو د غم لاندې
یعني وُلېږمه زهٔ ورله دردونه　　　هم ورولېږمه دهٔ لره رنځونه
چې سبب د کفارت شي برابر　　　هم د دوئ د گناهونو سرا سر
شپږم شرط دے چې پهٔ کال کښې دوه　　　دروازه د هغه دیه دوزخ دوه واره
زه پرانځم نو د اوري دے یو دَر　　　بل دویم در دے د ژمي مقرر
او چې اور او زمهریر یعني چې یخ　　　سبا وُنه کړي اثر پرې د دوزخ
اووم شرط دے امت ستا سره پهٔ فضل　　　حساب دوئ سره به کېږي نه پهٔ عدل
چرې زیات يې عبادت شي پهٔ حساب　　　نو دوچند به ورله ورکړمه حساب
کهٔ گناه يې پهٔ نېکیو باندې شي ډېره　　　دا گناه د دې بنده شي د حق تېره
پهٔ ګردن د هغه چا کېږي دم تیار　　　چې پهٔ دهٔ وي ظلم کړے چا بسیار
اتم شرط دے بزرګي میاشتې ورځې شب　　　بزرګي ورځې ورلېږم پهٔ دا مطلب
میاشتې ورځې بزرګي زهٔ الله تواب　　　دوچند زهٔ د عبادت يې کړم ثواب

چې نیکي د دوئ په ورځې د قیامت
په بدی يُ غلبه کړم امانت

او حساب به په قیامت کښې په یودم
زه په خبر کړم برابر په خپل کرم

په خپل فضل گناهونه يُ سلامت
د دوئ و بخښمه زه په خپل رحمت

او جنت به ورکړم زه په رحمت خپل
ستا امت به پرې د ننه کړمه کل

# مناجات به درگاه قاضی الحاجات

چې پیدا دې په دنیا کړمه خاونده
و ثیقه دې زما وا خسته څرگنده

هم خدمت دې کړ په ما باندې خپل فرض
بیا جزا يُ تا په ځان باندې کړه قرض

زه د ضعفه په خدمت ستا کښې روان یم
که څه امر دې شي پاتې زه ناتوان یم

ته د دومره عنایات و اے یاري
کړې به لرې د بنده ضعف خواري

چې دې راکړه امید وته شاخ په شاخ
ستا کرم کړم زه د دې قسمه گستاخ

او که نه وي زه څه خاک یمه قلاش
چې به شم د دیواله رنگ تراش

که په ماکوښه راکاږې اے سبحانه
څوک به وکړي سرکشي ستا د فرمانه

او که شې د موتې خادې نه خوشنود
ستا به او نشي څه زیان زما دے سود

هغه زه چې یمه زه او زما هو يُ
غواړم زه ستا د کرم عطا یو موئ

ما کړې خلاص د گناهونو د بلا
کړه نصیب زما دیدار پاکه مولا

شپږ ویشتم قول دے دا په هسې شان
چې دا حکم وکړ پاک الله سبحان

یا رسوله امت خپل ته شپږ پیغامه
زما ورسوه دوئ ته د اکرامه

اول دا چې دوئ ته دوا یه ښکاره
چرې تا سې که دوستي د چا سره

چې کوي بدکې د یاره دا حسان !
چې د تاسو سره وکړي په خپل ځان

نو لائق دے چې هم دا دوستي ضرور
کوئ ماسره چې زه یمه غفور

زه کوونکے د احسان یم ستا سو هر دے
او احسان زما په حق ستا سو کښې دېر دے

دوهم دا ده که د جانان کوې ویره
په عالم د زمکو یا د آسمان بره

یعني پاس دا سمانونو د عالم
یا په زمکو کښې چې ډېر دي او یا کم

دا موذره کښې دي چې بدکې په عذاب
او په قهر کې گرفتار نشئ خراب

نو بهتره ده چې ډېرېږئ ما نه
او په دې سبب ظاهر ښکاره عیانه

چې ده ماله غلبه قدرت کمال
نو په تاسو وارد باندې په هر حال

دریم دا دے چې د جانان برابر
د یو مراد کوئ امید دا مقرر

نو بهتره ده چې دا امید اظهار
چې زمانه کوئ زه یمه غفار

د امید پوره کوونکے زه یم تل
زه دوستان لرمه کل بندگان خپل

څلورم پیغام دے دا واوره دوئیداره
چې په یو گناه او یا په کار ناکاره

که د جانان کوئ شرم د حیانه
نو بهتره ده چې وشرمېږئ ما نه

او په دې سبب چې تاسې کل مدام
نه کوئ جفا کاري د حد تمام

زه کوم تاسو سره وفاداري
کوئ تاسو ما سره جفا کاري

پنځم دا دے چې یو کس غواړي دا شان
په خدمت کښې چې خپل صرف کړي مال او ځان

نو بهتره ده چې ما سره ضرور
کوئ دا معامله چې یم غفور

چې زه ستاسو یمه خدای او هم معبود
چې په دې کښې دے ډېر تاسو له بهبود

شپږم دا که تاسو یو کس چې لائقه
وعده خپله چې کړې د ښتیا صادقه

نو بهتره ده چې عقل کړئ د فیق
په د ښتیا صدق زما کوئ تصدیق

سبب دا چې هغه زه یمه ضرور
د دروغ مخالفت نه پاک حضور

او ویشتم قول دے دا چې پاک ستار
حکم وکړ هسې شان دا ته اظهار

یا رسوله بزرگ یم زیات زه تر دې حده
وایم ته د پېژنه ما محمده

او ته یې د هسې حد نه عالي متر
چې زه تا ته وایم هسې برابر

چې مخلوق زما را بوله په طرف
او په لار یې د اسلام کړه مشرف

بل دے دا ته ویشتم قول ضرور
را ته ووې هسې پاک الله غفور

یا رسوله چې پوهېږې ته په دا   چې ما ولې ته آخر کړې پیدا
کل نبیان مې کړه د ستا نه اولین   ته مې کړې له کل نبیانو آخرین
نو حضرت وویې چې یا الله سبحانه   ته دانا یې زیات د حده اې رحمانه
نو الله وویې چې اې زما حبیبه   په درګاه زما د هر چانه قریبه
خپل امت ته چې دې هر قدر تمام   ورته وُرساوه تا زما سلام
د سلامه پس بیا وواېه دا شان   چې دې کړې هسې حکم پاک منان
چې مې تاسو دې د پاده برابر   د کل واړو امتیانو سته اکثر
اخبر څکه کړې پیدا چې په قیامت   مخکښې نه کړم شرمنده د یو امت
بلکې نور کل امتیان به ستاسو وړاندې   شرمنده او رسوا کړمه لاندې باندې
بل یو کم دېرشم دې قول دا اظهار   فرمائیلي دي دا دوست د پاک ستار
چې مې وکړ د بخشش د خدای په سوال   د خلوېښتو کلنو امت په حال
حکم وُشه دا چې اې زما حبیبه   په درګاه زما د هر چانه قریبه
نو څلوېښت کلني واړه ستا امت   ما بخښلي دي کل واړه سلامت
د پنځوسو کلنو مې بیا دوبار   وکړ سوال راته بخشش کړ کردګار
درېم وار مې د شپېتو کلنو سم   وکړ سوال و بخښل ما ته یې هغه دم
بیا مې سوال د بخشش وکړ د اکبر   د اویا کلنو عمر برابر
حکم وُشه دا چې یا زما رسوله   په درګاه زما رحیم کریم قبوله
په دوستۍ راستۍ سره مې دې قسم   زه شرمېږم دېر د دې بنی آدم
چې اویا کاله بخښلي دي ما چا ته   پرستش چې دې کښې ده کړې وي ما ته
او چې شریک یې ماله نه وي پیدا کړې   د دوزخ د اور مې دې دې جدا کړې
دا رنګ کس به د دوزخ په اور څه رنګ   زه به سېزم کوي اور د دوی نه څنګ
او چې وي دا تیا کالو خاوندان   یا چې وي د نوي کالو صاف عیان
دوی زه به په کرم مهر چېمتور   دا دنګ حکم به زه وکړمه ضرور

په عرصه یاندې ود دېرې د قیامت — که هر څوخواړې دا خدګرې په جنت
یعني هر څوموره چې غواړې سراسر — ځې جنت لره ې بوځې سراسر
دېر شم قول دے چې پاک الله تواب — خپل حبیب ته وکړ هسې رنګ خطاب
یاحبیبه سترګې پرانځه دا دم — رونظر وکړه دلاندې د قدم
چې نظر مې وکړ زد په قدم باندې — موتے خاوره مې ترې ولیده دلاندې
نو دا حکم راغے اے زما حبیبه — په درګاه زما د هر چاته قریبه
رو هر څوک چې په عالم دي دوجود — دادي کل د قدم خاوري ستا محمود
او یو دوست چې دیل دوست کړه په لار — ځي قدم ې شي آلود په ګرد غبار
نو که چرې دوست دخپل قدم ګرد خاک — چرې و غواړي د دوست نه څه نه وي باک
هر دوست به منع نه کړي ترې بالکل — ګرد د خاورې د هغه د قدم خپل
اے حبیبه تهول ظاهر باطن عالم — چې دا کل دے ګرد غبار ستا د قدم
بلکې ستا په صدقه کښې تهول امان — ورکول دد ې دي دېر ماته آسان
د هغې غباره ښښې چې پرې ضرور — دد ې دوست چې ولړلي شي حضور
او هغه ته چې دا و بخښي تمام — بلکې واوره ته په نظم دا کلام

# نعت

عالم نم دے دیو څاڅکي د کرم ستا — آدم خاوره د غبار ده د قدم ستا
که عیسیٰ خیمه د هلے په فلک ده — په آرزو کښې دے د سورې د علم ستا
چا چې خط د آزادۍ د دوزخ بیا موند — د غه کس دے ستا غلام له نوش رقم ستا
دامت په غم دې عیش دجهان ورکړ — ځان وروح مې دې سپند شي د هم ستا

یو دېر شم قول دے دا چې پاک سبحان
حکم وکړ خپل رسول ته هسې شان

# دَ لَّ رِجْلَکَ

یا رسولﷺ له پښني کړه ښکته او پزاندي
نوما پښني کړي او پزاندي ښکته لاندي

نو شوم پوه چي څهٔ زما پښو ته ضرور
اُورا وُرسېدل بیا لري شول دور

دا پوښتنه دکړه ما یا الٰـهي
ددي څیز دحاله راکړه آگاهي

حکم وشهٔ چي هرڅیز پهٔ خپل اختیار
لري نشهٔ بېلکي زهٔ چي یم جَبّآر

ماکړ لري نوما ووي اے قدیمه
نو دا څیز دي ولي لري کړ کریمه

نو ددره د الله رحیم تواب
هسي وُشهٔ راته دا رنګي جواب

یعني دا چي پهٔ سبب د بزرګه ستا
دا لوئي او بزرګي ستا پهٔ ښیز زما

دومره ده لکه لس چنده عرش عظیم
نور شي لوئي دا شي پهٔ در زما رحیم

نو دا یو موټے د خاوري دقدم ستا
داسي لس عرشه ددي بهٔ نهٔ کړم سم ستا

بېلکي دا پهٔ ښیز زما رحیم ستار
چي دا رنګ عرشِ مجیده لس پهٔ شمار

ما ته ډېر عزیز محبوب دے دغه ما
دلس عرشونه دا ستا بنهٔ قدم پاک

# غزل در نعت احمدؐي

اے چي خاوره دقدم کړي ستا د عرش همسري
پهٔ کامل اکمل ستا ختمه شوه پیغمبري

بل یو کس نشهٔ ظهور پهٔ میدان دقدر باندي
چي يُ کړے له آفتابه ستا د قد برابري

خاص پهٔ نیت دقاب قوسین پهٔ یو دم لطیف شریف کښي
تېز د تیره يُ کړل قطع نهٔ[۹] فلکه چښري

انتظار کښې دي ختلي د فلک سل زده ستر ګي

خاص په سترګو ي قدم به ده دا آرزو له تالري

ستا په لاره کښې و لاړ دي معلق اوه آسمانه

د د کات درخت ي وګوره سا ز په ماه و مشتري

ته په هسي لاره تېر شوې په فراغ په آزادۍ کښې

جبرئیل امین له نه وه په دا لار کښې د هېري

---

دوه د برشم قول دے داچي فقه نوم
په دا شان سره يې کړے دے ګفتار

دبي بي فاطمې د بخښه وه معلوم
چي هر کله د معراج د رسول اسرار

فاطمې بي بي ته ده بیا نول
یا رسوله نکه تا آزاد کان

نو ما هسې بیا رسول ته وویل
دامت هلته یادکړي دي بزرګان

نو دا زنګ دي فقیران هم دامت
نو یوه خبره هغوته ضرور

دي یادکړي تا په مهر محبت
ما عاجزي ته سروره کړه مذکور

رسول ووې اے فقیې واوره دا غوټ
بېله داچي د دوستانو د دربار

دا اسرار د دوست بهتر دي ساتل پټ
عزیزخېل بهانه غوښتونکي دي ستار

نکته ګیر د عاشقانو د درګاه دي
غواړم داچي دامت ګنهګاران

حضرت ووې هرچې څاکړي ګناه دي
و بخښم په عنایا تو د سبحان

---

صبحدم چي مطالب د شپې تر سرکا
کوم طالب جرحه چش نشوله دې ميو

در د کشانو له پیاله د مئ ناب ورکا
ته بغیر دارادت د ځان رهبر کا

بهانه کړه دا پیاله بې بهانه ده
په صراط کښې د توحید ثابت قدم شه

بې بهانې به اے سرمسته تاله ورکا
چي اول قدم په لاس درته ګوهر کا

---

دري دېرشم قول دے داچې پهٔ دربار
وکړ سوال مې دا د پاک پروردګار

چې یار به زهٔ بشر یَم سبرابر
هسې نه چا امتي خپل ته اکبر

چرته ونهٔ کړم بنېره د خپل امت
امان راکړه د دې هسې حرکت

بیا مې سوال وکړا ے خدایه هسې کار
چې دغم یاد محنت وي دے دشوار

دا ولې چې تهٔ زما پهٔ خپل امت
دا ئې کړه وګناهونو کفارت

حکم وشهٔ چې هم دا دنګ به ضرور
زه کومه چې زهٔ یَم رحیم غفور

نو حضرت وائې چې بیا مې وکړ سوال
هسې شان د پاک الله رب ذوالجلال

هر بنده ستا چې اقرار کوي عیان
پهٔ ګناه خپله تائېل وي هر زمان

ما شفیع کړه یاالله د دوئې پهٔ باب
حکم وشهٔ دا د پاک الله ثواب

چې داکار زما دے زهٔ بهٔ پهٔ کرم
هم بهٔ خپل رحمت پهٔ دوئې وکړمه سم

تردې حده چې پهٔ بعضې امت ستا
بهٔ زمانه وو بخښلے شي پهٔ ما

او هم بعضې به له تانه پهٔ ماباندې
وُ بخښلے شي کُل واړه ستا دوړاندې

---

چې دې فضل کرم پهٔ یاد شمه خوشحال
تقصیرات مې کړه معاف او هم نکال

یار د غم مې پهٔ زړهٔ پروت دے زهٔ ضعیفٌ یَم
ددې یار د را بنکونهٔ لرم مجال

---

یل څلور دېرشم دے قول دا حجت
چې بي بي عائشې کړے روایت

ما حضرت نه التماس وکړ عیان
دا سرار د کلما تو ددې شان

# اَوْحیٰ اِلیٰ عَبْدِهٖ مَا اَوْحیٰ

---

نو حضرت ووې چې پاک پروردګار
ماته ووې هسې شان رحیم ستار

کهٔ یو کس دامت ستا نه سرابر
د دوزخ د اور لائېق شي سراسر

پهٔ سبب د دېر ګناه کښې چې وي بنخ او چې وکړے شي پرې حکم د دوزخ

نو هم داینده د نورو امتیانو ماته دوست وي دېر د مغفورجنتیانو

بل پخته دېرشم دے قول دا ضرور چې خپل دوست ته وچې وکړه دا عفوٌ

چې اے دوسته مهٔ خوره هېڅ دا مت غم او ترکومه بهٔ دا غم پهٔ خاطرسم

بالکل لرې کړه دا فکر اماني چې نن شپه مې تهٔ دکوردا مهماني

پهٔ مقام دقاب قوسین مې کړې داخل د ترورکورنه مې پهٔ داځاے کړې واصل

نودارنګ به زهٔ پهٔ ورځې د قیامت بې تکلیفه او بې درده ستا امت

دېخوسوزرو کالو ورځ پهٔ شمار ده پهٔ صراط ددېرشو زدو کالو لار ده

پهٔ یودم طرفة العین کښې سلامت دا رنګ تېر بهٔ کړم صحیح او بې محنت

هېڅ تکلیف به دوئ وُنهٔ وینې لږ د بر بې محنته بې تکلیفه به ئې کړم تېر

شپږ دېرشم قول دے دا ظاهر عیان چې بي بي عائشې وئیلي دي داشان

سوال مې وکړ د حضرت نه دا عجب او هغه وچې ده کومه چې پاک رب

پېښه کړي ده نو وٗ وئیل سرور ما څلور څیزه طلب کړه دا اکبر

اول ووې ما چې اے خدایه جبار د شعیبٌ پهٔ قوم دې اورشکے کړه قهارٌ

دوېم قوم د لوط دې کل واړه سنګسار کړه درېم قوم دې د داوُد سبد نمودار کړې

څلورم د قارون خزینه دې کړه ورکه دوه کسان د قوم له ده شو غرق پهٔ زمکه

اے الله زما امت د هسې شان عذابونو نه کړې امن پهٔ امان

وچې وشوه چې قبول مې کړ ستا سوال ستا امت نه عذابونه مې في الحال

بالکل لرې کړل ما واړه سراسر عذابونه ستا امت نه برابر

بل اووهٔ دېرشم دے قول بهٔ زیاتي دي وئیلي ابوبکرٌ وا سطي

نو حضرت وُوې چې اے پاکه الله غواړم دا امت مې پاک وي د ګناه

چې حاضر شي بېګناه ستا پهٔ جناب هسې ووې پاک الله ثواب

وکړما دوئ ته پهٔ امر دلالت او دکل مخالفانو امانت !!!

هم د واړو ګناهو نه مې کړل منع ‌ ‌ د همه واړو بېلوونه دوی په جمع

دا په دا چې زه سره ستا دا امت ‌ ‌ لرم زه د ډېر محبت او شفقت

او سره د دومره مهر او کرم ‌ ‌ هسې ما مقرر کړے دے دا سم

چې دوی واړه په ګناه کړم مبتلا ‌ ‌ څوک وي غرق په کښې ترسره څوک ترملا

دروازې د خزانو د رحمت خپل ‌ ‌ چې زه پرانزمه دوی ته دا بالکل

یا رسوله ته امین زما ئې سبب ‌ ‌ او جبرئیل غوره زما دے مقرر

او تمام امتیان ستا زما عفو ‌ ‌ مسلمانۂ دي په جنت کښې په سرور

او صاحب د کور ځاوند له د مکان ‌ ‌ ډېر لازم دي برابر چې په ښۂ شان

چې پالنه پرورش د میلمه وکړي ‌ ‌ د هر څۂ پرورش د میلمه وکړي

او کوي دې ورله لویه مهماني ‌ ‌ د میلمه عزت پکار دے اماني

بل اتۂ د ډېرشم دے قول دا اظهار ‌ ‌ چې حضرت ته ووې دا الله ستار

چې اے دوسته زمانه مې په هر دم ‌ ‌ کړي په دا رنګ کرامات مکرم

چې بل هیڅ نبي مرسل لره دا زیات ‌ ‌ ما ورکړي نۂ دي هسې درجات

او بل دا چې برابر مې ستا په حق ‌ ‌ په دا شان سره مې دوئیل مطلق

## وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ

یعني موږ د ذکر ستا کړ ډېر بلند ‌ ‌ په مشرق او په مغرب باندې څرګند

او په هره شپه او ورځ کښې صاف تمام ‌ ‌ پنځه وخته په بلند اوچت مقام

په دې لویو منارو باندې ستا نوم ‌ ‌ زما نوم مه سره اخلي دې معلوم

أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰه ‌ ‌ أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُوْلُ اللّٰه

د خپل قوم سره نه دي کړ معلوم ما ‌ ‌ د خپل نوم سره ستا نوم کړ موسوم ما

چې هر څوک داوړي په ما باندې ایمان ‌ ‌ نو په تا باندې به هم داوړي عیان

چې پهٔ ما داوړي، رانهٔ وړي پهٔ رسول
ماته هيڅ نهٔ دے هغه ايمان قبول

يعني نهٔ داوُړي پهٔ تابانديٖ ايمٰا کسے
قبول نهٔ دے ماته دا ايمان د ځان کس

او چې نوح وکړ زمانه درخواست سوال
هغه سوال يُ کړ قبول ما ذوالجلال

پهٔ وشيل ددهٔ مې قوم ددهٔ هلاک کړ
د ډوبند ون دکاره واړه مې کل پاک کړ

نو دا رنگ هرهٔ دعا چې تا رسولهٔ
اُمت خپل وغوښته ماکړه قبوله

بدکې دو ئ مې پهٔ بخښش خپل کړه نجات
هم مې دُو يُ ته کړه عطا لوئ درجات

خاتمې مې د سورة بقر اکثر
درته وُ بخښلې واړه سر اسر

چې تفسير ددې دکوع دې پهٔ بنهٔ شان
لکه هسې دې وشيلې پاک سبحان

اٰمَنَ الرَّسُوْلُ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِ مِنْ رَّبِّهٖ وَالْمُؤْمِنُوْنَ ۲۸۵ع

---

د بخُوسونه پخځه بمو نخځه پهٔ شمار
مقرر ستا پهٔ امت کړه ما ستار

ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ۚ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ۝ ۲۶ع

---

بل دے نهٔ د بِرشم قول چې حضرت
مشرف شهٔ چې هر کله پهٔ دولت

پهٔ ديدار باندې د پاک پروردګار
ذکره هم مطالعه يُ د اسرار

او د نفسه او د روحه مجرد شهٔ
روح او نفس دواړه هر يو دا ځاے کښې رد شهٔ

پهٔ قوت هم د ايمان او د عرفان
باقي پاتې شهٔ ددهٔ پهٔ زور عيان

نو دده دا لله رب الوهاب
پاک حضرت ته وُ شهٔ دا رنګې خطاب

اے رسولهٔ يو تېو نګ مشابهت
د صورت ثابت وي ماله صورت!!

او تو که یهودیانو سراسر<br>هسې شان په زبان وائي برابر

## يَدُ اللّٰهِ مَغْلُوْلَةٌ ط [٢٢٧]

---

او لاسونه د الله پروردګار<br>دي تړلي پرې کولے نشي کار

او تو که د نصاراؤ سرابر<br>په تثلیث سره مې ستائي دا کافر

## اِنَّ اللّٰهَ ثَالِثُ ثَلٰثَةٍ ط [٢٢٨]

---

درېم خدائے دے په درې خدایو کښې عیان<br>بدکې بولي برابر دا دوه خدایان

یو عیسیٰ دوېم مریمه یاد دي<br>دا ئې ګوري عبس بوس به یاد وي

او یوه طائفه ماله جسمیت !<br>بدکې دوئي ثابتوي په هر ساعت

نو اے دوسته زما وګوره نېک نظر<br>په طرف ز ماکړه فکر برابر

چې بطلان د من هبونو د دوئي سم<br>تاته[٢٣٢] کله واره ښکاره شي په دادم

## [٢٢٩] فَرَاٰهُ مُحَمَّدٌ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ مِنْ غَيْرِ اِدْرَاكٍ

## [٢٣٠] وَلَا اِحَاطَةٍ وَلَا مِنْ شَيْءٍ وَلَا فِيْ شَيْءٍ [٢٣١]

---

محمد ولیده خپل الله خالق<br>بدکې بې د کیفیته خپل رازق

او هم بې د احاطې نه پاک ستار<br>نه د بل څیز نه نه څیز کښې رب جبار

او نه هم په څه څیز باندې رب رحیم<br>بدکې ولید هسې شان مې رب قدیم

څلو ښتم قول دے دا په تفاسیرو<br>په کتبو د حمه اهل تذکیرو

او تفسیر کښې برابر دي آيات ‌‌ لکه دا ايات و ويلے دے پاک ذات

## فَاَوْحیٰ اِلیٰ عَبْدِهٖ مَا اَوْحیٰ (۳۲)

پهٔ تفسير د والضحیٰ کښې بعضې سم ‌‌ دي وئيلي ووې دا رسول اکرم
چې د دره مې د پاک رب ذوالجلال ‌‌ ديو څو ځيز د نو وکړې ترې ما سوال
جوابونه را کړهٔ ماله پاک رحمان ‌‌ زهٔ پهٔ خپلو شوم سوالونو د پرېښمان
اول ووې ما چې اے خدايه اکبره ‌‌ جبرائيل له دې بوده شپږ لکه پره
تا ورکړي دي ماله دې څهٔ ځين ‌‌ پهٔ بدل د دې را کړے دے عزيز
پاک الله ووې چې اے زما حبيبه ‌‌ پهٔ درګاه زما د هر چا نه قريبه
ستا پهٔ سر مبارک شپږ لکه پهٔ شمار ‌‌ پيدا کړي دي و ښتهٔ ماکړ دکار
د جبرئيل د شپږ و لکو پرو د پر ‌‌ يو و ښتهٔ ماته بهتر دے ستا د پر تېر
اے رسوله د هر يو و ښتهٔ پهٔ تار ‌‌ پهٔ قيامت بهٔ شپږ شپږ لکه ګنهګار
د دوزخ د اوره سخته بهٔ ازاد کړم ‌‌ ستا د هر و ښتهٔ پهٔ سر بهٔ هسې داد کړم
اے رسوله چې جبرئيل هر کله خپل ‌‌ وزرونه چړې پرانځي بالکل
تو مشرق او مغرب و نسي اکثر ‌‌ چې هر کله تهٔ پهٔ ورځې د محشر
ز لفې پرانځې چې تهٔ د شفاعت ‌‌ قاف تر قافه بهٔ کل واړه ستا امت
پهٔ سبب وي د ګناه نيولي ما ‌‌ پهٔ طفيل ديو و ښتهٔ باندې بهٔ ستا
تول بهٔ و بخښم خلعت د بخشش خاص ‌‌ زهٔ بهٔ واغوندوم دوئ ته پهٔ اخلاص
دوېم ووئيل پهٔ هسې شان رسول ‌‌ چې الله ته دے د هر چانه قبول
اے خداوند تاکړ هسې لوې آدم ‌‌ د ملکو پهٔ سجده کړ مکرم
ملائکو وکړه دهٔ ته پهٔ يو ځل ‌‌ دې څهٔ ماله را کړے دے بدل
راته ووئيل الله اے محمده ‌‌ د نبيا نو پهٔ جنود کښې سر آمده

د ملکوتیانو صفت د واره ! — چې آدم ته وه دا وه خاص ستا د پاره
په تندی کښې د آدم چې وو ستا نور — اوستا نور ته سجده وه دا ضرور
نو دا ووې پاک الله ته پاک حضرت — چې آدم دې کړ دننه په جنت
پاک الله ووې چې اے زما رسوله — په درګاه زما د هر چانه تیوله
ما آدم چې په جنت دننه سر کړ — او نو بیا مې د جنته دا بهر کړ
بلکې تا اوستا امت به په دا رنګ — زه دننه په جنت کړم څنګ په څنګ
تو ابد الابد ابه بیا دو سبار — بهرنه کړم وې جنت کښې به قرار
خاص ترپور ابن عباس د پاک حضرت — په دا شان کړے دے ده دا روایت
رسول ووښل اے خدایه تا آدم — په خپل لاس دې د قدرت پیدا کړسم
ملائکو ته دې وکړ دا فرمان — چې زدو کړئ سجده ورته دا آن
خطاب وشه د الله واحد اَحَدَ — چې آدمؑ نه مې اول اے محمدﷺ
پیدا کړے یې اول چې مې ستا نوم — د خپل نوم سره قریب کړ دا معلوم
او په عرش عظیم مې ولیکه بې سیاله — او ثابت مې کړ اول دوه زره کاله
د آدم نه مې وړومبے ته ما رحمان — کل ملکوته مې هم ته کړې عیان
چې د آدم نه وو لا هم نام و نشان — چې ستا نوم مې په هر در د هر آسمان
په خیمو سراپردو په دروازو ! — د طبقو د جنتونو په مزو !
او په حورو او قصرونو د جنت — په جامو و نو زیور په هر خلعت
نوم مې ولیکه په تولو ستا عزیز — جنتونو کښې دا رنګ نشته څه څیز
چې نوم ستا په صفت یاد یې اکثر — هسې شان یکے نه وې پاک اکبر

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ

---

دریم ووې ما چې اے خدایه سبحانه — زما دور ادریس له تا د هسې شانه

بنهٔ مکان دې ورله ورکړې ډېر بلند
څهٔ بدل دے ددې مالره څرګند

تا راکړې څهٔ ددې بدل پهٔ باب
نو دخدا یه ورته وُشهٔ دا خطاب

چې پهٔ تا مې دهغه په کرم ډېر
وکړ هسې د حساب د حده تېر

چې مې تهٔ د عرش مجید باندې دپاسه
ما را وخېژولې پورته بې وسواسه

پهٔ مقام" دقَابَ قَوْسَیْنِ اَوْ اَدْنٰی" تام
تهٔ دا خلکړې ما هسې شان مقام

او ژوندون او مرګ مې ستا بسیار بلند کړ
دا دولت مې بهتر تاله مرګ ژوندن کړ

کَا ادریسؑ نه زیات د حده نهایت
درکړ تالره بهتر مې دا دولت

بله دا ادریسؑ مې پاس کړ پهٔ صورت
تهٔ مې پورته کړې پهٔ ذکر پهٔ صفت

هم مې پورته کړې پهٔ کل خلقت بېشک
بکې دا وَرَفَعْنَا لَکَ ذِکْرَکَ

چې ادریسؑ تو پورې مرګ نهٔ وو څکلے
نو جنت ته نشهٔ دے ننو تلے

او تهٔ بې څکلو مرګ نه ما ستار
پهٔ جنت باندې د ننه کړې قرار

او دیدار زما دې ورکړ برابر
نو پهٔ سترګو د پولو کېنې اکثر

نکه ختم پهٔ دا څاځۍ شو دا تحریر
چې دا شان واڼې پهٔ دا څاځۍ دا فقیر

# غزل

سترګې پرا نحه مشتاقه پهٔ جلوه د رب دیدار شهٔ
سر تر پښو پورې چشمان شهٔ بند پهٔ تا باندې ګفتار شهٔ

د ساقي د رخسار عکس نن جلوه کاندې پهٔ جام کښې
د مستانو صبر ورک شهٔ هم پهٔ ښښته ترې قرار شهٔ

د هر ذرهٔ چې پهٔ عرفان کښې ظلمات بشري ورک شو
هغه ذرهٔ د نور د ربّ هم کې نورالا نوار شهٔ

چې پهٔ کورکښې د بقاؤم ذرهٔ مې عشق دريچه کړ
عاقبت نور د وجود مې دے فاني تهٔ پهٔ رفتار شهٔ

د ازل د نور د پياده دا ذره زما د عمر
شوه د کنَ فيَکوُن پورته بيا حرام ورله اديار شهٔ

د قديم د لوئ دريابه شهٔ شبنم دا مکان پورته
ورک ئې غيب د شهادت کړ پهٔ دا بحره چې اظهار شهٔ

اے معينَ پهٔ پرده د عشق سودا د مخ د يادکړه
هغه وخت چې جهان نهٔ وو آشفته پهٔ خپل نګار شهٔ

څلودم دا چې تا نوح له پهٔ بنهٔ شان
کشتئ ورکړه پرې نجات شهٔ د طوفان

ماله هم زما امت له تا غفور
پهٔ بدل دې څهٔ راکړي دي حضور

خطاب دا ئې د درګاه د لم يزل
چې مې تاله برق درکړ پهٔ بدل

پهٔ يو شب کښې د مشرق تر مغرب پورې
او د فرش ان تر عرش پورې کهٔ ګورې

جنتونه او کرسئ لوح او قلم
او د بيت المعمور هم دے پهٔ يو دم

ددې ټولو بدکې وُدې کړ طواف
او امت ستاله مې هسې د ننګي معاف

مسجد ونه مې کړل دهٔ ته عنايت
نو هر کله چې ودځ را شي د قيامت

حکم وُشي د دوزخ د تلو د پاسه
دريابونه دا ورموج کښې شي بې قياسه

پهٔ همه جماعتونو کښې عُنَيان
زهٔ د ننه کړم بهٔ ستا کل اُمتيان

هم پهٔ دې کښې به ئې زهٔ د دريابونو
د اورونو دوزخونو عذابونو

هم ددې طوفان سېلانه برابر
هم د دوئ د لوئ موجونونه اکثر

پهٔ يودم طرفة العين کښې لکه برق
ټول بهٔ تېر کړم هيڅ بهٔ پوه نشي پهٔ فرق

بلکې ستا امت بهٔ هيڅ نهٔ شي آزار
ددې کل سختو بهٔ نهٔ شي خبردار

ثنا تاله لا نُعَد ده ستاره
علم فضل کرم تاله دے جباره

پنځم وو دا حضرت خير الانام
يا الله تا ابراهيم عليه السلام

د نمرود لعين د اوره ږ امان کړ
او هغه ته دې خپل ووئيل خليل ؑ
ور ته وا غوستوهٔ دا عجب خلعت
سنګي ماله او امت له دې زما
د درګاه نه د الله رب الوهاب
او چې تا ته او امت ستا ته اکثر
اول دا چې د دوزخ اور مې تما م
او تهٔ وبللې ما پهٔ خپل حبيب
يله دا چې ابراهيم مې پهٔ کمال
د دوستۍ پهٔ دولت ماکړ مشرف
او امت ستا مې سرته دې ګناه
لکه دا د دوی پهٔ شان سره آيات

هم هغه اور دې پرې باندې ګلستان کړ
او خلعت د دوستۍ رهٔ ته تا جليل
نوش کړ جام دې پرې د خپل بنهٔ محبت
دے بدل کښې دې څهٔ ما ته کړل عطا
راغے هسې پهٔ دا شان سره خطاب
ما بخشش د دې درکړے دے بهتر
پهٔ تا هم ستا پهٔ امت مې کړ حرام
نوم مې ستا کړ د خپل نوم سره قريب
عبادت او نبوت سره پهٔ حال
خيال ئې بل نې د دوستۍ شهٔ بر طرف
پهٔ دوستۍ خپلې قبول کړ ما الله
نازل کړے دا آيات دے ما پاک ذات

## إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ التَّوَّابِيْنَ وَ يُحِبُّ الْمُتَطَهِّرِيْنَ ع۳۴

په تحقيق سره الله پروردګار
د ګناه د فاعلانو نه عياق

ګڼي دوست توبه کوونکي توبه ګار
نا پاکه نه پاکوونکي د خپل ځان

## بيت

ګنهګار و ته وواٺي زړهٔ له ودګړي صفائي
شپږ م وُوې حضرت يا پاکه ستاره
د جنت ګډ ورے د پر بنهٔ لا مشاني

د طرف د دوست وفاده تا سوکړې بيوفائي
تا په حق دا سماعيل ذبحي د پاره
تا دا و ليږ ه هغهٔ شهٔ قربانې

ماله څهٔ راکړي تا دي ددې ځا ـــځ
حکم د شهٔ دا د پاک غني پاک خدا ئ

ترسایان او یهودیان بهٔ پهٔ قیامت
قربانی بهٔ کړم دوئ کل ستا د امت

په دوزخ کښې به یې وا چوم ضرور
ستا امت بهٔ ترې امان کړمه حضور

لکه هسې دې حدیث کښې پاک سرور
هسې شـان کړے بیان دے پیغمبر

## (۲۳۵) انه یعطی الی کل مؤمن و مؤمنة یهودی و یهودیة فیقال له القه فی الجحیم و مرسالما الی النعیم

---

پهٔ تحقیق سره پهٔ ورځ بهٔ د قیامت
د دوزخ د تیر به وي پهٔ وخت هیبت

پاک الله بهٔ مؤمنانو لـه اکـثر
ورکړي ښځي له به ښځه نر له نر

یهودی او یهودیـان بـه رب غفور
مؤمنانو له بـه ورکاندي ضـرور

نو به دوئ ته حکم وکړي پاک سبحان
پهٔ بدله د ځان نر ښځي یـهودیان

دوزخونو کښې گـډ اد کـړئ امانت
تا سو تیر شئ ښهٔ جنت تـه سلامت

اووم ووې حضرت یا رب بـه قـدیره
تا صالح له ورکـړه اوښهٔ چې نظیره

ماله څهٔ دې ددې او ښـې پهٔ بدل
دي راکـړي حکم وکـړلـم یـزل

درکـړي ما پـهٔ مدیـنـه کښې سـکونت
هـم مې درکړ مال د لوټ د غنیمت

هم قرآن مجید مې درکړ تا تـه پـر پښتو
محبت مې پـهٔ زړهٔ ستـا د امت کښښود

چې د اوښې د صـالح تـه سراسـر
ستا پهٔ حق کښې دا د حده دي بـهتر

اتم ووې پاک سرور خـیر الانـام
اے خداونده تا دور لوط علیه السلام

پـهٔ تیارهٔ د شپـې کښې تـا د محبت
نجـات ورکړ د امت د مشقت !!

پـهٔ بـدل ددې دې ماله څـهٔ قـدیمه
دي راکـړي اے الله رحیم کـریمه

حکم د شه چې مې تاله په تور شب — د تیرې په هغه غار کښې ما پاک رب
نو د قوم ناپکار نه بهتر د پر — نجات درکړ ما د ده نه د حد تیر
نهم دوې دا حضرت آخر زمانے — دور زما هو دله دِ باد وزکړ دا شان
ده په باب د کافرانو هلاکت — مؤمنانو له سبب وو د راحت ۱۱
په بدل ددې دې مالره تیار — څه راکړي دې ته ما ته کړه اظهار
حکم وُشه چې په ورځ به د محشر — تالره او امت ستاله په بهتر
بخشش ورېه کړم له دیشه په دا شان — چې مخلوق وي د صراط په پُل روان
او یو قسم به د کندې د دوزخ — باد را والوزوم هسې گرم یخ
په کوهو د دوزخونو کښې یو وار — سردلاندې تول کفار به کړي گوزار
ستا اُمت سره به وکاندي امداد — د طرفه د شا دوئ به شي دېر ښاد
د دوزخ د سرکش اور نه سلامت — زه به تېر کړم په جلدي کل ستا امت
چې به یو وبښته ددوئ نه شي تغیر — په دوزخ باندې به تېر کړم هوا گیر
لسم دوې پاک حضرت هسې تمام — اے خداونده تا موسیٰ علیه السلام
په کلیم خپل وُباله تا رب غفور — ماله څه بدل ددې را کړ حضور
حکم وُ شه دا الله د حیم رحمان — په دا قسم برابر په هسې شان
كَلَّمْتُ مُوسَىٰ عَلَى الطُّورِ — وَكَلَّمْتُكَ عَلَى بِسَاطِ النُّورِ
د موسیٰ سره په سر مې د کوهِ طور — ما خبرې وکړې ده سره ضرور ۱۱
او له تا سره د نور په ښه بساط — رازمې وکړ دېرد هدو په نشاط
حضرت دوې الٰهي تا واحد ذات — دور زما موسیٰ[۱۴] له وردې کړ تورات
څه بدل دے تا راکړے ددې. ماله — حکم وُ شه په دا شان د ذوالجلاله
مادرکړې تالره ایات کرسي ده — په زبان د عربي ده نه فارسي ده
حضرت دوې الٰهي پاکه جلیله — تا موسیٰ[۲۱] د قوم سره د رود نیله
په دا رنگ سره کړتېر چې ئې قدم — په او بو دَ رودِ نیل هم نشته نم

ماله څهٔ را کړي تا ددې بدلے
حُکم وُشهٔ پهٔ دا شان د لم یزل

تاته هم به ستا امت ته به بهتر
بخشش وکړم بهٔ ددینه سراسر

د قیامت پهٔ ورځ به ستا امت دا شان
پهٔ دوزخ هولناک تیر کړم پهٔ یو آن

چې لونده لمن د دوئ به هم ضرور
وُچه نشي زهٔ به ئې تیر کړم پهٔ سرور

حضرت ووې إلٰهي ستا دهٔ ثنا
رود زما موسیٰ له ورد دې کړه همسا؟

چې د ټولو ساحرانو سحر بد
پهٔ یو دم ئې کړ نابود او تمام رد

پهٔ همسا کښې دې ددهٔ هم د یاسه
یو زر کښېښوې معجزې سوا د قیاسه

ماله څهٔ دې بدل ددې کریمه
دې دا کړې حکم وُشهٔ د قدیمه

اے حبیبه چې پهٔ ورځې د قیامت
پهٔ زرګونو ګناهګار ستا د امت

کړي سروته چې د توري خاورې پوړته
او حیران نظر بهٔ کاندې وهر لورته

ژړیږ ونکي به وي واړه پهٔ خپل حال
بیلکې تالره بهٔ زهٔ پاک ذوالجلال

لاس کښې درېږ کړم همسا د شفاعت
پهٔ یو ځل بهٔ ګناهونه امانت

د امت ستا به نابوده کړي تمام
د همسا چې د موسیٰ علیه السلام

د تمامو ساحرانو سحر خپلے
پهٔ یو دم بهٔ ئې نابوده کړ بالکل

پهٔ همسا د شفاعت به پهٔ دا رنګ
ستا امت نه د ګناه به کړي دور زنګ

ټول امت به وي بښهٔ پاک او بېګناه
پهٔ جنت کښې به ئې درون کړم زهٔ الله

## اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ عَلیٰ کَمَالِ فَضْلِهٖ وَکَرَمِهٖ

---

حضرت ووې اے خداونده تا ستار
تا موسیٰ لره پوره دولس پهٔ شمار

د سنګ سخت نه دې روانې کړې چینې
چې اوبه ئې وې صفا تر آئینې

او پهٔ وخت کښې د حاجت بهٔ ئې ترې څښلې
قبیلې دولس چې دهٔ سره وسلې

٣٦

دا اولاد دو برابر دا سرا سیل
د دوئ هرې قبیلې له تا جلیل

کړه یوه یوه چینه دې مقرره
ماله تا څهٔ بدل راکړه اے اکبره

پاک الله دوی چي اے زما رسوله
په درګاه زما عزیز قبول مقبوله

تا ته کړے مي بخشش دحده ډیر دے
دحسابه دشمارې دحده تیر دے

د قیامت په ورځ چي ستا امتیان تږي
د قبرونو نه راپورته شي هم وږي

زړونه سوزي به یې د تندې نه ضرور
وچوشوندو به یې نیولي وي وچ بور

د قیامت به پرې پرته وي ډیره ویره
نو پیاله به بیا د حوضه د کوثره

بلکې هم به د چینې د زنجبیل
او هم پاک شراب هم آب د سلسبیل

هم به ماء معین هریو امتي ستاله
د جنت اویا اویا پیالې بې پیاله

ملک څښي له درورې به برابر
نو چي هغه شربتونه سراسر

وڅښي تندې به یې شي ورکې هغه دم
او تا وهول د قیامت نه به زړسم

نجات بیا مومي نو دا مهرباني
زما زړ کړه ته بنه ده لاشاني

د چینونه د موسی علیه السلام
په زړ خوله به بهتروي دا تمام!

او بل دا یو لسم حضرت سرور
وکړ دا عرض د پاک الله په در

چي اے خدایه تا رحیم کریم غفور
رور زما داود له وردي کړ زبور

ماله څه دي په بدل دي رحمانه
دي راکړې حکم وشه د سبحانه

چي مې درکړ تالره سورة انعام
فضیلت ده په کل زبور دے تمام

ع۳۷

زیات دے ډیر نو که څوک چرې یو کړت
ولولي یو ځل دا انعام دا سورت

ګویا لس کرته یې ختم کړ زبور!
او په یو روایت دا وایي حضور

حضرت ووې اے خداونده تا په لاس
د داود اوسپنه نرمه کړله پاس

او د موم په شان به اوسپنه شوه نرمه
چي په لاس کښې د داود به ته وه ګرمه

څه بدل ددې راکړے دے تا ماله
حکم وشه هسې شان د ذوالجلاله

چي اے دوسته زما ته د زما حبیبه
د هر چانه په درګاه د رب قریبه

څه که اوسپنه په لاس کښې د داود
د اوبو هسې کړه نرمه ما ودود

دا ستا زړه مې په رحمت په شفقت
د کل وارو خلائقو امانت

لکه موم هسې کړه نرم ما پاک ذات — بلکې دا دے په دا شان سره آیات

فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ لِنْتَ لَهُمْ (۲۳۸)

---

او اګرچې مې داوود علیه السلام — خلیفه د ز مکې وُباله تمام

(۲۳۹) يَا دَاوُدُ إِنَّا جَعَلْنٰكَ خَلِيْفَةً فِي الْأَرْضِ (۲۴۰)

---

نو ته هم پهٔ دې خلعت مې برابر — مشرف کړې ما پهٔ دې آیات اکثر

(۲۴۱) جَعَلَكُمْ خَلٰٓئِفَ الْأَرْضِ (۲۴۲)

---

دولسم حضرت سرور خېر البشر — ووې هسې پاک الله ته برابر

اے خداوند تا رحیم کریم قدیم — سلیمان لره ورکړے ملک عظیم

ماله څهٔ دې پهٔ بدل ددې تیار — دې داکړې تا حلیم علیم ستار

حکم وُشهٔ پهٔ دا شان هغه ساعت — تاله درکړ سلطنت مې د جنت

هم جنت کښې به تهٔ ئې مُتَرَجِم — د کل واړو جنتیانو پهٔ هر دم

چې هر کله یو حاجت چې برابر — د نور اهل د جنت چې کړم ترسر

نو او یا او یا حاجته بهٔ بنهٔ غوره — ستا او ستا د امت زهٔ بهٔ کړم ترسره

حضرت ووې اِلٰهي تا پاک اکبره — سلیمان لره تا باد کړ مسخّره

چې پهٔ یوشپه ودُم کښې لاره بهٔ ئې وهله — د یوې میاشتې پوره بهٔ یو ځله

ماله څهٔ بدل ددې داکړ تو ابه — حکم وُشهٔ هسې دا د پاک جناب

ته مې کم طرفة العین نه پهٔ یو دم — پهٔ اوده و د ملائکو باندې سم

دَ مَلَکو مقربو پهٔ خانګو نو — پاس د دوئ مطلب دواړه حاجتونو

راو ستلے ما د لکه کالو پهٔ لار — او براق د رفرف مې ستا کړي تابعدار

دا کوم مهربانۍ زما بهتره — سلیمان علیه السلام نه ده دا غوره

د یارلسم رسول حضرت آخر زمان — ووې پاک الله ته هسې پهٔ دا شان

چې یونس علیه الصلوٰة والسلام — د د دې ګېډې و د مهو خلاص کړ تمام

څهٔ بدل ددې دا کړے دے تا ماله — حکم وُشهٔ پهٔ دا شان دَ ذوالجلاله

چې اے دوسته عنایت مې پهٔ تا دېر — ما دے کړے د حساب د شماره تېر

د سیاه قبرونو کل بهٔ ستا امت — د صراط بهٔ ئې کړم امن پهٔ قیامت

څوارلسم حضرت سرور خیر البشرؐ — ووې دا پهٔ در د پاک الله اکبر

ور کړه حضر له چینه دې د حیات — څهٔ بدل دا کړ ددې تا قدسي ذات

حکم وشهٔ چې مې تا ته دېر بهتر — له دې کړے عنایت دے سراسر

پهٔ جنت کښې مې چینه د سلسبیل — او شربت مې ددې هم د زنجبیل

چې پهٔ ذرځله د آبَ د حیاته — لطیف تره هم بهتر دده ترې زیاته

بنځلسم ووې حضرت چې اے سبحانه — تا عیسیٰ علیه السلام له له دې شانه

چې څوا پڅه دې د جنت کړه در عطا — څهٔ بدل دا کړے ماله ددې تا ؛

حکم وُشهٔ چې څوا پڅه د عنایت — ما د پاره برابر ستا د اُمت ؛؛

ذخیره ایښې ده ما الله اکبر — دا بهٔ ورکوم زهٔ پهٔ ورځې د محشر

حضرت ووې چې اے خدایه تا جلیل — چې عیسیٰؑ له عطا دې کړ انجیل

ماله څهٔ دا کړې تا ددې بدل — حکم وُشهٔ پهٔ دا شان د لم یزل

چې ما درکړې تا له سورة اخلاص — د همه انجیل نه دېر دے بهتر خاص

حضرت ووې اے خداونده تا سبحانه — چې عیسیٰؑ دې پاس داخل کړ پهٔ آسمانه

ماله څهٔ بدل ددې دا کړې د رحیمه — حکم وُشهٔ پهٔ دا شان د رب قدیمه

چې مې ته پهٔ شاهد د شاهدانو — کړې بلند مې پهٔ همه اذان ګویانو

چې پنځه ځله پنځه وخته ضرور — دا اذان کوي په هسې شان حضور

أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ

أَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُولُ اللّٰهِ ۳۳۳

---

شپاړسم ووې حضرت آخرزمان — اے خداوندہ تا رحیم کریم سبحان
اسرائیل اولاد له منّ سلویٰ ورکړ — هم دې ابرسورے پاس ددوئ په سرکړ
من پاله شي برابر ترنجبین — خوږ په مثل برابر وو د ګبین
او سلویٰ مرغان بلل شو چورلټ — د کمترې نه واړه ترمرغټ
څه بدل ددې دې مالره ستاره — دے داکړے حکم وُشه د جباره
چې مې ستا او ستاد پاره دامت — مقرر کړ د دنیا عقبیٰ نعمت
او هم دوئ لره مې سورے اوږدزیات — همیشه د جنت ورکړ ماپاک ذات
او هم د بربني اسرائیل مې په سبب — د ګناه کړل بد منونه ماپاک رب
میلوګان او بد لیوګان او شادوګان — ترې نه جوړ کړ ما قهار جبار یزدان
ستا امت به په دا شان نه کړم بدل — اوکه وُشي ستا امت نه بد عمل
توبه دوئ لره تر ورځې د قیامت — زه به ورکړم برابر دوئ له فرصت
پاک الله ووې چې اے زما رسوله — په درګاه زما د هرچا نه قبوله
ته مې بزرګ کړلې په هسې صورت تل — چې دده په مثال نشته سورت بل
په تورات انجیل زبور کښې برابر — نشته نورو کتابونو کښې اکثر
او هفه دے فاتحه سورة صاف سم — یو آیات ترې په دا ځائے کښې دے رقم

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ ۴۴۴

چې هرڅوک وُوائي دا سورة تمام — د دوزخ اور به په ده کړمه حرام

هم به يې سپک کړمه عذاب د مور او پلار — او اکثر که مشرکان وي برقرار

ثنا تاله ده لائقه په هر حال — چې رحيم کريم قديم يې ذوالجلال

دلبران چې په جهان ديره دي دلبنده — ستا د حسن جلوه ده تر دوي بلنده

که د حسن په جهان شمعې دي جمعې — ستا د مخ په شمع سوزي دغه شمعې

هسې نور دې د جبين لامع منير دے — چې طاقت د هر پېردې ورته حصير دے

سلاطين د کونينو ستاله نوره — منور دي په افلاکو هم مسروره

نور د مخ دې زيات د عرش او د کرسي دے — خاصه نور دې له مطلع د قدسي دے

ته کامل يې مکمل د کوم کماله — ته مظهر يې د کوم نوره د جلاله

د روح سترگو دي موندلے له تا نور — نور د حق کوې شعله له تا ظهور

ما په تا هسې رارے دے ايمان — چې به نه وي زيات طاقت ترې دا شان

ده ثمر يې دے په ختم کښې لرلے — د آئينې رنگ يې عجب دے ترې ايستلے

پرې ظهور يې د خپل نوره کړ مشعل — آئينه يې ستا د ذات کړه پرې صيقل

نشته سترگې د هر يو نور البصر — چې د حسن د بل ځائے ورکړې خبر

خاصه نور دې د سلطان دے د عالم — چرته ته چرته او به خاورې آدم

ته آئينه يې هم د دوست د پاک جمال — هر لحظه يې په آئين او په کمال

نه فلک له تا محرم شه نه ملک — چې يې راز د اوحی ووې له تا کلک

هسې راز وو چې يې روح نه وو محرم — خدائے وئيل او محمد اوريده سم

دي بحر د وصال چې نه وو فرق — دے ويونکے اوريدونکے په کښې غرق

څوک چې غرق شه په درياب کښې د هوا — اوبو لاندې کړ د سر هات تر پا

د گفتار د اوريدو ميدان يې تنگ شه — دوئيلو اوريدو سيل يې يکرنگ شه

او له دوئي د قيد ما دغه وتے مطلق وو — که قائل وو که سامع ذو هغه حق وو

چې احمد يې کړې نام و بې نشانے — ميم دوهم شه د ده د نوم پښتنه

د احمد میم شهٔ بېرون یا ئي احد شهٔ
د دوئي رنګ شه او چت ورک ئي عدد شهٔ

بس کړه نوره غواصي ددې دریاب [۲۵]
نه چي غرق شي دا دریاب دے ناپایاب

نور څهٔ مهٔ وایه خواجه معین الدینه
ځان پهٔ خپله هلاک نهٔ کړې دیقینه

نغمه واوره د سرنا ده نه د نیو [۲۶]
مستي واوره د ساقي ده نهٔ د مېو

موږ چي مست شو له دیدنه د ساقي
د فنا نه چي شو تېر نو د شو باقي

دا جمال به ئې کړي دور کله نقاب
خدائے تعالی زموږ عالم دے باصواب

پهٔ بیان د مونځ روژې د فرض کېدو
د معراج پهٔ شپه ددې فرض کېدو

د حبیب او د محبوب چي سوال جواب
او هر کله چي دا زونه ددې باب

# أَوْحىٰ إِلىٰ عَبْدِهٖ مَآ أَوْحىٰ

چي شو ختم او هم واوره کلمات
نهایت ته سرانجام شو هم حالات

پس د هغې د جناب رب الارباب
پاک سرور ته وُشه هسې شان خطاب

چي اے دوسته پهٔ تا هم ستا پهٔ امت
نن شپه دا ځلهٔ کېږي پرې به دمه خپل خدمت

چي شپه ورځ کېږي دِ پنځوس وخته پهٔ شمار
نو مونځونه دي کوي دوئي برقرار

او شپږ میاشتې دي روژه نسي پهٔ کال کښې
نو ما وُوې پاک الله ته پهٔ دا حال کښې

چي اے خدایه ماته کم کړه پهٔ دا شان
کمول راته پنځه پنځه سبحان

نو آخر پهٔ شپه او ورځ کېږي برابر
شه پنځه ویشت وخته مونځ شهٔ مقرر

او ددې میاشتې شوه روژه پس له دې کاره
حکم وُشهٔ هسې شان د پاک ستاره

چي قبول دې کړل دا یا زما حبیبه [۳]
د هر چا نه پهٔ درګاه زما قریبه

حضرت وائي چي زهٔ چپ شوم هغه دم
او د شرمه مې څهٔ نهٔ وئیل پهٔ قسم

دوباره وُوې الله زما رسوله [۴]
چي دې دا مونځ او روژه کړله قبوله

نو ما وُوې او قبول مې کړل امان
نو بیا وُوې پهٔ دا شان کریم رحمان

یا رسوله چې هر څوک کوي اقرار ‌ ‌ ‌ دیو والي خاص زما رحیم ستار
ماله نه پیدا کوي چې شراکت ‌ ‌ ‌ خاص هغه له مې ورکړے دے جنت
او هر څوک چې په یو والي سراسر ‌ ‌ ‌ اقرار نه کوي زما واحد اکبر
چې زما په شراکت باندې وي څو بس ‌ ‌ ‌ خاص هغو لره به ورکړمه دوزخ
او جنت مې کړ په دوي باندې حرام ‌ ‌ ‌ یا رسوله زما واوره دا کلام

## سَبَقَتْ رَحْمَتِیْ عَلیٰ غَضَبِیْ فِیْ اُمَّتِکَ

په امت ستا باندې ما رحیم پاک رب ‌ ‌ ‌ خپل رحمت مې کړ وړومبے پس مې غضب
یا رسوله ته په ټیز زما بزرګتر یې ‌ ‌ ‌ د نور کل مخلوقه ته ماته بهتر یې
په قیامت به تا په هسې رحمتونو ‌ ‌ ‌ هم په ښو مهربانو کرامتونو
او په بزرګو به دې کړمه مکرم ‌ ‌ ‌ چې شي پاتې تعجب کښې کل عالم
او که وي رضا دې یا زما حبیبه ‌ ‌ ‌ د هر چا نه په درګاه زما قریبه
نو چې ستا او ستا د پاره د امت ‌ ‌ ‌ ما په خپل قدرت کامل او مرحمت
چې ما کوم کوم نعمتونه ښه څرګند ‌ ‌ ‌ هم ځایونه په جنت کښې لوئې بلند
پیدا کړي دي ته وګوره دواړه ‌ ‌ ‌ نو ما ووې ډېره ښه ده یا ستاره
چې ما وکتل نو پس وشه خطاب ‌ ‌ ‌ د جنابه دالله رب الوهاب
اسرافیل ته دا چې ووایه عیان ‌ ‌ ‌ هر بنده امین زما ته په دا شان
نعمتونه او ځایونه سراسر ‌ ‌ ‌ په جنت کښې چې د پاره د سرور
او د پاره د امت د محمدؐ ‌ ‌ ‌ پیدا کړي تیار کړي ما احد
همه واړه ده ته وښایه دا دم ‌ ‌ ‌ او د زړه دده نه دور کړه بند د غم

شاد محمد چې حضرت لرې پیشوا
صدق ټینګ کړه تا به نه کړي بې نوا

په واحد سره اقرار کړه د احد　　　هم کوه په رسالت د محمّدؐ

# غزل در نعت سرور کائنات

# علیه اکمل التحیات

---

اے چې پیلے ئې په دوست محبوب الله پاک اکبر
　　ته شهنشاه د کل نبیاً نو کړې پاک رب مقرّر

څوک به دِ څهٔ حساب کوي ستا د لوړه رسولهؐ
　　بحر اعظم به په کاسه پیمانه نهٔ کړي بشر

نور دې خالق د کل مخلوقه نهٔ اول پیدا کړ
　　چې نهٔ مَلَک وو نهٔ فلک نه عرش کوسي برابر

د تمامي پیدائش ته کړلې سبب رب رحیم
　　آخر پیدا کړلې الله ته خاتمِ پیغمبر ۴۹۸

تاج د لولاکؐ دې په سر ایښے دے الله رحمان
　　یو پښه په زمکه بله پاس د عرش عظیم دې په سر

مسخ او فسخ رب کړه لړې ستا د محنه بالکل
　　اُمت ئې ستا د نور اُمت نه سر بالا کړ بهتر

ستا د دوستانو ځائے فردوس ماویٰ جنت دے مقام
　　د د شمنانو ځائے دې دے سعیر جحیم او سقر

د شمن دے ستا د خدائے د شمن دوست دې هم دوست دے د خدائے
　　همه اُمت به تا ته وُ بخښې په ورځ د محشر

## فصل دے نولسم[١٩] په عجائباتو د جنت کښې

## چه په شپه د معراج احمد[ص] ته سره د الطاف[٢٢٩] ښو دلې دي

عالمانو تمامي د فن سیر و — بلکې هم د حدیثاتو معتبر و
چې جزا دې ورکړې پاک پروردګار — دوی له چې د نیکه کوي دا کار
په آخر او په دنیا دواړه جهانه — نیکي بیا دې مومي دوی د پاک سبحانه
تصنیفاً تو کښې دا رنګ دي دوی لیکلي — هسې شان مې په کتبو[٢٥٠] کښې دي لید لي
چې هغه سلطان د تخت د جلالت — پاک سرور خیر البشر رسول[ص] حضرت
فرمائیلي دي چې زه الله جلیل — نو سره یې کړمه زه دا سرا فیل[ع]
جبرائیل ته یې رخصت کړو برابر — د جبرئیل چې په ماؤ لګید نظر
نو فی الحال یې ووې هسې هغه دم — په دا شان لکه په دا ځائے دې رقم

ستا دښمنان به کړي سر ښکته کنه پورته بسته

اور د دوزخ کښې به وي لاندې باندې زيرو زبر

که پيدا کړے نه وے ته الله رحيم وقديم

نه به آسمان وو نه جهان او نه به شمس و قمر

اے شاد محمد که غلام او سے د رسول مقبول

صدق محکم کړه لمن ټينګه کړه په لاس د سرور

---

## اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ اَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهٗ

نوماوُوې پهٔ جواب کښې هسې شان — لکه دا ځاۓ کښې ليکلي دي عيان

## اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللّٰهِ الصَّالِحِيْنَ ه

پس د هغې اسرافيل عليه السلام — جبرائيلٔ ته وکړ دا رنګې کلام :

اے جبرئيله حکم کړے دے سبحان — چې مې دوست بوځې جنت له پهٔ دا ان

او هغه څيزونه خاص چې دهٔ د پاره — هم ددهٔ امت د پاره مې .ې شماره

په جنت کښې پېدا کړي دي اکثر — ورته وُ ښايه کل واړه سرا سر

پس د هغې جبرئيل مې ونيو لاس — دروازې له يې د جنت راو ستم پاس

او د هغو عجايبو نه ضرورا — پهٔ جنت کښې چې ماوُ ليدل حضور

او اول مې دجنت ليدلے در ودوه — ټو دا ور دو برابر د سرو زرو

دوه تنسې ئې دې پلنوالي کښې پهٔ شمار — وه پينځو سوو کالونو پهٔ کښې لار

او چت والے وه زر کاله لار د قياسه — او يوه بالاخانه وه پرې د پاسه

نو و لاړه وه دد ې دروازې وړاندې — د پينځو سو زرو کالو پهٔ لار ياندې

او نو د غه دروازه پهٔ د غه ځاۓ — ترتيب کړې وه وو دا حکمت دخداۓ

او ددې بالاخانې بلندي سمه — د پنځو سو زرو کالونه وه کمه

چې مېره ميدان صحرا هم د قيامت — د پنځو سو زرو کالو سلامت

لار اوږده ده او هم پلنه پهٔ دا شان — پهٔ هغې ميدان صحرا بهٔ مؤمنان

پهٔ جلدي سره کړي قطع دا مقدار — د کوشک دا پنځوس زره کاله لار

# كَمَا قَالَ اللّٰه تَعَالىٰ فِيْ يَوْمٍ كَانَ مِقْدَارُهٗ خَمْسِيْنَ اَلْفَ سَنَةٍ ه ۵۲ع

نو پس دا بالاخانه پاک قدیم رب — او په دي اندازه ده په دا سبب
چي هر کله هر بنده مؤمن چي سر — د قبرونونه کړي پورته برابر
نو دا سترګې به د دوئ زر په یو ځل — وګوري بالاخانه باندې اول !!
د جنت بالاخانه باندې نظر — اول وګوري د دوئ به پرې اکثر
او مزل کول د هغې بیابان — د قیامت په دا حساب په هسې شان
د پنځوس زرو کالو لار عیانه — دا مزل به کاندې قطع په آسانه
مؤمنان چي د قبرونو کړي سر پورته — زر نظر به برابر وکړي هلته
نو په دي بالاخانه باندې د پاسه — دوي به ووینې حوران ښائسته دقیاسه
هلته به یو ترسله کړي ګفتار — واخلې دا به چي تلوار وکړئ تلوار
او هم دوئ به د حورا نو په لید و — هم د دوئ به په خبرو او ورېد و
نو هغه صحرا به قطع کړي په زود — زر به ورسېږي ځائے ته د مقصود
دو پنځم هسې دي ویلي پاک سرور — چي په هغې دروازه مې برابر
ود څلورسوه حلقې پنځونه تل — د یاقوتو مرغلرو ولیدل!
او په پنځ د پنځونو کښې تیار ده — یو حلقه ده نهایت لویه د شماره
د یاقوتوسرو خالي دد پنځ اکثر — چي مي وکړو د حلقې په پنځ نظر
دي حلقې مي څلور زره عیان — شهرستانه ولیدل مي په ښه شان
او په هر یو شهرستان کښې زیاتو کمي — څلوېښت زره مي کنګرې ولیدې سمې
او په هره کنګره ما هم څلوېښت زره — ملک ولیدل ولاړ وو سرد سره

او نیولي وو دوه دوه تالي پهٔ لاس
صاف نیولي وو لاسونوکښې دوئ پاس

یو تالي کښې به جامه وه د جنت
بل تالے به ډک د نوره وو او چت

حضرت ووې جبرئیل ته مې د حال
ما پوښتنه د دوئ وکړه هغه مال

جبرائیلؑ وویل ماته یا رسولﷺ
پهٔ درګاه درب رحیم کریم قبوله

پاک الله دا ملائیک پهٔ خوا تمام
پید اشَوْ نه د آدم علیه السلام

اَتهٔ زره کاله دا مَلَک ضرور
پیدا کړي دي اول الله غفور

او ولاړ پهٔ دې مقام دي پهٔ دا شان
دا تالي لاس کښې ورکړي دي سبحان

دا تالي بهٔ پهٔ تاهم ستا پهٔ امت
دا مَلَک قربانوي به هر ساعت

بدلې هر کله چې ورځ شي د قيامت
خاص پهٔ حکم به درب ستا کُل امت

دوئ پهٔ دې دروازه کښېږ دي بهٔ قدم
دا مَلَک مبارکي به پهٔ هر دم

ورکوي مبارک باد او دا تالي
پهٔ سرونو به د دوئ کاندې خالي

دا تالي به کړي قربات پهٔ دوئ تمام
پس د هغې جبرئیل علیه السلام

دروازه ئې وُخوزوله د جنت
او رضوان وکړ پُرسان هغه ساعت

جبرئیل امین ته ئې ووې چې ته څوک ئې
اورا غلے د کوم ځائے او د کوم توک ئې

جبرئیل وې جبرئیل یُمه ښکاره
د رضوان ووې مل دے څوک له تا سره

جبرئیل ووې راسره دے محمدﷺ
خاص محبوب او هم رسول دے دا حد

رضوان ووې وخت ددهٔ د نبوت
د سپېدلے دے د پاک نبي حضرت

جبرئیل ووې چې او نو بیا رضوانؑ
ووې هسې ده ثنا د پاک سبحان

د جنت ئې پرانسته دروازه دَر
وائې هسې پاک سرور خیرالبشر

او ددې ددوازې ما زنځیر جرنده
د چاندۍ د سپینو زرو وُلیده

او در شلې وې ددې ود د ګوهرو
بازوګان مې وُلیدهٔ د ښو جوهرو

ما سلام رضوان ته وکړ پهٔ شتاب
د رضوان وکړ د سلام زما جواب

او هم زېرے وکړ هسې پهٔ ما باندې
یا رسولﷺ ته دَخپل مخلوق دوړاندې

ستا د پاره دے پرد یے اول جنت
بلکې هم دے ستا د پاره د اُمت

دد پُم ما خلیفه گان نوحُ دد رضوان
وُ لیدهٔ مې پهٔ دا طور پهٔ دا شان

نو اتهٔ خلیفه گان وو برابر
دجنت پهٔ دد یو یو وو مقرر

او پهٔ هرهٔ دروازه د جنت باندې
کښېښولي وو د خُان د حکم لاندې

او پهٔ حکم کښې د هر خلیفه غوره
نور مَلَک وو صاف اوهٔ اوهٔ صد زره

درضوان وو خاص اویا زده پهٔ شمار
امیران چې د هریو امیر قرار

اویا زده وو لښکر د یو اکثر
تسبیح دا وو د رضوان او د لښکر

# سبحان الخالق العلیم سبحان الکریم الاکرم

# سبحان المثیب من اطاعه جنات النعیم

۵۵۳

---

پس له هغې رضوان ماته جنتونه
کړل ښکاره پهٔ کښې بېحده نعمتونه

کهٔ صفت ئې وکړم ټول عمر تمام
نهٔ هېڅ نه بهٔ کړے شم وایه نام پهٔ نام

خلودم مې د ہوا لونه د جنت
وُ لیدل مې پهٔ دا شان پهٔ دا صفت

یوه خښته ئې وه د سرو بله سپین زرو
او یوه د یاقوت بله د گوهرو

او یوه د زبرجد و وه بل وښه
ضم کولو له ئې د مشکو ېُ وه خټه

او میلن واله برابر دد ې دہوال
او یا کاله لاردود صافه پهٔ دا حال

او پهٔ یو روایت وائي پنځوس کاله
بلندي ئې وه زدکاله لار سنباله

نو دا رنگې مصفا وو عجب صاف
چې د ننه ښکارېده بهر اطراف

او پهٔ شان د آئینې عکس روښانه
د هر څیز ښکارېده هم اوهٔ آسمانه

آن د عرش عظیمه پورې بلکې نورې
اوهٔ زمکې ان د تحت الثرٰی پورې

صفایه کښې مې د دوئ د ہوال ضرور
و لیدل هم خاوره خټه د کافور

هم يې ختيه وه د مېښکو د عنبرو ‏ ‏ او وابښه يې وو د زعفرانو د سرو زرو

او ورت کاڼي يې وو له دې قسمه جوهرو ‏ ‏ د ياقوتو زمرّدو د ګوهرو

ځينې ما بالاخانې ولیدې د ډېرې ‏ ‏ د ياقوتو سرونه بعضې د حد تېرې

چې کنګرې يې وې د ښو ګوهرو پېښو ‏ ‏ بعضې وې د جواهرو ښو مهيشو

او ځنې وې د زمردو شنو بهترو ‏ ‏ بلکې ځنې وې د چاندۍ ځنې د سرو زرو

او وې ځنې بالاخانې په شان د ثمر ‏ ‏ او وې بعضې برابر لکه قمر

ځنې د ستورو وې په شان او په مثال ‏ ‏ او د کل بالاخانو دې هسې حال

چې په دې بالاخانو کښې غني خدای ‏ ‏ پيدا کړي دي اويا اويا سرای

په هر ښار کښې وو اويا زره ښه کوره ‏ ‏ په هر کور کښې لا په هسې شانې کوره

چې اويا زره حجرې وې په شماره ‏ ‏ يو يو تخت هره حجره کښې وو ښکاره

په يوه حجره کښې تخت يې وو د زرو ‏ ‏ او بله کښې په تخت وو د ګوهرو

په يوه کښې د ياقوتو وو عيان ‏ ‏ هذا القياس چې وو په ټولو کښې دا شان

او د پاسه د هر تخت خېمې ضرور ‏ ‏ وو هغې په دا شان سره غفور

د زر بفتو يې وو تخت د سرو پر دې ‏ ‏ مرتب وې او په هر تخت ماليدې

په هر تخت باندې فرشونه اويا زره ‏ ‏ دريانو وو د حد په هورتند غوړه

اويا زره د سندس وو صاف مطلق ‏ ‏ اويا زره وو په شمار د استبرق

چې يو فرش د بل په رنګ نه وو حضور ‏ ‏ په هر تخت يوه يوه ناسته وه حور

خندېدونکې غوړېدلې لکه ګل ‏ ‏ او د هرې حور العينې پوشاک خپل

په شماره اويا خلعته د جنت ‏ ‏ وو اغوستې چې په دې هر يو خلوت

پوک وهلې وو پرې مشک عنبر عيان ‏ ‏ نه وو يو خلعت ضرور د بل په شان

او وجود ددې حورانو نهايت ‏ ‏ زيات د حد د لطافت د نزاکت

نو ددې اويا خلعتو نه بهر ‏ ‏ ځليده وجود د وارو سرا سر

او په سر د هرې يو يو تاج ظاهر وو ‏ ‏ چې جړاو وو په آبدارو جواهرو

نو دهرې حورې وې څلوېښت هزاره  عنبرینې زلفې کړدې د رخساره
د مخونونه ېې د زلفو شپول چاپېر وه  سپین رخسارېې لکه نمر په هاله ګیر وه
او دهرې یوې زلفې برابره  زیب زینته وه ورکړې اویا زره
نو ددوئ د زېوراتونه اکثر  صاف اویا زره قسمونه سرا سر
اوازونه تورې خال د نکش بسیار  او دهرې حورې وړاندې صاف په شمار
اویا زره تخته ایښې وه د شمېره  کرسه ایښې وې د هر تخت نه چاپېره
څه د سرو څه د چاندۍ څه د جوهرو  او وې څه د زمرد څه د ګوهرو
چې یوه کرسه د بلې په مثال  پیدا کړې نه وه پاک رب ذوالجلال
شپږم هسې پاک حضرت دا ووئیل  چې جنت کښې مې نهرونه ولیدل
چې یو نهر وه د پیئو بل د آب  او یو وه د انګبین بل د شراب
نو په کل بالا خانو کښې اویا زره  وو نهرونه په یوه یوه کښې غوره
د چشمونه د رحیق د سلسبیل  بدلې هم چې د تسنیم د زنجبیل
په جنت کښې دي همه د کافور سپینې  دي اوبه جارې د شهد و نه شیرینې
او د مشکونه لطیفې وې ضرور ا  هم د مشکونه خوشبویه وې حضور
کنارې ددې چشمو نهرونو غوړه  د سرو زرو وې او هم د ګوهرو
بیکې کار ددې د لو چینو ظاهر  قسم قسم وو عجب ښه جواهر
او هم نورې د کافورو وې .. وته  وه د مشکو د عنبر وې همه خته
او چاپېره ترې ګیاه وه په داشان  د سنبلو او هم ښه عجب زعفران
اووم هسې دي د ښلې پاک حضرت  چې مې ولیدلې وني د جنت
نو د رنګ وې لوئې لوې که یو سوار  او یا کله غلوې اس تېز رفتار
د یوې وني به تېر نشي د سورې  او یا کاله که د اس او د سود ذور ي
او .. مخونه ېې وو د سرو زرو تمام  وو بنا خونه ېې د جوهرو په دا نام
دیا توتو مرغلرو زبرجدو  هسې حال ېې دے د یا نهو بیعدو

بعضې پاڼې د سُندُس وې بهترې / بعضې پاڼې د ورېښمو وې ښې غوړې
هره پاڼه دومره لویه ئې وه زیاته / که یوه پاڼه ارسال شي دې دنیا ته
د مشرق نه تر مغرب پورې جهان / واړه وُبه نیسي کړي به ئې پټ پنهان
او میوه وه ددې وُنو دومره غټه / برابره د لوے خم د لویه مټه
د جنت د وُنو هره میوه ثمر / او یا قسمه وه مزه لذت اکثر
هسې تخم وو د ننه په میوه / ناسته حوره وه په کښې یوه یوه
بلکې هره میوه ځان په خپله باندې / جنتیانو ته کوي به وړاندې وړاندې
نو د پاره د خوراک د جنتي / چې هر کله وُشي مینه ئې زیاتي
نو هغه میوه په خپله په خپل ځان / را ګوزار کاندي په خپله هغه آن
په تالي د نور کښې ښکېنوے شي ظاهره / جنتي شي هغه ساعت حاضره
چرې وُنه کښې د هر یو جنتي / د زر کالو په لار بېرته وي زیاتي
جنتي چې په آرزو شي د خوراک / د میوې هر ښاخ په حکم د رب پاک
د هغې وُنې بنده ته الله رب / میوه وُرسوي ان د ده تر لب
اتم دې وُنو کښې دي عجب مرغان / وُ لیدل مې د اوښانو سم په شان
او هر یو رنګ چې جنت کښې دے حضور / دي مرغانو کښې یو یو نښان ضرور
ایښې شوے وو په دې مرغانو باندې / چې تېرېږي جنتیانو ته دوړاندې
په سل زره خوش آوازه ښه سرود / مختلف به دوئ کاوه په عجب سود
جنتیان چې ورته وُوائي کوم ساعت / چې آواز ستاسې ښائسته دے که صورت
نو مرغان دوائي غوښه زموږ یا که / ددې دواړو نه ده زیاته لذت ناکه
چې هر کله وکړي دوئ دا قیل و قال / نو ددې مرغانو سرغوڅ شي في الحال
په هوا کښې وریت شي دي زر بې مهلته / جنتي ته را ګوزار شي مخکښې ښکته
غوښه وخوري ترې د خپل خواهش مقدار / دا مرغه ژوندے شي والوځي دوبار
په ښاخونو بیا د وُنو کښېني باندې / په هغې نغمې سرود شروع وکاندي

نهم ډیدل ما واوره جنتونه　　چې په کښې وو بې حسابه نعمتونه

مګر دا څلور یاګونه نهایت　　وو د نکش پکښې دے یو فردوس جنت

یو عدن وو یو ماویٰ وو یو نعیم　　وو بې شانه جنتیان په کښې مقیم

او څلور سرا یونه نور پکښې تمام　　دې یاغونو کښې وو هسې نام په نام

یوه سرا یې دارالسلام وه مقرره　　او یوه وه دارالخلد نامه بهتره

او یوه دارالقرار وه بنه ممباله　　او یوه دارالجلال وه بې مثاله

وې د نورونه په دوئ کښې ونې ډېرې　　دا سمان د ستورو وې د شماره تېرې

د ډېرګونو په شماره د بیابان　　پکښې هسې وو یاغونه بنه وداڼ

او ددې څلور جنتو سلامت　　عرش عظیم وو الله کړي د دوئ چت

او په یو جنت عدن کښې مې د شماره　　زیاتې ولیدې د ستوروته بسیاره

ښې ماڼۍ وې د شمارې د حد تمام　　وې زما د اصحابو کل په نام

او وه څُله بلکې هره ماڼۍ غوره　　وه د زمکو آسمانونو برابره

جبرئیل یوه یوه به په هوس　　په نامه راته ښووله د هر کس

وې چې دا ماڼۍ بنه ډېره لاثانې　　د فلانې ده چې دے څوې د فلانې

بیا به یې وې چې دا ماڼۍ په نوم فرود　　د فلانۍ ده او چې ده د فلانۍ لور

او په منځ د دوئ کښې ما یوه څرګنده　　ماڼۍ ولیده چې ډېره وه بلنده

په نامه وه د حضرت صدیق اکبر　　ورپسې وه د حضرت عادل عُمر رض

پس د هغې د حضرت عثمان رض غني ده　　ورپسې د شېر علي بنه لاثاني ده

دا څلور ماڼۍ یې بهترې وې د حد　　ددې نورونه د حده بیعدده

دا دے نقل چې حضرت خیرالبشر ص　　فرمائیلي دي په دا شان برابر

ابوبکر ته دا ووې پاک حضرت　　چې د ستا شوم داخل زه په جنت

ستا ماڼۍ مې ولیده خائسته بسیاره　　چې تمامه وه د سرو زرو تیاره

او هغه لطائف هغه کښې وو مساف　　ولیدل مې د هغه نور تول اطراف

نو حضرت صدیق اکبر وې یا رسوله  په درګاه د حق خالق رازق قبوله
د هغې بالاخانې صاحب په څه شان  دا دې دوازده وې له تا نه صاف قربان
پس د هغې پاک رسول آخر زمان  دا ئې وویل عمرؓ ته په دا شان
ستا مانۍ مې ولیده خائسته بې حده  په کښې حورې وې بې شماره بې عدده
د یا تو تو پیدا کړې وه پاک رب  ورد ننه نه شوم زه په دا سبب
اندېښه مې ستا په زړه کښې د غیرت  شو له تېره برابر هغه ساعت
نو حضرت عمر د سترګو نه ظاهرې  اوښکې تویې کړې په مثال د مرغلرې
دا ئې وویل چې یا پاکه رسوله  په درګاه د رب رحیم کریم قبوله
د هر چا سره کوم غیرت بسیار  کوم تا سره به هم غیرت تیار
پس د هغې بیا رسول آخر زمانؐ  وا ئې وویل عثمانؓ ته هسې شان
چې مې ستا مانۍ هم ولیده جنت کښې  چې د حده وه په زیب او په زینت کښې
او نوم ستا مې هر آسمان باندې ضرور  صاف لیکلے ولیده مې بنه حضور
پس له هغې شېر علیؓ ته پاک سرور  په دا شان سره ئې ووې برابر
اے علي په څلورم اوچت آسمان  ستا صورت مې ولیده هلته عیان
جبرئیل نه مې پوښتنه کړه د حال  را ته وکړه جبرائیلؑ په دا رنګ قال
یا رسولهؐ وو مَلَک مشتاق بسیار  د حضرت علي بې حده د دیدار
نو الله پرورد ګار خالق ودود  دا مَلَک ئې د عليؓ په رسم وجود
را پیدا کړ الله ورکړ دا مکان  پاس په سر د څلورم اوچت آسمان
دې د پاره چې مَلَک ئې دیدار مومي  خوشحالیږي تبرک ئې بسیار مومي
نو بیا ووې ورته هسې پاک حضرت  یا علي مانۍ مې ستا بنه بې نهایت
په جنت کښې ولیده مې د هر څه نه  ورته زه شوم په بنه شان سره د ننه
د یوې ونې میوه مې کړه شمیمه  هم هغه میوه دوه ځایه شوه دوه نیمه
او د منځه ئې معشوقه یوه بنه حوره  ترې را ووته همه د کښه د نوره

چې یې محو وپهٔ پرده کښې پټ پنهان
ما ترې وکړله پوښتنه پهٔ دا شان

چې دا حورې مقرره یې چا د پاره
هغې وې یم دې د دور علي دو یُدارد

لسم هسې دي وشي پاک سرور
د جنت پهٔ منځ کښې نهر برابر

د لیده دادوان شوے وو تیار
د پښدیه د عرش عظیم نه برقرار

چه اوبهٔ شراب عسل پهٔ کښې ښهٔ شاوون
دا څور څیزه یو ځاے بکښې روان دي

چې یوبل ته خلطیدل به سره واړه
زبرجد و نه یې ود کنارد غاړه

سنګریزي کاني واړه یې وو د جوهرو
او وه خټه یې تمامې د ښو عنبرو

کل ګیاه یې د زعفرانو وه ښکاره
د چاندیه لوښي د ستورو پهٔ شماره

دې نهر کناره باندې اکثر
وو پراتهٔ د سپینو زرو سراسر

او چاپېره د دې نهر وو مرغان
وو څېړونه یې د بختو او ښا نوشان

دا یې وې کهٔ هر څوک وخوري زمونږ غوښه
یا د دې نهر اوبهٔ وڅښي پهٔ خوښه

پهٔ رضا او پهٔ بخشش د پاک ستار
او فائق او معززبه شي بسیار

وایې هسې پاک حضرت خیرالانام
چې ماوکړ جبرئیل ته دا کلام

چې دا نهر دے د څهٔ نه مقرر
جبرئیل ووې دا نهر دے د کوثر

لکه تا ته عطا کړے دے پاک ذات
برابر الله اکبر پهٔ دا آیات

۵۵

## اِنَّا اَعْطَیْنٰكَ الْکَوْثَرْ

پهٔ کلام د الٰهي کښې پهٔ ښهٔ شان
دې نهر دے خبر پهٔ کښې عیان

پهٔ اتو واړو جنتو کښې ضرور
نشته دا رنګې یو باغ پهٔ کښې حضور

جاري شوے پهٔ کښې نهر د کوثر
او پهٔ غاړو د دې نهر مې اکثر

خیمې ولیدې د دې نهر پهٔ غاړه
د ګوهرو د یاقوتو همه واړه

جبرئیل وې پوښتنهٔ ما هغه ساعت
چې دي دا خیمې د چا د سکونت

جبرئیل وُوې چي خېمې دي ددې ځا ے | ستا ازدوا جوله ورکړي دي پاک خدا ے
او حوراني وې دروں په دې خېمو | دې جنت کښي د لفر ېبو په نغمو
په يوشان په خوش زبانه سره زيات | ترانه سره ئې وې دا کلمات

نحن الناعمات فلا نبؤس[٥٥٦] ابداً ونحن الشاهدات
فلا نمل[٥٥٧] ابداً ونحن الكاسيات فلا نعرى[٥٥٨] ابداً
ونحن الشابات فلا نهرم ابداً ونحن الراضيات
فلا نسخط ابداً ونحن الخالدات[٥٥٩] فلا نموت
ابداً طوبى لمن كان لنا وكنا له !!

---

او اوازبه د نغمو د دوئ اوچت[٥٦٠] | او رېږدے شو کل ما يوکښي د جنت
د هغې نغمونه دا د سنگي لذت | د خوشۍ حاصلېدهٔ به نهايت
کهٔ يوه نغمه د دنيا ته سرابر | چرې راشي د هغو نغمو اکثر
نو به ورک شي دد نيا نه کل مرگونه | هم بهٔ رخت د سفر وتړي غمونه
او بالکل به دد نيا نه شي عدم | نو بيا ووې جبرائيل راته دا سم
يا رسوله چي ته غواړې چي دا حوړې | چي ته ووينې همه واړه پرنورې
نو ما هسې جبرئيل ته وو سُيل | چي هو غواړم زهٔ ددې حورو ليدل
جبرئيل د خېمو واړو دروازه | پرانسته پرده ئې کړه پورته په مزه
دا رنگ حورې وليدې مې په زينت | کهٔ ټول عمر زهٔ د دوئ کوم صفت
وُ به نهٔ کړے شم په دا وکړئ يقين | او مخونه ئې وو د سپينو نه تک سپين
په سپين والي کښي د سرو يا قوتو شان وو | د آفتاب نه په څو چند باندې روښان وو

او څرمن د دوئ د تن وه نازکتره ... د ګلاب د ګل د پاڼې نه اکثره
د ښېښو نه ئې ډېر وو نرم تن ... او د میاشتې څوارلسمې وو روښن
او د مشکو نه خوشبویه وو ضرور ... او د ښېښتهٔ ئې وو د ټکړو نه تورخفو
حلقه کړي وو او د لي پهٔ ولول ... زلفې کړې وو سیاه لکه بخمل
بعضې د حورې چې ناستې وې تیارې ... څنې غټې کښې ډېرې شوې وې بیاز
بعضې حوره چې به وددبده ولاړه ... د قدم زانو ئې کېدے ئې زلفې واړه
او وړاندې ددې هرې یوې حورې ... او یا زره صفه نورې حورې ګورې
وو ولاړ ما جبرئیل هغه ساعت ... وپوښته دا هم نعمت دے د جنت[۶۶۱]
جبرئیل ووې هو چې یا پاکه رسولهٔ ... پهٔ درګاه د رب رحیم کریم قبوله
چې دا تولې حورې ستا د امت ستا دي ... د جانبه د الله ورته عطا دي
نقل بل یو ولسم دے پهٔ دا شان ... چې وسیلې دي رسول آخر زمانے
عجائب د عجائبو نه زیات ډېر ... پهٔ جنت کښې عجائب د حد ه تېر
دا څلور نهره مې ولیدل تمام ... لکه خدائے دي دا وسیلې پهٔ کلام

وَاَنْهٰرٌ لَّمْ يَتَغَيَّرْ طَعْمُهٗ وَاَنْهٰرٌ مِّنْ خَمْرٍ
لَذَّةٍ لِّلشّٰرِبِيْنَ وَاَنْهٰرٌ مِّنْ عَسَلٍ مُّصَفًّى[۶۶۲]

---

او ارت واله د هر یو نهرسوا ... چې دوړاندې ئې دا کل واړه دنیا
د ګنډلو د یوې ستنې پهٔ شان ... هر یو نهر هومره لوئ وو بې پایان
جبرئیل نه مې پوښتنه کړه د حال ... دا نهرونه لوے چې ورک دے ددوئ سیال
د کوم ځایه نه راځي او چرته درومي ... را ته ووایه که تا ته څهٔ معلومي
جبرئیل ووې چې دومره یم خبر ... دا نهرونه چې کوثر له برابر

نور خبر نهٔ ارم زهٔ د دوئ پهٔ حق　　چې را ځي د کومه ځایه سنه مطلق

دا ئې دوې یا رسوله د ستار　　ستا عزت پهٔ نیز د خدائ دے ډیر بسیار

چرې تهٔ کهٔ درخواست وکړې پهٔ جناب　　دا احوال به کړي ظاهر درته ثواب

زهٔ لا وُم دې اندېشه باندې تمام　　چې ناګاه یو ملائیک وُوې سلام

او صلوٰة سلام ئې دواړه کړل ادا　　زما خوا کښې ناګهانه شه پیدا

نو ددې ملک جُسه وه دومره غټه　　د حساب د اندازې لویه بې وټه

بې د خدایه معلوم نهٔ وو دے یل چا ته　　ډیر ځانګونه وو ددې ملک هر خواته

دا ئې دوې ماته یا پاکه رسوله　　پهٔ درګاه د رب رحیم کریم قبوله

قد مونه مبارک زما د پاسه　　پهٔ ځانګونو زما کېږده بې وسواسه

مشرقې سترګې پټې کړه سروره　　قدمونه مې پهٔ ځانګ کېږده خپل غوره

پهٔ ځانګونو مې ددې ملک تیار　　قدمونه مې پرې کښېښودهٔ قرار

سترګې پټې مې کړې دې پهٔ یو کرت　　دا رنګ والوت چې کېدے نشي صفت

د تېزۍ به ئې څخوک وُنهٔ کړي بیان　　پس د هغې ماته ووې پهٔ دا شان

سترګې پرانزه د پاک الله حبیبه　　پهٔ درګاه د خدائ د هر چا نه قریبه

چې مې پرانستلې سترګې پهٔ یو ځله　　یوه وُنه مې عجیبه و لیدله

او ددې وُنې د لاندې مې تیاره　　قبه ولیده د سپین ګوهر دواره

دومره لویه وه د حسن دا قبه　　دا د نیا ددې په حق وه یو حبّه

چرې دا د نیا ددې چې سره کېږدې　　د هغې قبې په سر برابر کېږدې

نو دا رنګې به ښکاریږي پهٔ نظر　　[۵۷۳] لکه ناست وارهٔ مارغهٔ دې پهٔ لوے غر

دروازه ددې قبې وه پهٔ دا شان　　زبرجد و شنو او قلف دو پرې عیان

د سرو زرو وه جرنده پرې برابره　　نو مې ولیدل ځلور نهره دا غوره

چې راوُتې وو ددې قبې تبهرَ　　پس له هغې مې دا خیال کړ مقرر

چې پهٔ بېرته شم ددې قبې روان　　دا ته هغې ملک ووې پهٔ دا شان

ولې نه ځې دې قبې ته ته د ننه　　چې احوال ئې در معلوم شي د هرڅه نه

ورته ووې ما چې څرنګ شم درون　　چې وهلے دے پرې قلف په ښه مضمون

ملک ووې چې دد ې جرندې کليد　　ستا په لاس کښې ښائسته عجب مزيد

ورته وې ما، ده کنجي ما څخه کومه　　ملک ووې کلمه ده دا معلومه

## بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

نو هر کله چې جرندې ته شوم قريب　　کلمه چې مې پرې ووې په ترتيب

فی الفور لرې شوه جرنده په هغه دم　　په قبې د ننه کښې مې ښود قدم

دې قبې کښې چې د ننه شوم نږدې　　په کښې دا څلور ولې مې وليدې

د څلورو وارو کنجو نه ضرور　　دا وتلے وې دد ې قبې حضور

پس د هغې مې غوښتل چې شم بهر　　بيا ملک داته دا ووې سرابر

يا رسوله کل احوال شه در ښکاره　　ماوې هو تږوله مې وکړه ننداره

ملک ووې ښه نظر وکړه حضرته　　تماشه دې ښه ونه کړه سلامته

چې قدرت شي در ښکاره د ذوالجلال　　چې معلوم ئې شي قدرت ورته کمال

د قبې په څلور کنجو مې تيار　　نظر وکړ لاندې باندې مې بسيار

په بيل بيل څلورو کنجو کښې پاک ذات　　پرې ووليک د بسم الله دا کلمات

اول کنج کښې وو بسم الله عجب معلوم　　په دوېم کښې وو دا الله ذاتي ښه نوم

په دريم کښې الرحمن وو مقرر　　څلورم کښې الرحيم وو برابر

د اوبو نهر داوتے وو بهر　　د چشمې د ميم بسم نه سراسر

دوېم نهر داوتلے وو د شير　　د چشمې د هغې نوم الله قدير

دريم نهر وو راوتے د شراب　　د چشمې د ميم د الرحمن ثواب

د ګبين نهر راوتے وو سليم　　د چشمې نه صاف د ميم دا لرحيم

پس د هغې نه زه يوه شوم په دا شان | چې راوتي دا څلور نهره عيان

د څلورو کلماتو برابر | دا تهوکيږي بسم الله نه سراسر

پس د هغې د جانبه د ثواب | دا ته وشه په دا شان سره خطاب

## يا محمد صلى الله عليه وآله وسلم من ذكرني بهذا الاسماء من امتك

## وقال بقلب سليم و خالص بسم الله الرحمن الرحيم

٤٦٤

## سقيته من هذا الانهار الاربعة ١١

او هر څوک د امت ستا نه چې ضرور | ما په دې کلمه ياد کړي په سرور

چې په صدق د زړه ووائي په اخلاص | زه سيراب يې کړم په دې نهرو نو خاص

بيا به تږے نشي هيچرے په تيار | نه به مرګ ورلره راشي بيا دوبار

او په دې دولت به يې زه کړم سربلند | دا نعمت ورلره ورکړمه څرګند

٤٦٥

## الحمد لله رب العلمين

دولسم نقل دے دا چې پاک سرور | هسې شان دې فرمائيلي براير

د جنت په منځ کښې يوه بالاخانه | وليد له د سرو زرو شاهانه

دروازه يې راته پرانستله خاصه | ور د ننه شوم په دې کښې دا خلاص

پکښې وُ مې ليد يو کور د ګوهر سپين | دغه کور ته شوم د ننه هغه حين

يو صندوق مې پکښې وُ ليده د نور | او ير قلف پرې ټکيدلے وو ضرور

جبرئيل نه مې يو پښتنه کړه د حال | چې په صندوق کښې څه دي پرتو سنبال

جبرئیل ووې پهٔ دې صندوق کښې غوټ    نور څهٔ نهٔ دي پهٔ کښې سپرده د خدائ پټ

نشهٔ هیچاله پهٔ دې باندې خبر    هغه څوک پهٔ پرې خبر کړي سراسر

د هر چانه چې بزرګتر کښي دوست تر    سوال مې وکړ د رب ته دورشهٔ راته ور

د صندوق شوه راته لرې دروازه    پهٔ صندوق مې نظر وکړ پهٔ مزه

په کښې ومې لید یو کند بنهٔ نهایت    پهٔ جامه کښې دربښمو د جنت

وو پیچلے پهٔ کښې دا کند پهٔ بنهٔ شان    وکړ عرض مې پهٔ درګاه د پاک سبحان

چې دا څهٔ څیز دے زما پاکه اکبره    خطاب وشهٔ اے زما حبیبه غوره

چې دا کند دے پهٔ دا شان تالیدلے    چې تیوته پهٔ تیوته واړه دے ګنډلے

دغه کند دے د بنهٔ فقرنه دے بل    نوماهسې پاک الله ته ووئیل

اے خداوند دا دولت کل اماني    ددې وکړه تهٔ پهٔ ما مهرباني

خطاب راغے یا زما پاکه رسوله    پهٔ درګاه زما د هرچانه قبوله

دا کند ما د ے غوره کړے نهایت    تاله هم مې ستا د پیاره د امت

بدکې ما د هغې ورځې نه دا کند    پهٔ بنهٔ شان مې بنهٔ زیبا کړ پیدا کند

ور به نهٔ کړم دے هیچا لره بالکل    مګر هغه چې ګنهم یې د بر دوست خپل

هم هغه لره به ورکړم برابر    او هیڅ څیز ددهٔ نه ما څخهٔ عزیز تر

پیدا کړے نهٔ دے ما ددهٔ پهٔ شان    دي وئیلي دا رسول آخرزمان

## حدیث شریف "الفقر فخری"

---

فقیري لوئي زما ده بې حسابه    فقیري ده عطا ما ته د ثوابه

---

# رباعي

له طلبه لاس وا نخلي ځو دي پښې شته درفتن
چې د فقره بې نوا شۀ بې تو ښې شۀ دغه تن
نۀ دے فقر هغه فقرچې تاکفرته پر یبا سي
فقر هغه دے چې فخر د نبيؐ کړ ذوالمنن ۶۶۹

---

دیار لسم دي فرمائیلي پاک حضرت چې د دوارو کونو زیب دے هم زینت
پۀ جنت کښې مې اووۀ بالاخانې ویدلے عجائبې کار خانې
د گوهرو د یاقوتو وې تیارې د مشرق او تر مغرب پورې قرارې
بیله بیله دومره وه بښکاره د مشرقه تر مغربه پۀ شماره
راته ووئیل شو هسې پۀ هوس چې دي دا بالاخانې د هغه کس
چې پروند ونیسي پۀ صدق ځوک د لاسه چې اووۀ قدمه ئې بوځي بې وسواسه
جبرئیل ته ووې ما هغه ساعت زۀ پۀ دي باندې خبر کړم خپل اُمت
جبرئیل ووې پۀ دې باندې خبر کړه خپل امت له پۀ دې زېري خبر ور کړه
بیا ووې جبرئیل پۀ هسې شان چې د دې نه زیات ثواب کړم درعیان
هغه دادے چې بنده مومن سحر پاڅي خوب نه وواڼي هسې برابر

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ

---

پس د هغې ابدست وکړي پۀ ترتیب او چې مونځ د سحر وکړي خوش نصیب
پاک الله به ورکړي دۀ له پۀ جنت کښې بنۀ باغونه رنګا رنګ پۀ زیب زینت کښې

برابر ددې دنیا اووه کرته — د مشرقه د مغربه نهایته
څوارلسم دې فرماشیلې پاک رسول — چې په درد دے د رحیم کریم قبول
خزانچي مې د جنت ولید رضوان — چې په تخت مرصع ناست وو په ښه شان
ملائک ترې نه چاپېر ولاړ وو صف — رضوان وکتل زما چې په طرف
راته پورته شه اوچت هغه ساعت — شرائط ئې د تعظیم کل امانت !!
کړل په ځائے ئې زما واړه سراسر — نوما ووې ورته هسې سراسر
راته ووایه زما د امت حال — رضوان وکړ راته هسې قیل وقال
یا رسوله ستا امت نه چې یو تن — پاتې خوب نه وکړي هسې شان کفن

## لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ

پاک الله کاندې بنا دده د پاره — په جنت کښې به ماڼۍ کاندې تیاره
جرنده ووهي د هغه ور د بے اسه — او کنجي شي حواله زماله لاسه
نو هر کله چې سباله شي قیامت — د لحد نه چې شي پورته ستا امت
کنجي وربه کړمه زه د خپل مکان — چې خپل ځائے ته شي داخل به پښه شان
په خپل کور کښې به شي کوز خوشحال بسیار — په جنت کښې به مقام شي برقرار
پنځلسم دې فرماشیلې پاک حضرت — چې د کل خلقو هم زیب وے هم زینت
په جنت کښې مې ادریس ولید مقام — پرې ادا کړ ما په ده باندې سلام
ورته ووئیل ما بیا په هسې شان — واه واه تا ته مبارک عجب مکان
بې یدونه د تلخیز د ځنکدن — ته را ورسېدې دادې شه وطن
راته ووې کاشکي ان تر ابتدا — د عالم د پیدائش تر انتها
دا تلخیز تولې ددوئي د ځنکدن — د مخلوق وې مالید لې په خپل تن
مګر دا توفیق راکړے وے غفور — چې مې ستا امت لید لے وے ضرور

ورته وې وېل اے ادریسه وروره　　دا خبره کوې څه سبب نه ګوره

ادریس ووې یا رسول آخر زمانه　　په جنت کښې چې دا خل شوم دشه شانه

چې هر ځائے یالا ځانې ته برابر　　چې ورتلم به او هم حورو ته زړه ور

راته وُبه شو په هسې رنګ آواز　　ګرځن دے څه له دې ځایه لګه باز

دا مکان او حورې ستا چې په نظر دي　　د اُمت د محمدؐ خیر البشرؐ دي

بیا ادریس ووې جنت کښې مې یو غر　　وُلید نوم یې وو په دا شان مقرر

بلکې وو جبل رحمت هم دده نوم　　په دې نوم سره دا غر ووښه معلوم

سر دد ې غر په کنګرې د عرش عظیم　　لګه وُلے وو اللّٰه رحیم کریم

او دا غر وو روغ د مشکو د عنبرو　　دولس زره دروازې وې د سپین زرو

د یوې دروازې بلې پورې بس　　دومره لار ده چې که چرې چې یو کس

[۲۶۸]

په اوږه د برق خاطف سورشي تیار　　پنځه سوه کاله وُ چې وهي لار!

نهایت تندي تیزي یې سر د سره　　وُبه نه رسي هرګز د بله دره

نو بیا ووېل ادریسؑ په هسې شان　　وکړ ما په زړه کښې هسې شان ګومان

چې دا ځائے د چا نبيؑ یا پیغمبر دے　　یا د چا صدیق مؤمن جوړ مقرر دے

او یا دا د چا ملک دے دا مکان　　حکم راغے د جانبه د سبحان

د بل هیچا نه دے دا مکان بهتر　　دے د هغه امتي د پاک سرورؐ

چې مونځ وکړي د سحر په جماعت　　نوما وکړه دا آرزو هغه حالت

کاشکې ما چې وے یېن لے محمدؐ　　د همه وارو نبیا نو سر آمد

او زه هم یو امتي وے دده شمار　　پس د هغې حضرت وکړ دا ګفتار

هر چې کل یا غسل نوته مې تمام　　د اتو وارو جنتو نام په نام

دا مې ولیدل سره هم درضوانؑ　　بیا درګاه د کبریا ته شوم روان

په مقام د قاب قوسین او ادنیٰ　　کښېناستلم بیا دو بار په هغه دم

الله ووې راته اے زما حبیبهؐ　　په درګاه زما د هر چا ته تریبه

تا ځایونه په ښه شان د امت خپل — مهمانسرائې زما دي هم ښه وُیدل

مګرته ئې ښه په دي پاندي خوشحال — اوکه نه ئې راته دوایه في الحال

وُوې ماچې ته خداوند ئې پاک زما — زه بنده د رسول استازے یمه ستا

او بنده به خپل خداوند نه برابر — په څه رنګ خوشحاله نه وي سراسر

پس د هغې نه بیا ووې پاک ستار — اے حبیبه زما واوُره دا ګفتار

خودم قسم زه په عزت په جلال خپل — دا ځایونه چې تا واړه ولیدل

او همه واړه ځایُونه دا تمام — ستا په واړو د شمنانو دي حرام

او چې دي متابعان او ستا دوستان — د هغونه به ئې زه کرمه قربان

اوس لائق دي چې ځایونو ته ضرور — دشمنانو خپلو وُوینې حضور

او هغه چې مې د پاره د عذاب — پیدا کړي ستا د هر دشمن په باب

تماشا وکړي د ځاے د دشمنانو — هم چې ووینې هر ځاے دګمراهانو

پس د هغې حکم وُشه د تواب — اسرافیل علیه السلام ته په شتاب

اسرافیله جبرائیل ته په دا وخت — هسې وُوایه چې ځاے د عذاب سخت

زما دوست ته همه واره کړه ښکاره — چې حبیب زما ئې وکړي ننداره

د سعید بن جُبیر رض دا روایت دے — عکرمه رض نه روایت د عنایت دے

چې حضرت دي فرماٸیلي په دا شان — جنتونه چې مې ولیدل امانے

په خاطر شریف مې تېر شو برابر — د دوزخ سختې مې هم شوې په نظر

جبرئیل لاس زما وُنیوه روان شه — په یو درنګ کښې نو مالک راته عیان شه

جبرئیل ووې یا مالکه محمدؐ — غوارې دا چې ستا زندان وُوینې بد

چې د خپلو دشمنانو ځاے مقام — چې دري د پاره وُوینې تمام

د دشمن چې ویروَل کوي په شان — چې کوي د هر عذاب ورته بیان

**شاد محمد** شکر شکر دا حد دے
چې نبيؐ او پیغمبر دي محمدؐ دے

کافران ئې دشمنان دي امانت　　شفاعت بهٔ پهٔ آخر کړي د اُمّت

## در نعت ستوده خیر البشر صلی الله تعالیٰ علیه وآله الانور

---

پهٔ محبوب نامه بېله چې ستار دے　　دا زمونږه محمد نبيٌ دوئېدار دے

مونږ دده پهٔ رسالت ایمان راوړے　　دے زمونږه د آخر امت سردار دے

هغه کس بهٔ پهٔ آخر کښې سربلند وي　　چا چې ستا پهٔ رسالت کړے اقرار دے

هر چې نهٔ کوي تصدیق پهٔ رسالت ستا　　هم هغوله سقر جحیم تیار دے

خدائے واحد دے لاشریکه لامکانه　　دا زما دزړهٔ پهٔ صدق پوخ گفتار دے

محمد احمد محمود د خدائے حبیب دے　　خاص استاز دے د جانبه دجبار دے

د احد او د احمد لاده یوه ده　　سود او زیان د دواړو یو دے یو کار دے

هم ئې دوست د شمن دے یو څهٔ جدا نهٔ دے　　دوست د شمن د خدائے رسول سره یو شمار دے

پهٔ هغو د جنت بوئې خدائے حرام کړے　　چا چې کړے د رسول د خدائے انکار دے

د دوزخ نه هم هغه به پهٔ امان وي　　چې څوک سم د شریعت تلے پهٔ لار دے

چې تصدیق پهٔ رسالت د رسول نهٔ کړي　　خدائے بېله هم هغه کس پهٔ کفار دے

د حضرت د رسالت چې شک شبه کا　　یقین وکړه چې د هغو آخرت خوار دے

چې الله ئې دے عافي رسول شافع دے
څهٔ شو دا چې **شاد محمد** ډېر گنهگار دے

---

# فصل د شلم په بیان د طبقاتو د جهنم او د هغې عجائبو چې په نظرانور د سرور صلی الله علیه وآله وسلم کښې راغلې دي

دا دے نقل چې په حکم د جلیل
چې مالک لره روان کړم جبرئیل

بیا مالک ته جبرئیل ووې دا شان
چې د پاره د حضرت آخر زمان

شهنشاه دے دے د تخت د جلالت
دوزخونه کړه ظاهر په دا ساعت

وکړې دے د دوزخونو ننداره
ته اوس دغه ته کړه همه واړه ښکاره

نو مالک ووئیل ما ته یا رسوله
په درگاه د خدا اے د هر چا نه قبوله

وکړه ته د خپلو ښو لاندې نظر
چې هر کله ما نظر کړ برابر

نو ما هسې په دا شانې ولیدل
اسمانونه اوه واړه وچا ودل

زر ظاهره شوله ز مکه هغه دم
نو ما بیت المقدس ولیده سم

فرمائیلي دي په هسې شان حضرت
یو ملک مې هولناک د ېر نهایت

ولید هسې وه اوږد واله له دې شانه
چې د زمکې نه ان پورته تر آسمانه

او د پوزې د سورو لمبې د اور
راوتې دد ې ملک نه په ډېر زور!

هم سکروټې وې دده د اور په لاس
او نیولي وې په دواړو لاسو پاسے

نو مالک ورته اواز وکړ دا شان
چې اے صرحائیله هر څه چې عیان

په خپل لاس کښې چې لرې څه برابر
د نظر کړه کُلّ تېر د پاک سرور

نو سرور علیه الصلوٰة والسلام!
جبرئیل ته وکړ هسې شان کلام

چې مالک ته هسې ووایه تیار
چې ور ذد د دوزخ بېرته کړه قرار

مالک ووې یا حضرت نبي دوئید ار
نظر وکړه لاندې وگوره دواړه

چې نظر مې وکړ ومې لیدل سم | وچاوُد له ورو مېره زمکه هغه دم
د هر جنس دې طبقې کښې مخلوق ډېر | تمامي راته ظاهر شو تېر و بېر
پس د هغې وچاودهٔ دوېم زمین | چې مې وکاتهٔ هغې ته هغه حین
دې طبقې کښې مې طوقونه زنځیرونه | ولیدل د دوزخیانو سخت کارونه
بیا دریمه زمکه وچاوده پرې پورې | دې کښې ومې لیدې نورې زمکې تورې
درنځرو مې پهٔ کښې ولیدهٔ پوشاک | پس د هغې څلورم زمین شهٔ چاک
او پهٔ دې کښې مې ماران او لړمانت | د دوزخ مې ولیدهٔ ظاهر عیان
پس د هغې وچاودهٔ پنځم زمین | نوم د دې زمکې مشهور دے پهٔ سجین
دې کښې ومې لیدې کندې نهایت | دوزخیانو ته پهٔ ورځ بهٔ د قیامت
دوی ته مخ کښې بهٔ کړي واره هغه کندې | قافلې بهٔ د کفارو کاندې بندې
بیا شپږمه زمکه وچاوُده فی الحال | او پهٔ کانې مې د غرونو پهٔ مثال
وُلیدل چې د کافرو سره د بیات | دوي پهٔ اور کښې وو نزدې پهٔ دا ایات

## وَقُوْدُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ [٤٦٩]

بیا او وُمه زمکه وچاوُده ضرور | نوم د دې وو پهٔ عجیب نامه مذکور
او پهٔ دې کښې ولیدل مې دریابونه | لوے د حده چې یې نشي حسابونه
وا یې هسې دا پهٔ بل یو روایت | مالک وویل حضرت ته چې طاقت
د لیدو د جهنم نه لرې بالکل | نو ما هسې بیا مالک ته وُویل
چې دا قدر کړه ظاهر راته عیان | چې طاقت یې د لیدو لرم د ځان
نو د ستنې د سورې پهٔ قدر سم | مالک وکړ سورے د دې کښې هغه دم
زر ظاهر شهٔ د دوزخ راته سخت اور | چې د تورې شپې نه ډېر وو تاریک تور
د دې دوزخ او وهٔ دره پهٔ شمار | ولیدل مې د یو بل نه جوړ بسیار

دیوي دروازي بلي پوري سمه ﴿۲۰﴾ — پنځه سوه کاله لار ده نه ده کمه

نو دوزخ ته او عذاب ته سرا سر — ورته ومي کړه پهٔ بنهٔ شاني نظر

او پهٔ هره دروازه صاف صاف یوخط — وو لیکلی پهٔ بنهٔ شان سره فقط

پهٔ اوله دروازه باندي پاک ذات — وو لیکلی برابر پري دا ایات

فَوَيْلٌ لِّلْمُصَلِّيْنَ الَّذِيْنَ هُمْ عَنْ صَلَاتِهِمْ سَاهُوْنَ ﴿۲۱﴾

پهٔ هغو نمازګذارو نهایت — ری افسوس کوي چي مونځ کښي کړي غفلت

پهٔ دویمه دروازه باندي تیار — دا ایات ووپري لیکلی پاک ستار

﴿۲۲﴾

وَوَيْلٌ لِّلْمُشْرِكِيْنَ ﴿۲۳﴾

او افسوس د مشرکانو دے پهٔ شان — چي شریک پیدا کوي د پاک سبحان

پهٔ دریمه دروازه باندي سمبال — دا ایات ووپري لیکلی ذوالجلال

﴿۲۴﴾

وَيْلٌ يَّوْمَئِذٍ لِّلْمُكَذِّبِيْنَ ﴿۲۵﴾

او افسوس دے پهٔ کوونکو د تکذیب — چي دروغ کښي الله او هم حبیبؐ

او پهٔ بله څلورمه دروازه — دا آیات ووپري لیکلی پهٔ مزه

وَيْلٌ لِّلْمُطَفِّفِيْنَ ﴿۲۶﴾

او افسوس دے پهٔ کوونکو د تول کم — چي پهٔ تله کښي تلي به کم هر دم

په پنځمه دروازه باندې ضرور    دا آیات وو پرې لیکلي پاک غفور

## وَيْلٌ لِّكُلِّ هُمَزَةٍ ﴿۲۲﴾

افسوس دے په عفو باندې ښکاره    چې کوي په لاسو سترګو اشاره
عیب جوئي کوي د خلقو په دې باندې    اشاره چې په لاس سترګو چاته کاندې
په شپږمه دروازه ښه برابر    دا آیات وو پرې لیکلي پاک اکبر

## فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ يَكْتُبُوْنَ الْكِتٰبَ بِاَيْدِيْهِمْ ﴿۲۸﴾

افسوس دے په عفو کسا نو تل    چې به ونیکي کتاب دے په لاس خپل
بیا به وائي هسې شان چې دا کتاب    نازل شوے دے د دره د ثواب
په اوومه دروازه باندې تحریر    دا آیات وو پرې لیکلي پاک قدیر

## فَوَيْلٌ لِّلْقَاسِيَةِ قُلُوْبُهُمْ ﴿۲۹﴾

افسوس دے په سخت دلو ډېر اکثر    نوم د هریو در بیل بیل وو مقرر
اوګرمي ورله تعینه وه هم صاف    دے ددې په ترتیب شوے اختلاف
روایا تو کښې را غلي دي چې نوم    د درو مېنه دروازې جهنم دا سې معلوم
خزا نچي يې صوحائیل وو مقرر    کل اختیاره د جهنم وو برابر
د دوېمې دروازې دے لظیٰ نوم    خزانچي يې طوفائیل دے خاص مرقوم

د دریمې دروازې دے حطمه اسم
خزانچي ئې طوفانیل دے په بنهٔ قسم

څلورمې دروازې دے نوم سقر
خزانچي ئې شدطائیل وو برابر

زمهریر وو نوم ضرور د پنځم باب
بلکې والله اعلم بالصواب

خزانچي وو سطائیل د زمهریر
د شپږمې دروازې نوم وو سعیر

خزانچي ئې طوفطائیل ووپرې امیر
هم امیر وو هم ظهور وو پرې مشیر

د اوومې دروازې نوم هاویه وه
خزانچي اطمطائیل پهٔ نوم هیَه وه

او پهٔ بل روایت وائې هسې شان
وائې نوم ئې صطائیل وو صاف عیان

او اویا اویا هزاره مددګار
د هریو خزانچي وو چابک تیار

د هریو خزانچي وو چابک تیار
مددګار هم پهٔ اویا اویا هزار

او همه وارو مخونه لرل تور
هم تېز خشم چې لاره ئې قهر زور

داده ذکر د دوزخ د عذابونو
چې سوا د حد د شمار د حسابونو

فرمائیلي دي زمونږه پاک سرور
داول دوزخ طبقه کښې سراسر

عذابونه ؤ لیدل د حد د شماره
اول غرونه مې د اور اویا هزاره

و لیدل مې پهٔ هریو غر کښې ضرور
اویا زره کندې صافې د اور سور

او پهٔ هره یوه کنده کښې د اور
اویا زره ښاخه وو هم د اور تور

په هر ښاخ کښې اویا زره برابر
د اور و لیدهٔ ښارونه سراسر

پهٔ هر ښار کښې اویا زره پهٔ شمار
ؤ لیدل مې د اور قصره ښهٔ تیار

پهٔ هر قصر کښې اویا زره سمبال
د اور و لیدهٔ سرایونه مالا مال

او پهٔ هره یو سرائې کښې اویا زره
کوټې ؤ لیدې د اور ډک د خطره

او پهٔ دې هره کوټه کښې نه چې کم
اویا زره وو د اور صندوقه سم

او پهٔ دې هریو صندوق کښې د هر بابه
اویا زره قسمه وو پهٔ کښې عذابه

چې هریو عذاب بېل نه وو پهٔ شان
چې هریو جدا جدا وو صاف عیان

پس د هغې د دویمې طبقې در
راته پرانسته چې ؤ مې کړ نظر

او عذاب د دې طبقې مې سخت د حده
ولېده دې طبقې مې بې عدده

او ملک مې ولېده غلیظ شدید
دې طبقې کښې ولیدل مې په تاکید

پس د هغې بیا د ریمه طبقه سمه
راته برانستله زر یې د یو د مه

او عذاب د دې طبقې مې در یې چند انه
د اولې طبقې سخت ولید بې شانه

پس د هغې نه یې ماته بر قراره
څلورمه طبقه برانسته د واره

دې طبقې کښې مې نهرونه ولیدل
او یا زره کاله لاره بانديې تلل

دا نهرونه وو د اور په د برخروش
زیات ترور ور لکه دیګ یې واهه جوش

پس د هغې بیا پنځمه طبقه کل
راته برانستله ماچې و کتلے

دې کښې کندې مې د اور ولیدې غوټې
واره وې په سرپوښونو باندې پټې

جبرئیل ووې نبي خیر البشر ته
سرپوښونه د دې کندونه کړه بېرته

چې سرپوښ یې کړ ترې بېرته هغه ان
په کښې دومره ماران او لړمانے

خبر نه دي څوک بغیر د پاک احد
جبرئیل ووېل دا داته في الحال

جبرئیل نه مې پوښتنه کړه د حالے
او ماران او لړمان واره اکثر

چې دې کندوته وئیل وا یې برابر
د دې کندو د حساب د شماره تېر

د زیاتوالي د ے سبب د عذاب د بر
دې طبقه کښې ولیده مې بله کندره

بیا یې شپږمه طبقه کړه راته څرګنده
جبرئیل وپوښته ما په هسې شان

چې سرپوښ پر دې آتشین پروت وو عیان
جبرئیل وې د دې کندې نوم سجین دے

نوم دے څه د دې چې سر یې آتشین دے
به وې پټه تر قیامته نهایت

او دا کنده به د ور چې د قیامت
ورکوي به کافرانو لـه ضرور

په دې کنده کښې سزا به رب غفور
وې به واړه ګمراهانو سره مله

هم به واره ګنهګار وي په کښې دَل
چې د دې طبقې مې وکړه ننداره

بیا یې اوومه طبقه کړه راته ښکاره
ملک ولیدل د حد د شماره تېر

دې طبقه کښې مې غلیظ او شدید د بر

دوېره دېږدو چې بغېر د پاک توابه — خبر نه دي څوک د شماره د حسابه

تابوتونه مې د اور و ليدل پاس — وې قبنچې د اور د هر ملک په لاس

دوزخيان بې ديو قسم د اور سم — د کوهونه به ئې ايستل په هغه دم

نورځول به ئې بيا نور دوکښې عيان — دوزخيانو به و نيل په هسې شان

## ياغياث المستغيثين اغثنا

يعني اے فرياد شنوا د هر بېکسه — د همه فرياد کوونکو فرياد رسه

اور بېلونکيه د کوونکو د فرياد — وا وره ته زمونږ فرياد چې شو پرې ښاد

رحم نه کاوه هيڅ د دوئ په باب — دم په دم به زيا تېده په دوئ عذاب

جبرئيل و پوښته ما چې سخته تر — عذاب شته د چاله دوئ نه زيات اکثر

جبرئيل ووې چې دا عذاب دا شان — په نسبت د نور عذاب نه دے آسان

پس د هغې تابوتونه مې د نار — وليدل پرې د اور قلف وو تيار

جبرئيل و پوښته ما دا برابر — چې دي دا څه تابوتونه سراسر

جبرئيل ووې چې يا پاکه رسوله — په درگاه د خدائے د هيچا نه قبوله

بېلکې تاته تابوتونه دا ښکاريږي — کبرجن مغرور به دې کښې عذابيږي

په دې وارو تابوتونو کښې اکثر — کبرجن به عذابيږي سرتر سر

ان دوزخې د قيامت پورې تيار — دوئ په دې کښې عذابيږي په هر بار

پس د هغې ښکوے اور ته کړې گوزار — تر ابد الابدا پورې قرار

چې به ښکته په اور کښې سر نسکور — وبه نه رسي د دې تلې په لور

که په ښکته په دا اور کښې شي روان — وبه نه رسي تلې ته ئې په هيڅ شان

په دې وارو تابوتونو کښې اکثر — وو مارات او لرمان د شمار بهر

چې بغېر د پاک الله رحيم ستار — بل هيڅوک نه لري خبر د دې په شمار

پس له هغې مې د حد په هورته تېرې
کندې وُليدې د شمار د حده د يرې

په دې کندې کښې مې وو تې بحسابه
د اور وليدې هم قسم د هر بابه

او بوې هم د اور وې خُليد لې
په يو کنده کښې مې ترندې وُليدلې

او د اور جرندې وې د اور چې دوزخيان
او رول به ئې د اور وهسې په شان

هم ئې وليدل دې کنده کښې سپې تور
د اوښانو په مثال تمام د اور

شرمخان مې پکښې هم وليدل غټې
د غويانو په مثال د اور بيو تې

دوزخيان عذابول به ئې په دوئې باندې
هريو شرمخ هريو سپې به کړل رالاندې

جبرئيل عليه الصلوٰة والسلام
وُپوښت ما د دوئې د کل حاله تمام

جبرئيل ووې دا دې د نوسم نوم
په قوم سره مشهور دے هم معلوم

او دا سپې دا شرمخان د هر هرباب
د دنيا توالي دې د دوئې د ډېر عذاب

او که چرې د عذاب د دوئې صفت
وُبه نه کړې څوک تر ورځې د قيامت

يا الله الامان امان امانے
نعوذ بالله العظيم الرحمٰن

او بل شوے دے دا رنګې روايت
چې دې هسې فرمائيلې پاک حضرت

چې مالک عليه الصلوٰة والسلام
چې طبق د جهنم پورته کړ تمام

هرچې ما وکړ نظر ورته ئې الحال
او وه واړه دوزخونه ټول سنبال

همه واړه شول ښکاره راته معلوم
د اووم دوزخ وه صاف هاويه نوم

او عذاب د دې دوزخ د نورو ډېر دے
او هُچندا زيات د حد په هورته تېر دے

مالک وپوښته ما هسې برابر
دا دوزخ د کوم ټولي دے مقرر

مالک ووې دا دوزخ په نوم عيان دے
د شداد نمرود قارون فرعون هامان دے

هم د دوئې د پيرو او دے هم دم
هم ټوروسکو د نواپچي د مسيح سم

چې نوا پچه ئې د عيسىٰ نه کړه طلب
هم ئې وخوړله دا نواپچه په طلب

چې ايمان به ئې را نه وړ په دې باندې
هغه هم به وي په دې دوزخ کښې لاندې

هم به وي منافقان ستا د امت
دې طبقه کښې به ئې عذاب کړي نهايت

د شپږمې طبقې نوم دے صاف جحیم    دے عذاب یې د ټولو نورو عظیم
مالک وپوښته ما هسې په شتاب    چې به کوم تولے وي دې کښې په عذاب
مالک ووې دا دوزخ دے ځائے مکان    چې شریک پیدا کوي د پاک سبحان
مشرکان به وي په دې دوزخ کښې جمع    د خلاصې که کوي خوشې کوي طمع
د پنځمې طبقې نوم مشهور سقر دے    په دې نورو څلورو دوارو باندې برے
د مالک نه مې پوښتنه کړه دوباره    چې دے دا دوزخ د کوم تولي د پاره
مالک ووې دا دوزخ دے مقرر    ترسایانو جهودانو له اکثر
څلورمې طبقې نوم دے لظیٰ اسم    د مالک نه ما پوښتنه کړه دا قسم
چې په دې دوزخ کښې څوک به وي مقام    مالک ووې هم شیطان هم یې تمام
تابعان به وي ددهٔ ددهٔ سره    هم به وي آتش پرست پکښې ښکاره
هم به وي د دوئ دوستان پکښې جلیل    د همه آتش پرستو به وي ملے
د دریمې طبقې صاف دے حطمه نوم    په دې نوم سره هر ځائے کښې دے معلوم
مالک وپوښته ما هسې برابر    چې دا ځائے د کوم تولي دے مقرر
مالک ووے چې دا ځائے د عذاب سخت    د سود خورو د میخورو د بد بخت
چې سود خور دې او یا څوک چې څښي شراب    دا دوزخ دے ځائے د هغو د عذاب
د دوېمې طبقې نوم دے صاف سعیر    ما مالک ته وکړ هسې د نګ تقریر
چې دے دا دوزخ د کوم تولي د پاره    مالک ووې په دا شان داسته دواره
دا دوزخ دے د عذاب د ظالمانو    هم دے ځائے د کبرجنو غاورانو
هم د واړو رهزنانو دے مقام    ظالمان کبرجن هم به وي تمام
د اولې طبقې نوم جهنم مشهور دے    د دې نورو د عذاب نه کم ضرور دے
او سره د دې خبر یې چې عذاب    په نسبت د نورو کم دے په دا باب
چې او یا ذره دریاب مې د اور    دې دوزخ کښې وییل مې په زور شور
دا لویې د دا دریاب وه له دې شانه    چرې واړه او وهٔ زمکې هم اسمانه

او اوهٔ دايره اَسمانونه برابر    هر درياب کښې چې يې پر پساسي اکثر

يو ملک ته حکم وُشي چې وسواسه    اسمانونه زمکې دې نه راوباسه

نوکهٔ دا ملک يې زر کاله په شمار    لټوي اويه يې نهٔ مومي دوبار

دومره لوئي وي لمبې پکښې بېشانه    چرې واره اووهٔ زمکې هم اسمانه

يو طرف کښې چې يې وُنيسي اکثر    بل طرف به ترې هرگز نهٔ شي خبر

او پهٔ دې درياب کښې اورمې وُليدهٔ    چې د دېره زوره شوره جوشيدهٔ

اوکهٔ چرې يوه چغه ددې اور    دې دنياته وُرسېږي د اورشور

يو جاندار څيز بهٔ ژوندے نشي ترې پاتې    کل دوان بهٔ شي پهٔ لاړې د ممات

القصه مالک مې وپوښتهٔ د واره    چې ده دا طبقه دکوم ټولي دپاره

مالک دې کښې شهٔ بسيار پهٔ اضطراب    سر يې ښکته کړ رانهٔ يې کړ جواب

مګر دهٔ د جبرئيل سره کلام    پټ خفيه زمانه وکړ دا تمام

جبرائيل ووئيل ماته اے رسوله    پهٔ درګاه د خدا اے د هرچا نه قبوله

چې مالک کوي له تاسونه دا سوال    چې معذور وُلره دې کښې مې ني الحال

ما ددې سوال پهٔ جواب کښې کړه معذور    زهٔ يې جواب کولے نهٔ شمه ضرور

رسول ووې اے مالکه دا ساعت    چې هر څهٔ وي راته وايه امانت

شايد نن ورځ شي اسان ددې مشکل    وي بهتر بهٔ چې نن ورځ شي دا حاصل

# بيت

---

پهٔ کار دي چې پهٔ اول شي ورستي کار لره علاج    او بهٔ نهٔ راځي پهٔ بېرته چې له ورخه شي اخراج

---

نو مالک ووې چې اے پاکه رسولهٔ    پهٔ درګاه د خدا اے د هرچا نه قبوله

دادے ځاے د ګنهګار و د امت ستا    پهٔ کار دي چې امت وا وري نصيحت ستا

خپل امت کړه ته په دې باندې خبر  چې دې دې ځاے هیبت ناک او د خطر
هم د هسې مهلک ځاے ډوساتي ځان  چرې نشي مستحق ددې زندانے
په شامت د گناه خپلې په سبب  چې اخته نشي سیاله په غضب
رحم نهٔ کوم بیا زهٔ په گنهکار  نهٔ کوم ورته بخشش ذره مقدار
د مالک په دې جواب سره سلطان  او د تخت د جلالت اخر زمانے
په دارنگ بیقرارئ سره حضرت  ډُ ژړل په هسې شان هغه ساعت
چې پگړئ دې مبارک سر د سروره  شوله پوره ته په ژړا کښې برابره
په زارئ په عاجزئ په دېرکمال  د امت د شفاعت ئې کاوهٔ سوال
او هم ضعف چې طاقتي د امت خپل  په درگاه د پاک الله بیا نولے
او اوبښکې مبارکې به په دخسار  د چشمانو توئیدلې د دوئیدار
جبرائیل علیه الصلوٰة والسلام  او سره د مقربو نور تمام
هم ژړل او هم سوالونه ئې کول  مقربو ملائیکو یو تر بل
تر دې حده چې خطاب مستطاب  د جنابه د الله رب الارباب
ورته ؤشهٔ چې اے زما حبیبه  په درگاه زما د هرچانه قریبه
چې عزت او حرمت ستا په نین زما  بزرگ تر دے ستا قبولهده دُعا
تا خوشحال به کړم په ورځې د قیامت  مبارک زړهٔ دې خوشحال کړه سلامت
هزار ها الحمد لله العظیم  په درگاه درب رحیم کریم قدیم
نن درځ تا زما خدمت کښې وکړ وس  کوشش وکړ تا چې ما ووئیل بس
لله هسې دې وئیلې قدیم ذات  خپل حبیب ته ئې رالیږلے دا آیات

## طٰهٰ مَآ اَنۡزَلۡنَا عَلَیۡكَ[۱۸۱] الۡقُرۡاٰنَ لِتَشۡقٰٓی[۱۸۲]

یعني اے زما حبیبه په دا شان  نازل کړے نهٔ دے موږ په تا قرآن

دې دپاره چې کوې رنځ او زحمت | هم چې راځي خپل ځان په هلاکت
نو په ورځې د قیامت چې په مقام | شفاعت باندې ته او درېږې تمام
دومره او به بخښم تا ته ګنهګار | چې ته ووايې چې بس دے په یو وار
لکه دا آیات و ېلے دے سبحان | خپل حبيب ته ئې دا لېږلے په دا شان

وَلَسَوْفَ يُعْطِيكَ رَبُّكَ فَتَرْضَىٰ

---

زړه به وي يا زما دوسته په سبب ستا | چې بخشش به وکړې تا ته به خپل رب ستا
ګنهګار د امت تا ته به اکثر | وبخښي تا به راضي کړي پاک اکبر
نو معلومه ده که چرې د سرور | که شه پاتې امتي يو برابر
نو راضي به رسول نشي پرې يا د کل | نو چې بونه ځي جنت له امت خپل
ګنهګار له ازادي ده د دوزخه دا حده | چې دا ستا غوندې سردار دې شفاعت کوي احمد

# الحمد لله رب العلمين و الشكر لله رب العلمين

---

شاد محمد وائي زمونږه پاک حضرت
مهربانه دے بسيار په خپل امت
نور به څه وايم د دې نه زيات بسيار | موښ بخښنه دے د کل داره انبار

# غزل دے په نعت د رسول مقبول

يا رحمة للعلمين يا دوست د الله ستار
يا اول يا آخرين اے يا حبيب کردګار

هم ستا قدر په تیز درب زیات دے دکل ساری[٤٨٦] جهان

يې ته ورته زیاتي قرین ـ دا ستا په شان نشته نګار

ارض وسما بالکل تمام خالق ظهور کړل ستا په مخ

کړي خلق دا اسمان زمین ـ دا ستا په رسالت قرار

لولاک افسر ستا په سرکښېښود پاک الله د حیم

يې شاه سلطان ګزین ـ بالا په عزت باوقار

نبیان هم مرسل همه ـ حق دي په بنه تحقیق سره

منسوخ د دوئ شو لار و دین ـ جاري کړه رب ستا دین ولار

خاص عرش دي د پښ ار له ګرد ـ محکم که ستا فرخ قدم

روغ صاف شه زد پري هغه حین ـ دور شه ترې نه بالکل دوار

سور شوے د جنت ته په اس ـ په تلوکښې دو تربرقه تېز

مل تا سره روح الامین ته ستا جلب کښې را هوار

شافع به پر اخرئ ته ـ سوال به د امت کړ د حق

منکري چې څوک پر دا یقین ـ جاهل دے هم ګمراه کفار

يې ته په امت خپل دحد ـ د پر مشفق هم مهربان

په در د رب يې نازنین ـ امت به کړي ازاد د نار

ماشاد محمد ستا لمن نیولي ده په لاسوکښې

دکره نظر په ماخرین د پریم د عقبیٰ تو یه ګار

---

# فصل د یوویشتم په بیان د دُعا د حضرت

## کښې او هغه دُعا دا ده

اَللّٰهُمَّ اِنِّي اَعوذُ بِكَ بِعفوک من عقابک واعوذ برضاک مِن سخطک واعوذ بک منک لا احصي[۴۸۷] ثناء علیک انت اثنیت عَلیٰ نفسِکَ[۴۸۸].

---

بزرګانو د دین دا رنګ دي ویلي ... په دا طور په دا شان ئې فرمائیلي

چې هر کله پاک حضرت په جنتونو ... هم ئې تیر کړ په کل واړو دوزخونو

د نېکو نه د جنت نبي دوئیده ار ... هم په سختو د دوزخ شه خبر دار

په جنت کښې ئې د عفوې ښځې دېرې ... ولیدلې د حساب د شماره تیرې

په دوزخ کښې ئې ځایونه د عذاب ... ولیدل چې ئې بالکل نه شي حساب

د دوزخ نه تښتېدو نه شه حضرت ... شه نیور نه د جنت د محبت

او حضرت خیر البشر دوست د اکبر ... دا دعا ئې د غوښتله برابر

اَللّٰهُمَّ اِنِّي اَعُوذُ بِعَفْوِکَ مِنْ عِقَابِکَ اَيْ بِجَنَّتِکَ مِنْ نَارِکَ[۴۸۹]

---

اے خداونده پناه غواړم د هر باب ... عفوه ستا نه بلکې ستا د کل عذاب

اود اورد عذاب ستانه امان غواړم ‌ ‌ ځان امت ځپل په امان د نيران غواړم
پس له ځغې کړه برقع د ستر لرې ‌ ‌ ورته وکړې پاک الله دا رنگ خبر چې
يا حبيبه زما واګي دا ختيار ‌ ‌ ما د لاسه د جنت دوزخ د نار
بهر کړي دي او دواړه د پاللو ‌ ‌ معزول کړي عاجز کړي دي د سو لو
او که چرې دے پالو سنکے چي جنت ‌ ‌ وه آدم به يې پا للے نهايت
سوزنده يا لکل اورنه دے برابر ‌ ‌ ناراضي قهر زما دے سراسر
او پالونکے جنت نه دے د هيچا ‌ ‌ بلکي ده پالونکي سنه رضا زما
او که چرې تجلي د رضا خپلي ‌ ‌ د دوزخ په کنده وغورځوم بشکلي
ګلستان او هم بوستان به شي اورسور ‌ ‌ او که چرې د اور تند دچي ضرور
اود قهر نارا ضګي تند رچي خپل ‌ ‌ په بوستان او ګلستان بانديې بالکل
په اتو وارو بيا غونو د جنت ‌ ‌ چي ګوزار کړم هغه دم هغه ساعت
نو دوزخ مهلک به وګرځي فى الحال ‌ ‌ او هر کله دا معنيٰ چي ذوالجلال
پاک سرور ته کړه ظاهره په بشه شان ‌ ‌ نو حضرت ووبيل هسې په زبان

## اعوذ برضاک من سخطک

پناه غواړم اے څاونده په رضاستا ‌ ‌ اود قهر نارا ضګي نه سوا ستا
بيا رسول مقبول حضرت خيرالبشر ‌ ‌ دا دعا يې وو ئيله برابر

## اَعُوذُ بِکَ مِنۡکَ

پناه غواړمه په تاله تانه ډيره ‌ ‌ د حسابه د شمارې د حده تيره

شاد محمدؐ ته پاک رسول د رب حبیبؐ
د پر غم نور وو د دي خپل امت غریب
ول سوال به ئې کاوه د خپل امت
هم کوي به شفاعت په آخرت

## په نعت د حبیب کبریا محمد مصطفی صلی الله علیه وآله وسلم

الله پیدا کړ ستا د رویه کل عالم رسوله
زمین آسمان عرش وکرسي لوح وقلم رسولهؐ
دا عرش عظیم وو سرګردان لکه په شان دا سیا
اودرید قرار چې دې پرې کښېښوده قدم رسولهؐ
الله بالا کړې په نبیانو او مرسلانو باندې
تاج د لولاک ئې په سر ستا کښېښوده سم رسولهؐ
ستا پایه تخت وو د عربو په مکه مدینه
حلقه بګوش هم غلامان دي دي عجم رسولهؐ
مشرق مغرب شمال جنوب څلور اطرافه تمام
د رسالت په حکم ستا دي خوش خرم رسولهؐ
نور چې د نوره ستا ظهور شهٔ دالله رب رحیم
د کل مخلوقه خالق ته کړې مقدم رسولهؐ
ظاهر اخر کړې رب پیدا هم خاتم المرسلین
د پید اش سبب دې کړ بابا آدم رسولهؐ
رحیم کریم قدیم چې تا ته خپل محبوب وئیلي
نور به څوک څهٔ وائي له دې نه زیاتوکم رسولهؐ

اُمت يې ستاكړسربالا پهٔ نور امت باندې
دا ستا د رويه د كريم دے داكرم رسولهٔ

دوستان بهٔ ستا تمام خوشحال وي پهٔ دنيا پهٔ آخر
د شمنان ستا بهٔ وي آخركښې كل پهٔ غم رسولهٔ

همه دوستان ستا پهٔ دنيا دي د اسلام منوّر
د شمنان ستا دي ګېر دكفر پهٔ تورتم رسولهٔ

زهٔ شاد محمد يم دګناه پهٔ تيغ مجروح پهٔ ضمير
د شفاعت له تانه غواړمه مرهم رسولهٔ

---

# فصل دے دوه ویشتم پهٔ بیان د بېرته راکرځېدلو د سید کونین صلی الله علیه وآله وسلم د قاب قوسین پهٔ موسیٰ علیه الصلوٰة والسلام او بېرته ګرځول د دهٔ دپاره د کموالي د لمونځونو او د دوڻ و پهٔ سبب د ضعف د اُمت

---

دي داوړي چي حضرت نبي روښيدار
دوست محبوب د پاک الله رحيم ستار

چي هر کله تماشا د عجبا شو
د جنت او د دوزخ د غرا شو

و ليد له پاک سرور نبي حضرت
د جبرئيل امين نه ئ وا خېشتهٔ رخصت

دوبار ورا غے د رب پهٔ نيشت طرف
پهٔ دولت ئ د ديدار شهٔ مشرف

خطاب وُشهٔ چي يا دوسته پيغمبره
نعمتونه د جنت د حده غوره ا

عذابونه د دوزخ د حده دېر
وُليدل دي په ځه رنګ او په څه څېر

حضرت وائي په جواب کښې مې دا شان
عرض وکړ په الله رحيم رحمان

نعمتونه د جنت مې د هر بابه
وليدل چې بې له تا ئې د حسابه

بل يو کس نه دے بالکل پرې خبردار
عذابونه د دوزخ په دا مقدار

و ليدل مې بې حسابه نهايت
چې بې تا ئې بل عاجز دے د صفت

پاک الله ووې زما پاکه رسوله
په درګاه زما د هر چا نه قبوله

چې هم ته او امت ستا فرمانبردار
عذابونه به ئې نه ددا رنګ ناړ

صفتونه ئې چې تا وُوړېدل شان شان
په قلعه کښې به د امن د امانے

پناه کښې به زما وي دا احسانے
نو اوس او ګرځه بېرته شه روان

خلق زما په طرف بوله هر ساعت
د ايمان او هم په لوري د جنت

نعمتونه ئې ورته واړه ښکاره وه
د دوزخ د سخت عذابه ئې ويره وه

پس د هغې نه الله رحيم اکبر
و صيته يو څو وکړه برابر

خبردار ئې کړ خپل دوست محبوب حضرت
هغه دا دے اول دا دے وصيت

اے حبيبه زما هر کله چې غم
يا خفګان راشي تا باندې هغه دم

ياد وه ما چې په هغه وخت بېشانه
زه نزدې يم تا ته ستا د خپله ځانه

دويم دا دے وصيت چې د ازاره
د بنده ئې د مظلوم ويره کړه بسياره

چې په منځ زما او سوال کښې د مظلوم
هېڅ پرده او حجاب نشته دے معلوم

په دا وخت ما ته د هر يو مظلوم سوال
دے قبول اګر کافر وي په دا حال

دريم دا دے وصيت چې يا محبوبه
په درګاه زما د هر چا نه مرغوبه

ګوره صبر په سختو کښې او د جبره
او د بغض د عناد او هم د کبره

لرې اوسه په دنيا مه شه مغرور
او قرار په دې کښې مه ئې سه ضرور

چې دنيا ځائے د زوال دے د جفا
بالکل نه کړي د هېچا سره وفا

نو ما ووې اے خداوند رب المنانه
بندګي کوو مونږ تا لره بجا

او له تانه کوو ویره نهایت ‎ ‎ او له تانه امید وار یو هرساعت

او یو هیږم بشه په علم د یقین ‎ ‎ چې ته یې ز مونږ ه رب العلمین

او هم ته په پیدا کوونکے یې زما ‎ ‎ او هم زه د مکرم کړے یمه تا

په خلعت د نبوت سره تمام ‎ ‎ مکرم یم زه له تا په دا اکرام

پس د هغې وو یې پاک الله سبحان ‎ ‎ خپل حبیب ته په دا طور په دا شان

یا رسوله دي لازم دي په تا باندې ‎ ‎ چې ممونځونه وخت په وخت سره وکاندې

او کوه امر معروف کښې کوشش ډېر ‎ ‎ بلکې هم نهي منکر د حده ډېر

چې د دین دے هم په دې څيز د قیام ‎ ‎ حضرت وائي چې ما وکړ دا کلام

## اِلٰهِیْ وَسَیِّدِیْ وَمَوْلَایْ

تو م زما یه تصدیق وُ کاندې د وا ره ‎ ‎ او هغه چې مې نن شپه ستا د دربا ره

او رپه لي یا لیدلي دي دو راستې ‎ ‎ چې زه و کړم دو یې ته دو یې به یې قبول کاندې

نو الله رحيم کريم قدیم سبحان ‎ ‎ خپل محبوب ته وویل په هسې شان

## یُصَدِّقُكَ[۹۰] اَبُوْبَكْرِنِ[۹۱] الصِّدِّیْقُ رض

د خبرو ستا یه وُ کاندې تصدیق ‎ ‎ ابوبکر رض صدیق ستا د غار رفیق

القصه پس د هغې نه چې حضرت ‎ ‎ شرائط د اد بونو د صحبت

په ځائے را وړل او څوشحالکي غوره ‎ ‎ د رازو نو پټو وا ړو سر د سره

د وحدت د خمخانې نه یې وڅکل ‎ ‎ را روان شه په طرف د امت خپل

اشتیاق یې د وصال او د دیدار ‎ ‎ د محبوب ازلي پاک رب کردګار

او اګرچې به همېش ورته حاصل وو ‎ ‎ دې دولت با سعادت سره واصل وو

مگرهم ظهور د نظم دا حالت    برابر ظاهره وي په دا صفت

# نظم بحرالطّویل

---

دا ئن شپه له ما عاشقه اے معشوقه مهٔ شه دُور

تهٔ له سترګو له ما مهٔ ځه يُ د سترګو زما نور

کهٔ بل کس مې له نظره ګوره لاړشي پاک يُ نشته

تهٔ محبوب معشوق زما يُ مهٔ ځه يُ ماته منظور

کور زما لکه بهشت دے په ديدن دې حورپيکر ه

تهٔ له دې بهشته مهٔ ځه چې هم تهٔ يُ پکښې حُور

مګر دا قاعده کليه ده چې شهباز

او د زرږو رو يو وي نازبين د ناز

په يوې يوې مرغه پسې مير ښکار

پر پريږ دي ښکار پسې د ښکار پرې کوي کار

چې هغه لرې قيمت يوه کنجکه    دې مرغه پسې يُ ادوزئ ښکه

دا شهباز چې دا چرچنه کاندې صيد    د کونجکې مرغه داولي په قيد

نهٔ پوهيږم آه ددې تشريح بيان    چې ددې معنئ چې وکړم په څهٔ شان

اے فقيره چې شهباز په حق د ښکار    داګرچې دي د حده د بر پکار

مګر دې مرغه له سل زره عيان    بلکې شته دے هم ضرور خريد اران

باز په ځائے کښې وي د ښکار صفا برابر    او مرغه مې په نظر کښې وهي پر

باز نه مراد دے محمّد عليه السلام    د مرغونه مراد اُمت دے صاف تمام

کم قيمته مرغه يو موږه اُمت    او په حق د ښکار کولو هر ساعت

داپرې ېښے وو چې رب په لار د حق    چې موږ داولي په لار د حق مطلق

القصه چې د جناب رب الارباب — پاک رسول ته وُشهٔ هسې رنګ خطاب

چې اے دوسته زما مایهٔ خوا اول — حکم کړے دے پهٔ ورځې د ازل

پهٔ دارنګ چې د دې متو خاوروسم — سبب صاف دے حاضروالے د عالم

مراد د متو خاورو دے پهٔ هسې شان — یعني مراد دي ترې زما کل بندګان

پهٔ دربار پاک کښې زما ئې ته رسوله — پهٔ دربار زما د کل خلقو مقبوله

او چراغ بهٔ بیلوې د هدایت — تو ده لاره کښې د دوئ د ضلالت

او کهٔ تهٔ دراوستلو د اُمت — کهٔ عاجز شي ته د دې ځائے ته کوم ساعت

نو دهٔ ستا دراوستلو دې مقام ته — عاجز نهٔ یم اوس تهٔ ځه اُمت تمام ته

لا رشه تهٔ امت د دې واړه سراسر — دوئ زما پهٔ لور دا بوله سراسر

هغه څوک چې دې مقام ته حاضرور — داولې دا به کړي هلته د حضور

هم چې خلقو ته تهٔ دین بیانه وې — او ابلاغ د رسالت عیانه وې

څو کوولے شې کوه صبر هر دم — او هر کله چې طاقت دې طاق شي کم

بیا رمیاشت چې دې د صبر شي هلال — تکبیر وکړه د نمانځهٔ پهٔ هغه حال

دهٔ به لري کړم حجاب درته تیار — هلته وُبه ښیم تا ته خپل دیدار

پس د هغې چې حضرت خیر البشر — بیرته راغے د معراج نه د سفر

شوق پهٔ شوق بهٔ د دید د زیاتیدهٔ ډېر — هسې شان بهٔ بیقرار شهٔ د حد ډېر

او اول ئې وو د یوازې شوق د سر — بدلې شوق د روح او شوق د ذرهٔ اکثر

او هم شوق د نفس د شوق د سر سُره — شول یاران او هم مدګري صاف کړه

نو هر کله چې زمونږ د پاک حضرت — د صحبت به د خلقو نهایت

مضطرب بهٔ شهٔ د خلقو هم ملال — چې د صبر به ئې شهٔ ورک طاقت مجال

نو حضرت خیر البشر اخر زمانے — دا به ئې وو ښل بلال ته هسې شان

## اَرِحْنَا یَا بِلَالُ مِنْ هٰؤُلَاءِ وَ صُحْبَتِهِمْ !

اے بلاله راکړه ماله راحت — د دې خلقو نه د دوئ د صحبت

مگر د ا رنگ حقیقت کښې دو اظهار — چې ترڅو به اراده وه د ستار
هم ددې خلقو سره صحبت لري — ترهغې به ده احکام کړل جاري
هغې پورې به حضرت خیر الانام — کړه اجرا به یې د شرعې کل احکام
او هم ذره مبارک وو به یې په مقام — هر چې تېر به شه پرې یو ساعت تمام
نو دده سر مبارک به په حالت — اضطراب کښې به یې دا وست نهایت
شوق به زیات شه د الله پرې د دیدار — په فریاد سره به یې وکړ دا گفتار

## ارحنا یا بلال من هؤلاء و صحبتهم

اقامت به وکړي زر حضرت بلال رض — پاک رسول به تکبیر وکړ هغه حال
او په مونځ یاندې به ودریده سرور م — بزرگانو دې د سېلې برابر
نېل وجود مونځ کښې الله ته د سپارل — له دې دوو جهانو مخ دے گرځول
بېشک هر یو عبادت چې خلط د مراد — وي د نفس سره په کښې وي د ازاد
د دنیا په کښې جائز دے هم طلب — خلط د نفس د مراد سره وي مرکب
په نما نځه کښې - عقد - د دنیا — روا نه دي او دي بالکل نا روا
نه شهوت او نه د نفس نه د صحبت — چې د خلقو سره کاندې دا ساعت
نو پس سرد نما نځه شه څېرزدے عیان — او بالکل چې تعلق سرے د ځان
هم د نور و علا قو نه پرې کول دي — او نېل ځان الله سبحان ته تو سپارل دي
نو هر کله چې زمونږه پاک رسول — په درگاه د رب د هر چا نه قبول
ددې دوو جهانو پاک به شه حضرت — لاړ د منځه به همه واړه محنت
تا به قوسین او ادنی کل واړه مقام — په دا وخت کښې به لیده خیر الانام
د دې حال نه به زمونږه پاک سرور — ورکاوه به په دا رنگ سره خبر

## وجعلت قرة عينی فِیْ الصَّلوٰةِ

یعني نهٔ یهٔ يُ وئيل چې روښـــنـي
بدکي هسې محمد اخر زمان
دنیا ئې زما د ســـترګو ده نمازکښې
چې د ســـترګـو روښني زما فرور
خبردارشي یرې همــه خلق تمام
روښني د سترګو نمونځ نه دے تیار
نور د سترګو د حضرت خیرا لبشر
بې د قربه د معشوقه نوي بل

صاف زما دسترګو نمونځ دے امانې
دا وئیـل یه يُ پـهٔ زبان دُرفشان
لکه پتهې سترګې خلاصې چې دبازکښې
ده پهٔ نمونځ کښې دي د پاره چې حضور
چې د سترګو د حضرت خیر الانام
ده پهٔ نمونځ رو ښني د پاک دیدار
نور د ســترګو د دوســتانو دسرور
لکه دا د بزرګانو دي وئیـل

## سهونا عن الاعلی بالادنی

یعني سهوه زمونږ نمونځ کښې مشرف
اعلیٰ نمونځ دے او ادنیٰ ده نفس دنیا

دا علیٰ نه دا دنیٰ وي پـهٔ طرف
علا قې دي پـهٔ کښې نشته کم سِوا

## وسهو المصطفی صلی الله تعالیٰ علیه وآله وسلم عن الادنی بالاعلیٰ

یعني سهوه د حضرت اخر زمان
چې پهٔ دې ځاے کښې ادنیٰ نمونځ د قرار
شهٔ حضرت ته به د سهوې پیښې سبب
القصه دي فرمائیلي پاک حضرت

دا دنیٰ نهٔ وه اعلیٰ ته پهٔ ښهٔ شان
او اعـلیٰ پهٔ کښې دیدار دے د ســتار
پهٔ دیدار به وو مشغول د غني رب
چې هرکله د کړ ما مراجعت !

قاب قوسین او ادنیٰ ته د مقام
چې وا پس شوم را غلم عرش له په یوګام

عرش عظیم به په ما باندې د رحمت
د سلام او د رحمت د برکت

پیشکشې به یې را لیږلې هر زمان
زه یې تېر کړمه ترې تېز د برق پشان

پس د هغې پو طائفې هغه د م
د ملکو زه ورو رسیدم سم

چې عدد د وو برابر دي ملکو
د مخلوق د هفت اسمانو د هفت زمکو

په مخلوق کښې دي هم څاڅکي د باران
هم حساب دي پکښې ستوري د اسمان

هم د ګونه دي پکښې د بیابان
د حساب یې نشي.یې د خدایه توان

په مخلوق دي داخل د هر څه نه
وکړه ما د جبرئیل نه دا پوښتنه

چې دا کومه طائفه ده بېشماره
جبرئیل ووې اے دوسته دستاره

دې مَلکوته وایه شي کړو بیان
نو جبرئیل سره زه ومه داروان

چې د خپل رور د موسیٰ علیه السلام
برابر را غلمه بیا یې په مقام

ملاقات مې ورسره وکړ في الحال
نو زمانه یې وکړ هسې رنګې سوال

یا حضرته پاک الله ستا په امت
څه څه فرض کړل ماپو یې کړه داساعت

ورته ووې ما په شپه ورځ کښې سبحان
کل پنځویشت مونځه فرض کړل عیان

اوهم دې میا شتې روژې رب ذوالجلال
په امت یې زما فرض کړې د کال

نو موسیٰ علیه الصلوٰة والسلام
راته وکړ په دا شان سره کلام

اوس په بېرته زر که وګرځه في الحال
د کم والي د الله نه وکړه سوال

امت ستا ضعیف د حده دے بسیار
طاقت نه لري بالکل دوی دد دې بار

حضرت وائي في الحال خدائے ته شوم روان
بیا داخل شوم په مقام د لا مکان

سوال مې وکړ اے الله زما امت
ډېر ضعیف دے بالکل نه لري طاقت

یا د په قدر د طاقت ورباندې کېږده
زیاتي بار د دوی د شانه لاندې کېږده

پس د هغې د جناب رب الارباب
راته وشه په دا شان سره خطاب

اے رسوله په تا هم په امت ستا
په شپه ورځ کښې دې شل مونځه کړې ادا

کال کښې دوه میاشتې روژې مې کړې پرې فرض
شل نونځونه مې شپه ورځ کښې کړهٔ پرې فرض

ما قبول کړهٔ شوم پهٔ بېرته دا روان
پهٔ موسیٰ را غلم دا خلا مې کړ بیان

موسیٰ بیا پهٔ بېرته ستون کړمه واپس
ستا امت دے ډېر ضعیف وکړه خپل وُس

د کم والي کوشش وکړه دې کښې سم
نو بیا بېرته زهٔ روان شوم هغه دم

د تخفیف مې د الله نه وکړ سوال
کړل قرار پنځلس نمونځه ذوالجلال

هر چې را غلمه موسیٰ له برابر
بیا ئې بېرته ولېږلم مقرر

القصه چې تلم راتلم به هر ساعت
آخر دا چې خدائے پاک پهٔ کل امت

پنځه نمونځه پهٔ شپه ورځ کښې ذوالجلال
مقرر کړه او هم دېرش روژې د کال

هر چې بیا موسیٰ له را غلمه دوبار
موسیٰ وې راته ځه بېرته پهٔ دا لار

پهٔ دربار د کردګار د رحیم پاک رب
او تخفیف کړه د الله نه نور طلب

چې دا هم کولے نشي ستا امت
نو دا رنګ دے پهٔ دا شان یو روایت

چې حضرت ته بیا موسیٰ علیه السلام
داکرت د بېرته تلو وکړ کلام

نو حضرت خیر البشر خیر الانام
هسې عذر ورته وکړ پهٔ اتمام

یا موسیٰ هسې دربار له پهٔ تلو بیا
راځي ماله هم شرم هم حیا

چې هرځهٔ دا ځل موسیٰ لېږهٔ واپس
ورشه خواه نا خواه دا ځلي پهٔ هوس

مګر بیا رسول الله خیر البشر
د کثرته د حیا نه سراسر

بیا پهٔ بېرته یا ندې لاړ نشهٔ حضرت
پس د هغې شهنشاه د جلالت

دا ورنګ د جلالت حضرت رونیدا ر
چې پهٔ بېرته یا ندې لاړ نشهٔ دوبار

ګرځونکو د خبر پهٔ هغه دم
پهٔ اطراف د ملکوت د کل عالم

ګرځول به ئې دا خبرونه دا رازونه
او کول به ئې دا شاني اوازونه

چې شول فرض پهٔ رسول آخر زمان
ورسره ئې پهٔ امت هم پهٔ دا شان

پهٔ شپه ورځ کښې پنځه چې عیان
کال کښې دېرش روژې یو میاشت د رمضان

او بل دا رنګ روایت دے چې حضرت
د موسیٰ پهٔ وېل لاړ شه دا کرت

ورته شرم ده تخفیف سکړي طالب ورته ووېي په دا شان سره پاک رب

## من صلی هذه الصلوٰة الخمس في مواقيتها ۶۹۲

یعني څوک چې دا پنځه مونځونه کاندي په وخت وخت سره ادا کړي لاندې پاندې

روژې وساتي یوه میاشت په حساب او امید لري د خدایه د ثواب

د غه کس له الله رحیم کریم د پنځوسو مونځو ورته کړي قدیم

چې اول په ابتدا کېنې دو تعین د هغو ثواب به ورکړي په یقین

او په دې یو میاشت روژه به برابر ثواب ورکړي د هغو روژو اکثر

چې شپږ میاشتې وې تعین په ابتدا د هغو ثواب به ورکړي ورته عطا

او په بعضو روایاتو کښې دا شان فرمائیلي دي الله رحیم رحمان

چې زما په مقتضی دې څوک روان هسې وائي پاک الله رحیم سبحان

## مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ اَمْثَالِهَا ۶۹۳

او ثواب د لسو میاشتو سراسر د روژو به ورله ورکړم زه اکبر

چې یوه نیکي څوک اوکړي په دنیا لس نیکي به ورکړم ده لره سوا

د روژې د یوې میاشتې په بدل لسو میاشتو ثواب ورته کړم یو ځل

دا دا رهٔ اخترد میاشتې شپږ په شمار روژي و نیسي ثواب به زه ستار

پوره ورته کړم د دوو میاشتو سنبال لکه دې کس روژې و نیوې تمول کال

او بل دا رنګ روایت دے چې رسول پنځوس وخته مونځه ئې کړه په ما قبول

او موسیٰ علیه الصلوٰة والسلام! بېرته و لېږه سرور خیر الانام

د تخفیف طلب د پاره سرا سر څو کرته بیا بیا لاړ دا غه سرور

او حتیٰ چې پنځه مونځه شو قرار　　موسیٰ بیا هم ورته وې لا پرشه داوار

چې یې ستا نه په دمبې خلق دي آزمائیلي　　ستا امت هم نشي دا قدر کولے

نو حضرت ووې چې نه څمه زهٔ بیا　　مالوه را څي اوس د پر شرم حیا

په دا قدر زهٔ راضي یمه بېشانه　　نور تخفیف غوښتلے نهٔ شم د حیانه

حضرت واخي د جانبه د ثواب　　پس د هغې وشهٔ ماته دا خطاب

ما په خپلو بندګانو کړل دا فرض　　پنځه مونځه میاشت دوړي مې کړي پرې (فرض)

او سختي مې ترېنه بېرته کړه یک بار　　دا پنځه مونځه مې فرض کړل په شمار

هم په تا هم همه ستا په امت　　هم یو مونځ له دې مونځونو سلامت

یو یو مونځ به یې زهٔ قبول کړم په لس　　دا پنځه به په پنځوس کړم حساب پس

هغه لیک چې په قلم ما د ازل　　دے لیکلے هغه نشي به بدلے

بدلې دا مونځونه دي پنځه في الحال　　هم ثواب یې د پنځوسو دے سمبالے

دا مونځونه دي پنځه په صاف حساب (کېنې)　　په درجه دي د پنځوسو په ثواب کېنې

دا مونځونه دي پنځه پوره تکلیف کېنې　　په درجه کېنې دا پنځوس دي په تشریف (کېنې)

دا پنځه مونځونه دي تاسو له اکثر　　او ز ما په نیز پنځوس دي برابر

دادے نقل چې حضرت آخر زمانے　　فرمائیلي دي په دا طور په دا شان

پنځه مونځه په ما فرض کړل ثواب　　بیا یې وکړ په دا شان راته خطاب

یا رسوله مونځ مې ستا ستا د امت　　مرکب کړ ما د هسې عبادت ؛

په قیام په قرأة رکوع سجود　　په قعده باندې چې د پر دے پکښې سوُ

مرکب دا عبادت دے برابر　　د کل واړه ملائیکو سراسر

اَنْ تر عرش تحت الثریٰ پورې تمام　　امت ستا لره ثواب به د قیام

د ملکو قائمینو به ضرور !　　ورکوم ستا امت له زهٔ غفور

په رکوع به ورکومه زهٔ ثواب　　د ملکو راکعینو زهٔ ثواب

او ثواب به په سجود باندې بسیار　　د ملکو ساجدینو به تیار

ورکوم هم د قراٰة ثواب عيان ورکوم به د نوستونکو د قرآن

تسبيحاتو به ثواب د سبحانو او ثواب به په تهليل د مهللانو

ورکوم په فضل خپل به زه پاک ذات ورکوم به دوئ له زيات د پردرجات

او شه يوه چې بزرګانو د سيرْ کتابونو معتبرو کښې اکثر

په دا رنګې دي وئيلي بنهٔ عجب چې هغه پنځوس مونځونه چې پاک رب

تعين کړي دي د دې مونځو نو صاف دا مونځونه دي معلوم نهٔ دے خلاف

چې په هرهٔ شپه او ورځ کښې عبادت مو دا دے وِرْد ستا د نوا صو دامت

او تفصيل ئې په دا رنګې دے زيبا چې اول سنت کول دي د سبا

دو بۀم فرض د سبا کول قرار او دريم او څلورم څلور په شمار

دا څلور رکعته دي سنت اول چې د فرضو ما سپښين نه کيږي بېل

يعني هره شفعه ده بنهٔ مقرّره د سنتو نوافلو مونځ دے غوره

پنځم فرض د نماز سپښين دي وا ئيم ثالثه او شپږم او هم اووم څلور رکعاته

ما سپښين د فرضو پس ئې کنه ادي لکه دا رنګې حديث دے دا جا دي

**عن اُمّ حبيبة قالت سمعت عن رسول اللّٰه**

**صلی اللّٰه تعالىٰ عليه و آله وسلّم من حافظ**

**علیٰ اربع رکعاتٍ قبل الظهر واربع**

**بعدها حرّمه[۱۹۴] اللّٰه تعالیٰ على النار[۱۹۵]**

---

روايت ام حبيبه کړي عرَ بي دا حديث ئې او ريدلے د نبيؐ

چې سنت څلور رکعاته هر مؤمن اول فرضونه کوي د ما سپښين ا

پس د فرضو د ماسپښین نه چې څلور
دا څلور د کعتونه کوي نور

پاک الله به کاندي ده پاندې تمام
اور د وارو دوزخ نو به حرام

او اتم نهم څلور دکعته سیر
اول فرضونه دوخت د ماځیګر

لسم فرض د ماځیګر کول تمام
یل ضرور یوولسم فرض د ماښام

دولسم دي د ماښام سنت ضرور
دیارلسم د ماسختن فرض ظهور

څوارلسم د ماسختن کول سنت
پنځلسم وتر کول هغه ساعت

پس د شپې دولس دکعاته دي بهتر
چې شپږ مونځونه برابر شول مقرر

او شپږ مونځه د ضحی مونځ شه عیان
اوددې مونځه د ماښام خفتن ترمیان

پېشکشي د جماعت کېږي د پاره
د هر مونځ د فرضو سم ودسره شماره

پنځه مونځه کېږي نور په دا صورت
سم په منځ کښې دا اذان دا اقامت

دا بدست دي پېشکشي پنځه هم نور
ور پسې دي پنځه نور پسې څلور

تفصیل دا ددې پنځو دے صاف تمام
د تسبیح استخارې تو بې مدام

دا څلور دي د حاجت صاف مقرر
کل پنځوس مونځونه کېږي برابر

او اول محافظت وو فرض شوے
برابر ددې مونځونو فرض شوے

پس د هغې تخفیف و شه دا تیار
پنځه وخته برابر شول سر قرار

باقي فرض مستحب شول سراسر
په حدیث صحیح دي دا د پېغمبر

چې هر چا وکړ په فرضو کښې نقصان
د قیامت په ورځ به پاک الله سبحان

نوافل به ئې په فرضو کړي دې شمار
بعضو کړے دے بزرګانو دا رنګ کار

په شپه ورځ کښې سل دکعته مونځ یو
ادا کړے دے په ښه شاني کره

د هغو پنځوسو قضو برابر
چې تکمیل دا شي پرې پاندې سراسر

او دا مونځ ئې لازم کړے دے په ځان
در غبت د زیادت د پاک سبحان

**شاد محمد** سوال د خیر او دا یمان که
په درګاه د پاک رحیم کریم منان که

سم پهٔ شرعه برابر څه د حضرت        چې دې شمار کړي پهٔ تولي د خپل اُمت

# غزل در نعت صفوة

## آد میان محمد آخرالزمان صلی الله علیه وآله وسلم

---

الله بالا کړې پهٔ زمین او پهٔ اسمان باندې
لکه د نمر ئې کړې ظاهر پهٔ کل جهان باندې

اول پیدا آخر ظاهر اول اخیر پهٔ ظهور
څکه معلوم ئې پهٔ نبي آخرزمان باندې ہے

هرچې دوان دې ستا پهٔ لار سم د ذرهٔ پهٔ صدق
هغه تمام بهٔ مشرف وي پهٔ ایمان باندې

چې پهٔ قدم دې مشرفه کړه دنیا تمامه
پاس د اسمان دوره شوه بنده پهٔ شیطان باندې

چې څوک څې ستا د لارې غیر او غواړي خیر درېه
جنت حرام دے د هغو خلقو پهٔ ځان باندې ہے

درب رسول ده یوه لار پهٔ کښې دوهمه نشته
کافر مطلق دے چې عمل نهٔ کړي قرآن باندې

تورات انجیل زبور فرقان درب د لوري نازل
نور شول منسوخ چې فرقان راغے پهٔ کوم آن باندې

چې پهٔ حضرت آخرزمان راغے فرقان د حقه
هغه بیدین دے چې د شک وي پهٔ گومان باندې

هغه مومن او مسلمان دے نشته شک او شبه
چې کلمه ستا هر څوک وائي په زبان باندې
یو لک څلیریشت زده زیات وکم پیدا انبیاء
ته یې بالا د وارو نشته ستا په شان باندې

زه شاد محمد کومه سوال د ذوالجلال په درګاه
چې په اخر کړي ما دا خل ستا په نشان باندې

---

## فصل دے درویشتم پهٔ بیان د هغو

## واقعاتو چي پس د راتلو د معراج د حضرت

## صلی الله تعالیٰ علیه واٰله وسلّم ظاهري شوي

## دي او پهٔ دې فصل کښي به اووهٔ واقعي ظاهر شي

علماؤ د راتلو د پاک حضرت  
اختلاف دے د حضرت د کیفیت

بعضي وائي چي حضرت خیرالبشر  
جبرئیل دے کښېښنولے پاس پهٔ پرَ

اسمانونو نه ئې تېر کړے دے روئېدار  
بیا دنیا ته ئې راو ستلے دے دوبار

حذیفه اصحابي د پاک حضرت  
پهٔ دا شان سره دے کړے روایت

چي پهٔ وخت د تلو راتلو کښي پاک سرور  
د براق د پاسه سور دو برابر

بعضي وائي تلو کښي سور وو پاس پهٔ اس  
جي براقه وو راتلو کښي دے واپس

پهٔ بیو ډ کښي د حضرت وو دا حکمت  
پهٔ براق د حق اظهار وو د قدرت

بعضې واېُ د حضرت مراجعت | پهٔ دا رنګ مراجعت وو د حضرت
او هر کله چې سلطان د دربار پاک | او د قرب حبیب محبوب شاه لولاک
او هم خاص د نزدیکت دخلوت سرائې | دا الطاف اکرام کل ولیدل دخدا ئے
نو سربشکته سجدې ته کړ سرورٌ | دې دپاره شکر وکړې د اکبر
پهٔ دا حین کښې چې حضرت پاس وُکتل | ځان ئې خپل بیا موندهٔ پاس پهٔ بستر خپل
حضرت وائې چې بستر زما د خواب | هم پهٔ هغه شان وو ګرم پهٔ حساب

## ابیات مدحیه حضرت صلی اللّٰه تعالیٰ علیه وآلهٖ وسلّم

---

دګومې چې ئې لکه برق وهلې لار وه | پهٔ بستر باندې ګرمي ددهٔ قرار وه
نهٔ پوهېږم ددې شپې ووځهٔ احوال | د غه شپه وه یا شپه نهٔ وه وو یو کال
چې ارواح زموږ د وارو پهٔ یو دم | کرګوٹے شي چا پیر دکل عالم
لطائف ددهٔ د تن چې دېر صفا دی | کهٔ لار راغے یو لحظه کښې دا روا دي
دا رنګ تلے هم راغلے دے واپس | چې به رانشي پهٔ عقل د هیڅ کس
واقعه اوله دا ده اول شمار | پهٔ بیو لو کښې د پاک نبي د دیدار
جا بلقا او جا بلسا ته یواے | دې ښهرو نو ته زموږ نبي سرورٌ
او یاجوج ماجوج ته آخر الزّمان | او هم نورو طائفو ته پهٔ دا شان
بلکې دلته دے پهٔ دا شان روایت | چې جبرئیل امین زموږ پاک حضرت
پهٔ یاجوج ماجوج راو ستے دے اول | دې کښې دا رنګ وه رضا د لم یزل
چې حضرت علیه الصلوٰة والسلام | بیان وکړې اول دوئ ته د اسلام
هرچې وُبلل اسلام ته وائې رسول | نو یو کس پهٔ کښې اسلام نهٔ کړ قبول
عبادت ته ئې د خدائے کښې نشوه غاره | د جهنم خوراک خشاک دي تمام واړه
پس د هغې حضرت وائې چې زهٔ صاف | ورو ستلم د دوؤ ښارو پهٔ اطراف

د مغرب پهٔ ولایت کښې دو یو ښار ... بل مشرق پهٔ ولایت کښې وو پهٔ چار

د هر ښار وې دوه دوه زره پهٔ شمار ... دروازې وې وه پهٔ منځ کښې فرسنگ لار

د یوې بلې پهٔ منځ کښې پهٔ دا رنگ ... پوره لا دوه برابر یو یو فرسنگ

او فرسنگ وائي ځلور گروهو ته سم ... او د ښار د مشرق خلق عالم

او د قوم نه پاتې شوې وو د عاد ؛ ... او پهٔ نسل وو د هغو خلقو یاد

پهٔ صالح باندې راوړے وو ایمان ... نوم د هغې د مشرق ښار عیان

سریانیه باندې یې نوم وو برقیا ... عربیه باندې یې نوم و جابلقا

د مغرب د ښار نوم وو برخیا ... سریاني کښې او عربي کښې جابلسا

د هر یو ښار برابر پهٔ هر یو در ... دربانان وو پرې لس زره مقرر

پهٔ سلاح سره تپول ډک وو دربانان ... بله ورځ لس زره نور راځي دا شان

دربانانو راځي بله ورځ نوبت ... دوباره وار یې نهٔ راځي اَنْ تر قیامت

نو حضرت علیه الصلوٰة والسلام ... وائي دوئي ته مې د خپل دین د اسلام

ورته ما د عبادت د پاک سبحان ... امر وکړ راوړ کل واړو ایمان

او د عوت یې کړ زما قبول ضرور ... پهٔ طرف د عبادت د رب غفور

دوئي پهٔ دین کښې زما دوهه دي قرار ... دي نیکان یې پهٔ نیکانو زموږ شمار

دي بدان یې پهٔ بدانو زموږ سم ... پس د هغې نه یې زهٔ پهٔ هغه دم

ور وستلم پهٔ دې نور وطنو باندې ... چې حساب به د دوئي پاک الله وکاندې

بل څوک نهٔ دي پهٔ حساب د دوئي خبر ... دیوې فرقې وو نوم مَنْسَکْ اکثر

او د بلې فرقې وو صاف تاویل نوم ... دریم نوم یې وو تاریس ظاهر معلوم

نو دې درې واړو ته ما د اسلام دین ... د عوت وکړ برابر پهٔ هغه حین

مگر دوئي نهٔ کړ اسلام قبول بالکل ... وې دوزخ کښې به کفارو سره تل

واقعه د دریمه داده مقرره ! ... د موسیٰ د قوم قصه ده برابره

فرمایلي دي پهٔ دا شاني حضرت ... زهٔ پهٔ وخت کښې دوی پس مراجعت

په یو قوم یې دا وستلم په اخلاص — دا طائفه او قوم هغه دے چې خدائے خاص

صفت کړے په قرآن کښې دے دا زیات — لکه پاک الله وښلے دا ایات

## وَمِنْ قَوْمِ مُوْسٰى اُمَّةٌ يَّهْدُوْنَ بِالْحَقِّ وَبِهٖ يَعْدِلُوْنَ ○ ع۹۶

په دې قوم وکړ سلام ما په شتاب — د سلام زما یې بنه وکړ جواب

پس د هغې جبرئیل علیه السلام — تعریف وکړ د ټول حال زما تمام

زه یې ښه وپېژندلم په ښه شان — چې هم دا دے پیغمبر آخر زمان

بلې دا چې صفتونه د جلال — وو لیدلي هم زما یې د کمال

کتابونو ښوانو کښې وو لیدلي — د نبیانو ښوانو هم اورېدلي

ټول خدمت کښې زما دا غلل هغه دم — او یو بل ته یې اشارت کاوه دا سم

نا خبر به یې کړ زما په حال خبر — په لحظه کښې خبردار شوه کل اکثر

دو یې تمام وارېه زمانه شو راجمع — لکه جمع پتنګان چې شي په شمع

ورته ما امر د دین او د اسلام کړ — په ښه شان سره ټول یې ښه تمام کړ

ایمانونه یې په ما راوړه امانت — شو ګواه وارېه زما په رسالت

او دویې دوې چې الله رحیم اکبر — او موسی ته چې زمونږ وو پیغمبر

ستا د بعث د رسالت نه براسر — وو ورکړے ستا د کل حاله خبر

او موسی علیه السلام مونږ ته قرار — صفتونه هم ورکړي ستا بسیا د

منتظر د مودې ډېرې وو مونږ د ډېر — مبارک قدم ته ستا د حده تېر

او مشتاق د دیدار ستا وو مونږ بېحده — اوس ثنا ده دوا حد الله احده

چې مونږ وارو ته نعمت وو ستا دیدار — د پردې غیبې نه مونږ ته شه اظهار

په دې قوم کښې مې خوښېږه و لیدل — اول دوې وو په د ښکونو زړه کل تله

او سینې مې ولید لې سلامتې ‏ ‏ ‏ ‏ او جامې ئې دوړېدې وې امانتې

د پوالونه د کوډونو ئې برابر وو ‏ ‏ ‏ ‏ د کوټو ئې نه تمبې زنځیر د ور وو

او قبرونه ئې وو کوډونو ته قریب ‏ ‏ ‏ ‏ جماعتونه وو ترې لرې په ترتیب

معتکف وو جماعتونو کښې دا ښاد ‏ ‏ ‏ ‏ چې هر کله به د دوئ وشه اولاد

چې اولاد به شه د دوئ چرې پیدا ‏ ‏ ‏ ‏ په هغه به دوئ کوله بنه ژړا

او هر کله دوئ کښې مړ به شه یو کس ‏ ‏ ‏ ‏ په هغه به دوئ کوله خندا هوس

ما اول پوښتنه وکړه هغه حین ‏ ‏ ‏ ‏ چې یئ تاسو په کوم لاره او کوم دین

راته وې دوئ چې مونږ په پاک سبحان ‏ ‏ ‏ ‏ په وحدت دده راوړے دے ایمان

هم دده په ملائیکو سراسر ‏ ‏ ‏ ‏ هم دده په کتابونو برابر

هم په واړه انبیاء علیهم السلام ‏ ‏ ‏ ‏ ایمانونه دي راوړي صاف تمام

هم د دوئ قبولې کړي دي مونږ شرعې ‏ ‏ ‏ ‏ فرائض ادا کوو مونږه په جمعې

او صله د رحم مونږ په هاغه کوو ‏ ‏ ‏ ‏ په قضا باندې رضا د خدائے کوو

مونږ دده په نعمتونو شاکران یو ‏ ‏ ‏ ‏ په بلا او په آفت ئې صابران یو

د ښمنې نه کوو هیڅ یو بل سره ‏ ‏ ‏ ‏ هم په خپل علم عمل کوو کره

د یو بل نه کوو هیڅرې غیبت ‏ ‏ ‏ ‏ نه کوو بدې خبرې یو ساعت

او د ورځې یو مونږ واړه روژه دار ‏ ‏ ‏ ‏ او د شپې مشغول په مونځ یو برقرار

او ژ مونږه دے کوشش د پر نهایت ‏ ‏ ‏ ‏ په طاعت کښې ور سره په عبادت

او مقصود مو د اعمالو خپلو زیات ‏ ‏ ‏ ‏ دادے مراد د آخرت مو درجات

او رضا مو په قضا ده د سبحان ‏ ‏ ‏ ‏ او قضا مو په رضا ده د سبحان

بله دا امر معروف کښې متهایت ‏ ‏ ‏ ‏ خپل کوشش کوو په قدر د طاقت

په هر شان چې مو ساتي الله ستار ‏ ‏ ‏ ‏ په نعمت وي که په لوږه وي بسیار

که مو تنده که بربنډه وي اکثره ‏ ‏ ‏ ‏ په هغې یوه نږ راضي راته وي غوره

او دا فقر د دنیا مو په غنا ‏ ‏ ‏ ‏ اختیار کړے دے دا فقر د دنیا

نعمتونه موږ د دې دنیا فاني
دي ترک کړي همه واړه اماني

مستعد په نعمتونو د ساقي شو
د بقا پیالې په طمع د ساقي شو

د موسیٰ علیه الصلوٰة والسلام!
د صيت موږ ه تردې وخته تمام

موږ هرګز نه دے فوت کړے تردې وخته
که هرڅو را باندې راشي ډېره سخته

په دې دواړو صفتو نو موږ اکثر
او موصوف يې يو لوږې برابر

نبت مود اد ے چې ژوندي یو ترڅو پورې
یو به تينګ په دا صفاتو چې يې ګورې

نو حضرت دي فرمائيلي دا احوال
چې ماڅکړو ددې قوم نه هسې سوال

چېسې ستاسې زړېږي دي په ګوم سبب
ووې دوي چې د ډېر خوفه د پاک رب

بيا مې ووې چې کوروته ستاسې سم
ولې تول دي برابرنه زيا تو کم

نو دوي ووې چې موږ نه غواړو بالکل
په يوځېز څه بلندي وکړو يو بل

بله دا هم کله زړونه هم يقين
چې زموږ ه برابر دي په يو دين

نو کورونه هم زموږ دي په يوشان
ديو بله بلند نه غواړو مکان

بله دا چې هوا او نمر بلند
چې په کور د همسايه مونشي بند

بيا مې ووې چې کورونه د مزې
ستاسې ولې دي بې دره دروازې

نو دوي ووې راته اے پاکه رسوله
په درګاه د رب رحيم کريم قبوله

تمبې څه کوي چې څوک امانت ګوي
ورتمبې په حق پکار د خيانت ګروي

او زموږ په منځ کښې نشته دے يو کس
خيانت ګرچې په کوي دا کار عبث

بيا مې هسې ورته ووې برابر
دکانونه ستاسې لرې دي اکثر

په خريد فروخت پکښې چرې يو خوان
مشغول نه دے څه سبب دے په څه شان

نو دوي وکړ راته هسې رنګ ګفتن
چې زموږ ه څه پکار شي ديو تن

نو هغه لاړ شي په لوري د بازار
وا خلي هغه چې هرڅيز يې وي پکار

او قيمت يې هم په هغه ځاے کښې کېږدي
دے روان شي ترې په خپل طرفته لېږدي

او مالونه زموږ يو دي هرساعت
د خريد فروخت مونشته دے حاجت!

بیا مې ووې چې کور ته ستاسې خپل　جماعتونو نه وې لرې شل بالکل
نو دوی ووې اے رسوله دې د پاره　چې ګامونه زمونږ. دېر وُشي په لاره
په هر یو ګام کښې به مونږ لره ثواب　آخرت کښې راکوې به دېر ثواب
بیا مې وُوے چې قبر ونه ستا مې سم　خپل کورونو نه نزدې دي ترقدم
نو دوی ووې چې په دې کښې دا مراد　چې مرګ هېر زمونږ ه شي لرو به یاد
بیا مې وُوې چې اولاد موشي پېدا　د هر س پهٔ ځاے کوئ ولې ژړا !
د اولاد په زېږ. ېدو کړئ ملالې　په مُرده کوئ هوس او خوشحالې
نو دوئ ووې چې اولاد زمونږ کوم دم　شي پېدا کوو په دا پرې ژړا غم
او هغه چې د عالَم د بقا　چې داخل کړي په عالم د دې دنیا!
چې "محبّین المؤمنین" دے مقرّر　هم هغه په دې کښې قبد کړي برابر
نهٔ پوهېږ. و چې احوال د دهٔ د ځان　پس له دې نه چې به وي پهٔ څهٔ رنګ شان
او هر کله چې شي مر د قېد ه خلاص شي　محنتونو نه آزاد په خپل ا خلاص شي
بل پهٔ دوئ کښې مې ونهٔ لیدهٔ بېمار　ما پوښتنه له دوئ وکړه د اسرار
په جواب کښې ووې دوئ چې بیماري　کفارت د ګناهونو دے جدا دي
نو هر کله چې په ښځ زمونږ. تیار　نشته یو تن په کښې یا بکل ګناهکار
وکړهٔ چرې څوک پهٔ هېره کړي ګناه　تند رپړ بوټي آسماني شي پرې فنا
هم پهٔ هغه ځاے کښې وسوزي تمام　پس له دې نه وکړ دوئ دا رنګ کلام
یا رسوله مونږ. ته ته پهٔ دا ساعت　کړه بیان مبارک دین خپل شریعت
مونږ ته وکړه د هغې کار وصیت　چې پهٔ کښې زمونږ. د دین دے صلاحیت
حضرت وائي ور ته ما پهٔ هغه حین　ور بیان مې شریعت کړ د خپل دین
وصیت پهٔ دې طریق مې ور بیان کړ　نصیحت د پند مې دوئ ته پهٔ دا شان کړ
چې اے قومه پهٔ سختۍ کښې د پاک رب　کوئ صبر کړئ توفیق ترې نه طلب
او د پاک الله سبحانه کوئ ډېره　او پهٔ هم خېز لوئي مهٔ کوئ د سره

کبر مهٔ کوئ پهٔ هیڅ عمل د خپل ځانے　　او تکیه کړئ پهٔ رحمت د حق سبحان

او د خوف او د رجا پهٔ منځ تمام　　خپل ژوندون کوئ پهٔ هسې شان تمام

کهٔ پهٔ زړهٔ کښې لرئ هسې د ننګې خیال　　چې زما او د موسئ سره سنبال

پهٔ یو ځائے سره پیوست شي سراسر　　نو بیا وائي ما احمد خیر البشر

سلام دګړ او ترې واخې خست د خضرت　　او د وان شوم د ر خضت پهٔ دا حالت

را ته ووې دوئ چې یا پاکه رسوله　　پهٔ درګاه د پاک الله رحیم قبوله

دوه حاجته لرو تا ته یا سروره　　تهٔ زمونږ پهٔ حق سوال وکړه دا کبره

چې حاجات زمونږ ادا کاندې ضرور　　او یو دا دے الله سبحان غفور

چې زمین د بیت الله زمونږ د میان　　چې رب ونغاړی او لنډه کړي ملان

چې زیارت له د کعبې ځو پهٔ هر کال　　تل پهٔ ځائے دا سلام داوړ روښنه (سنبال)

چې ترڅو پورې زمونږ ز مکه اکثر　　بیت الله ته نزدې نشي سراسر

نو هر کال به مونږ پهٔ امر د غفور　　حج ته نشو رسیدلے بهٔ ضرور

او دویم حاجت مو دا دے برابر　　چې مونږ پټ کړي خدائے د خلقو د نظر

او فتنه زمونږ پهٔ منځ کښې د عالم　　څوک وا نهٔ چوي پهٔ مونږ کښې زیاتوکم

حضرت وائي ما د دوئ د پاره سوال　　وکړ دواړه کړل قبول رب ذوالجلال

او س دوئ حج لره راځي همیشه تل　　یو سړے نهٔ وینې دوئ نهٔ څوک بالکل

واقعه د دېمه دا ده چې سرور　　فرمائیلې دي پهٔ دا شان برابر

پس ددې نه قوم عظیم د حده ډېر　　د پیر یا نور دا علم شو را چاپیر

او کول به وارو ما ته سلامونه　　ما کول د سلامونو ئې جوابونه

را چاپیر وو ګرد زمانه تول پیریان　　بعضو بعضو بهٔ وئیل پهٔ هسې شان

أَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُولُهٗ

پس د هغې ما ته ووې هغه حیران　　یا رسوله مونږ ته ووایه خپل دین

ورته ما وکړه په هسې شان جواب — چې زه نه یمه ماموره د ثواب
واقعه ده څلورمه په صحت — فرمایلي دي په هسې شان حضرت
چې د قومه د پیرو یا نو شوم وا پس — ور داخل شومه په بیت المقدس
او یو اس مې په حلقه پورې سنبال — صاف تړلی ولیده مې هغه مال
دوه رکعاته مونځ مې وکړ هغه ځای — د نعمت او کرامت د غني خدای
پس د هغې جبرئیل علیه السلام — صورتونه د همه وارو تمام
انبیاؤ وارو ماته وښودل — هم مې ولیده صورت په کښې ما خپل
ابوبکر رض په ښي لور مې وو قرار — او عمر په کیڼ طرف مې وو تیار
چې د بیت المقدس نه شوم بهر — جبرائیل راته دا ووې برابر
چې په اس یا ندې او س سور شه یا رسول الله — په درګاه د رب رحیم کریم قبول له
چې دا اس د یاسه شور شو له سم — په مکه یې کړم داخل په هغه دم
چې زه را غلم بسترې خپلې له ره — بستره وه زما ګرمه ښه کره
دا کمال وو دا الله رحیم قدرت — د عماره دے په دا شان روایت
د حضرت معراج ته تلل را تلل په شمار — درې ساعته وو په شپه کښې برقرار
وهب بن منبه نه برابر — محمد اسحاق نه هم صاف مقرر
په دا شان سره دے کړے روایت — وو معراج څلور ساعته د حضرت
واقعه پنځمه داده د حضرت — په دا شان سره دے شوے روایت
فرمایلي دي په هسې شان رسول — دا و یئیل زما په صدق دي قبول
زه د بیت المقدس نه شوم روان — جبرئیل زما سره وو مل عیان
په صحرا د ذی طوی چې شوم داخل — چې یو ځای وو د مکې سره واصل
جبرئیل وویل ماته د معراج — زما څوک به د تصدیق ورکړي خراج
په دا قدر کم فرصت کښې دا دولت — چې حاصل شه ماته هم د سعادت

چې يې زه له دوو جهانو کړم بهر | بيا يې بېرته راوستم په يو پهر
جبرئيل ووئيل ماته هسې پاک | که تصديق ته کوې نور نشته دے باک
نقل دے امّ هانى نه عجائب | نور وه د عم النبيّ ابى طالب
دې وئيلي چې حضرت نبي سرور | د معراج په شپه زما وو په کور گهر
او چې بيا دا غه هم دلته يې تکيه وکړه | بخت زما راغه هم دلته يې تکيه وکړه
او هر کله چې شه وخت سبا سحر | ماته يې ووې هسې شاني برابر
چې شپه - امّ هانى ! الله سبحان | بوتلم بيت المقدس له په يو آن
او د بيت المقدس نه بيرته دم | اسمانونو ته يې وخېژولم سم
بيا يې دا وستم سبا له په شتاب کښې | امّ هانى وائي ورته ووې په خوب کښې
چې مور پلار زما له تا دې شي قربان | زه دا سوال کومه تا ته په دا شان
يا رسوله دا خبره چې د وړاندې | د منکرو سرد سره د وړاندې
اظهار نه کړې ورته ته دا بالکل حال | دروغگو به تا منسوب کړي هغه حال

۵۹۷

## العياذ بالله من ذالك

حضرت ونوړ قسم هسې رنگه غوټ | چې هرگز به زه دا راز نه کړمه پټ
چې سبا شاهين زرين تېز پر د برق | دا غه پاس زبرجد رنگ د غره په نوق
دا سمان د کنارې دېرد دې نمر | چې په د رنگ د زبرجد ووت په سر
وائي دا ابن عباس صاحب دا شان | چې حضرت رسول الله آخر زمان
په مسجد حرام يې کښېنوده قدم | د حجرې په خوا کښې کښېناستو په غم
سبب دا چې پوهېده چې منکران | د قريشو به باور نه کړي دا آن
دد دې حال ورته معلوم وو حقيقت | په دا فکر کښې وو ناست زمونږ حضرت
اول راغه ابوجهل بې دين وړاندې | په طريق د مسخرې په آئين باندې

دا ېې ووې اے رسوله څهٔ عجب — پیدا شوے غراب دے پهٔ تن شب

ورته ووئیل زمونږ ه پیغمبر — ما دے کړے هو تن شپه هسې سفر

چې هیڅا به نوي هسې سفر کړے — او خبر مې دے هم هسې شان داوړے

نهٔ وي هیچا به داوړے دا خبر — ابوجهل ووې څهٔ رنګ؟ کړه اظهر

حضرت ووې د مکې شریفې سم — لاړم بیت المقدس له پهٔ یو دم

او د بیت المقدس نه یمه تللے — پهٔ اطباقو د افلاکو یم ختلے

ابوجهل لعین ووې چې نن شب — لاړې بیا سبا مکه کښې وې عجب

ورته ووې هو رسول مقبول د خدائے — نشته دا کښې څهٔ دکم او سوا ځائے

ابوجهل لعین ووې دا خبر پې — مخکښې وړاندې به یې د قوم کړې تهٔ ظاهر

حضرت ووې هو پهٔ دې وکړه یقین — اواز وکړو ابوجهل دا لعین

زر را ځئ د بني کعب ټولې جمعې — د لعین آواز چې شهٔ هرڅا د سمعې

د هر لور د هر طرف نه شول راجمع — منځ کښې ناست د دوئ حضرت وو لکه شمع

ابوجهل لعین ووې اے سروره — تا چې ما د وړاندې کړې وه خبره

د دې قوم د وړاندې هم وکړه بیان — حضرت ووې بېګا شپه زهٔ پاک سبحان

بوتلم بیت المقدس له بیرا بیر — او د بیت المقدس نه یې پاس بیر

اسمانونو ته یې وخېژولم پورته — اسمانونو نه یې راوستم بیا کورته

تعجب کښې یې شول یا تې حاضران — او لاسونه بهٔ وهل یو بل د ځان

کوټو بعضو بهٔ انکار کښې به شدت — سبب دا چې دا کار د دوئ ته نهایت

پهٔ ناقص عقل د دوئ کښې دا رنګ کار — ښکاریده هٔ سخت مشکل کار او د پر دشوار

یوه جمع وه ضعیف ایمان عیان — نهٔ وو ځائے ته یې رسید لے لا ایمان

او ایمان نهٔ وو د دوئ کامل پهٔ حد — هغه واړه شو تمام همه مرتد

## العیاذ بالله العظیم

منافقو د تو ټلي سره تحقیق — ابوجهل راغے مخکښې وصدیق

ورته يې ووې چې وړاندې د صاحب خپل | چې څه وائي دپر د حد عجائب خپل
ابوبکر صديق ووې څه فرمائي | ابوجهل لعين ووې هسې وائي
چې بېګاه شپه زه رحيم کريم اکبر | بوتلم بيت المقدس له برابر
او هلته دا دے چې بېګاه دے بېګاه شب | د خپل قوم په منځ کښې ووائے عجب
ابوبکر صديق ووې چې سرور | دا ګوهر يې دي پېيلي په سرور
ابوجهل لعين هو وکړو ګفتار | ابوبکر صديق دا ووې تيار
دې کښې نشته تعجب ځکه تحقيق | عجب نه دے زه د هغه په طريق
اختيار دا تو اسماني کوم تصديق | چې خاوند دے له هر چا په ده شفيق
چرې وائي د اوو اسمانو پورته | بيا تېر شوے او بيا راغلے خپل کور ته
نو زه هم کوم تصديق په دا سبب | چې هغه د بښتينے دوست دے د پاک رب
ابوجهل ورته ووې ما په ځان تے | مصاحب ليدلے نه دے ستا په شان
چې کوو ټکے د تصديق د صاحب خپل وي | په صفت يا ندي ګويان د هغه تل وي
چې صاحب ستا هم په دغه شان شمياله | دا دعوه کوې في الحاله د خپل حاله
ابوبکر دا روان شه هغه حين | توکي خپل سره يې پرېښوده لعين
پاک سرور له راغے ووې يا رسوله | په درګاه د خدائے د هر چا نه قبوله
تا وئيلي دي که نه چې بېګاه شب | زه بيولے اسمانو نو ته په رب
حضرت ووې ما وئيلي دي يا کل | ابوبکر ذر صَدَّقْتَ وو وئيل
چې د بښتينے يا رسوله دا حده | دوست نبي آخر زمان يې محمدؐ
پس صديق اکبر سرور ته په دا شان | ووې څه رنګ يې ته تللے کړه بيان
نو حضرت ورته کل حال اول آخر | هغه در ننګ ورته تقرير کړ صاف ظاهر
د هر فصل چې تقرير کاوه سرور | ورې صدقت به وئيل صديقؓ اکبر
تر دې حده ووې پاک حضرت | په هر څه کوې زما ته صداقت

پهٔ دې کل واړو زما کوې تصدیق ورته ووې پـهٔ دا شان اکبر صدیق

ولې ذهٔ بهٔ تصدیق نهٔ کوم پهٔ ځان چې هغه رحیم کریم الله سبحان

چې جبرئیل د اسمانونو نه پهٔ بشکته داو ستے شي پهٔ ساعت کښې زر کرته

نو څېل دوست محمد هم بیوے شي پورته اسمانونو نه ئې داو ستے شي زر کورته

له دې ځایه مقرر شهٔ هغه کس د معراج تصدیق اول کړےدے بس

ابوبکر هغې ورځ نه پـهٔ تحقیق ملقّب پهٔ دا آیت شهٔ پهٔ صدّیق رضـ

## وَالَّذِی جَاءَ بِالصِّدْقِ وَصَدَّقَ بِهٖ (۹۸)

د معراج تکذیب چا کړےد حضرت دے ابوجهل دے اول اهل لعنت دے

پهٔ تکذیب ددهٔ کښې ذات والاصفات داستولےدےپهٔ دا شانې آیات

## فَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ كَذَبَ عَلَى اللّٰهِ وَكَذَّبَ بِالصِّدْقِ اِذْجَاءَهٗ (۹۹)

څوک تصدیق چې د معراج کړي د سرور نو تابع د ابوبکرؓ دي اکـثر

له معراج چې د سرور کړي څوک انکار دي تابع د ابوجهل لعین پهٔ شمار

## اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ

واقعه شپې مه داده پـهٔ بیـان د خبر د ورکولو پـهٔ بنهٔ شان

د حضرت رسول الله علیه السلام نبشانو د علاما تو نـه تـمام

او د بیت المقدس نه بـرابـر منکران د قافلو د دوئ اکـثر

دادے نقل چې هر کله چې خبر د معراج د پاک سرور خپرا ؤشر

پهٔ مکهٔ شریفه کښې چې شهٔ فاش ډېر
تر دوستانو يې وو صديق اکبر پهٔ خبر

کړ نو نه يې بلند کړل پهٔ هوس
او عجب نو منکرانو کړل تجسس

تر سرو نه توکو وغورځول بنکته
واړه وخوړه پهٔ زړو نو د غم لته

او صفه تو لکي د دوي چې دا يمان
وو نې بېخ نيولے نهٔ وو پهٔ هېڅ شان

دا نهال د مرتد والي پهٔ تند باد
واړه يې وېستل د بېخه بې بنياد

پهٔ معراج يې د حضرت رسول کريم
باور ونه کړ ونهٔ کړ دوي تسليم

يو توکے د منکرانو سراسر
پهٔ حضور کښې راغے مخکښې د سرور

دا يې دوي يا رسوله موږ اکثر
دا حوال دا سمانونو پوره ته بېر

خبر نهٔ يو وي موقوف دي دا احوال
مګر جمعې حاضرانو صاف سنبال

واړو بيت المقدس دے صاف ليدلے
پهٔ خپل عمر کښې تهٔ هلته نهٔ يې تللے

او که ته پرې د تيښتې يې پهٔ ځان
علامات او نښانې يې کړه بيان

له حضرت نه دے دا شوے روايت
چې وشيلې دي پهٔ دا شانې حضرت

دا ساعت کښې قسم قسم خفګان ډېر
پهٔ ما راغے رحساب د حده تېر

سبب دا پهٔ وخت د تللو پهٔ دا حال
زمانه وه نهٔ پروا او نهٔ مجال

د ليدو د فراخي د هر اطراف
علامات يې معلوم نهٔ وو راته صاف

حضرت وائي چې جبرئيل امين في الحال
راوړ بيت المقدس تمام سمبال

د عقيل د کور مخنه يې سراسر
راته کښېښنوده پهٔ مخکښې زير نظر

تو د بيت المقدس د هر هر ځهٔ نه
چې کوله به زمانه دوي پوښتنه

ما جواب به ورکاوهٔ ورله تيار
آخر وکړ دوي پهٔ دا شانې ګفتار

نشانو کښې دي د بيت المقدس
قصور ونه کړ ذره لکه د خس

تا فلي د قبيلو ز موږ تيار دي
دي د بيت المقدس پهٔ سمې لارې

حال د دوي وواېه موږ کړه پرې خبر
ورته ووېئل پهٔ دا شانې سرور

تا فلي مې ددې ليدلې دي تيار دي
د يو پې نه اوښ ورک شوے ووپهٔ لارې

یو نوا بل نوا لتاوهٔ یې اوښ پهٔ شتاب  ما د دوې پیاله کښې ښې تخیلې دې آب

چې هر وخت را شي پهٔ هغه وخت ضرور  ترې پوښتنه وکړئ کل واړه حضور

چې د اوښ د لټولو شوئ و ایسې  او بهٔ بیا مونده چې کهٔ نهٔ پهٔ کښې یو کس

بل ورذ ئې او مروه دا دوه شته صاف  د دوښې قافلې نه دي خلاف

په یو اوښ باندې سواره دوه برابر  زما اس نه د دوې اوښ شهٔ پهٔ خطر

نو یو تن ترې نه راپرېوتو پهٔ زمکه  لاس یې مات شهٔ چې د اوښه پرېوت ټکه

قافله درېمه ستاسو چې ده خاصه  پهٔ تنعیم کښې را نه پاتې شوله خلاصه

او فلانے فلانے دوه دوه پهٔ کښې دار  جوالونه ووپهٔ دوؤ اوښانو بار

رنګ د دوې دے دا یې پهٔ مثل باندې  او د ټولې قافلې نه راځي وړاندې

چې ښیر ؤوهي دا ؤ خیږي چې نمر  راښکاره به شي د دې قافلې سر

وراندې لاړل د قریشو منکران  منتظر ؤ د د پیده لاره کښې حیران

او د دوې غرق ووسره ټول پهٔ دا ګونیا  شاید ؤخیږي نمر را نشي کاروان

چې دوې وکاندې تکذیب د پاک حضرت  ناګاه یو دوښیل دا هغه ساعت

چې واالله دادے راو خاتهٔ نمر پاس  دویم دوښیل څه هسې پهٔ وسواس

چې واالله چې رابښکاره شولهٔ اوښان  ار هغه دواړه اوښان چې د کاروان

جوالونه کوښې دا دې برابر  پهٔ دوو اوښو ایره رنګو یې مقرر

دې بار کړې راځي ټول کاروان دوړاندې  جوالونه کوښې دا دې پرې بار باندې

پس د هغې منکرانو څو نښانه  هغه د رنګ وپوښتېدل یې د کاروانه

هم هغه شان وو ختلې برابر  پهٔ څهٔ شان چې فرمائيلي ووسرور

او هغه کسان چې اوښ یې نهایت  ویربدلے وو د اس نه د حضرت

د یو تن چې لاس مات شوے وو تیار  هغوهم وکړپهٔ دا شانې اقرار

چې د ښتیا وائي احمد نشته دے فرق  پهٔ صحرا کښې شهٔ دے تېر پهٔ شان د برق

نو زما د لاسه پرېوته لیندۍ  بیا یې دا کړه زما لاس کښې مالیده

القصه سره د دارنګ شاهدانو
او هغې دارو شديدو منکرانو

نو په لاره د تصديق او د اقرار
قدم کښېښې نهٔ ښو زنار ئې د انکار

د ګوډن د کېره وُنهٔ شلا وه خم
دا ئې دوې لکه دا آيات دے سم

## إِنْ هٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ

نهٔ دے دا بل څيز مګر سحر ظاهر دے
کرم پناه په پاک الله چې دے قادر دے

او داوُرې دې په بل يو روايت
چې کاروان ته وه لار د ېره نهايت

پاک الله دا ولېږه جبرئيل امين
هغه درتګ ئې کل دا و نغښته زمين

او د پاره د دې کل کاروان اکثر
چې دا وُرسي په وخت د ختوتمر

او حضرت چې په دروغو منسوب نشي
د دروغژن چې دا الله دوست محبوب نشي

او په بل يو روايت وائي هسې شان
چې د نمر وو څه ملک موکلان

حکم وُشهٔ چې نمر وُدروي قرار
چې نور وُنهٔ کړي پرې يو قدم رفتار

نو له دې طرف نه نمر وُدرېده څکه
او بل خوا ته جبرئيل و نغښتله زمکه

او خبره چې د دوست د پاک احد
د دروغ نشي د محمد محمود احمد

دا قعه اوومه داده په بيان
د اوقاتو د نمانځه تعين عيان

نقل دے چې د معراج شپې په سحر
جبرائيل دا غے حضرت له برابر

د سحر ته د نماز خفتن د مونځه پورې
يعني دا پنځه مونځونه چې ئې کوړې

ټول پنځه واره ئې ادا کړل په مزې
او نيزدې خاص د کعبې د دروازې

د حضرت سره ئې وکړل دا تمام
جبرئيل عليه السلام ئې شهٔ امام

نو حضرت ورپسې وکړه اقتدا
دا پنځه مونځه ئې اول وخت کړل ادا

بيا ورځ جبرئيل آخر وخت امامت
د پنځو مونځونو ئې وکړ د حضرت

نو حضرت ته په دا شان معلوم شهٔ حال
د اول آخر اوقات د مونځ سنبال

او پنځه واړه لمونځونه په اول — دکعاتونه دوه دوه فرض شول بیل بیل

لمونځ شه پاتې د لمانښام صاف درې رکعاته — په ځای خپل شه قرار پاتې هریو خواته

پس له هغې بعضو لمونځو کښې تیار — دوه دوه نور دکعاته زیات کړل برقرار

اقامت د شکرانې په حق اکثر — نو سفر کښې قصر راغې برابر

او هم هغه دوه دکعاته شو له فرض — مسافر باندې په طور لکه قرض

درې دکعاته د لمانښام لمونځ په ځای خپل — مسافر مقیم له دواړو له شه نقل

نورو لمونځو کښې مقیم له چې وي کور — دکعاتونه دوه دوه فرض شو له نور

په څلور څلور قرار شول برابر — نو الحمد لله العظیم اکبر

په دا هر وخت جبرئیل چې د حضرت — چې به وکړ د هریو لمونځ امامت

نو حضرت به اصحاب خپل سراسر — چې حاضر وو په مکه کښې کړل خبر

دا لمونځونه به یې په وخت ادا کول — او حکمت د اول وخت دا وونه میل

اصحاب یې شي کول په مرضى — اول وخت ترې فوتیده نه نه قضا

او هم هغه اصحاب د پاک حضرت — چې حبشوته یې کړې وو هجرت

پاک حضرت هغو له ولیږه پیغام — په وختونو مقرر وکړي قیام

په قضا تېر شوو باندې دي تمام — د خبر ورتلو په وخت کوئ اقدام

دا لمونځونه شو د خدای د پاره فرض — په همه مسلمانانو شو له قرض

**شاد محمد** ثنا تل د پاک اکبر کړه

او درود په محمد نبي سرور کړه

چې څوک سم دده په شرع ځي په صدق — هغه به نه شي هرګز د دوزخ دزق

---

# غزل پهٔ نعت د حضرت صلی الله علیه و آله وسلم کښې

د پاک الله او ستا پهٔ اسم زړهٔ فرحت وُمومي
نصیب د هغو دے چې دا اعلیٰ نعمت وُمومي
چې څوک محروم د دې نعمته وي هغه دا ړه کُل
لکه شیطان به پهٔ سرغښ پښو د لعنت وُمومي
چې ستا پهٔ لار وي سم رَوان د زړهٔ پهٔ صدق باندې
هم هغه خلق دا لله نه بهٔ رحمت وُمومي
چې خدائے واحد او محمد د خدائے رسول گڼي څوک
وکړه یقین چې بهٔ هغه خلق جنت وُمومي
کهٔ څوک د حقې لارې څنګ کړي ځي پهٔ لار د شیطان
هغه کسان به پهٔ محشر کښې ملامت وُمومي
نشته د هغو نه پهٔ بخت بلند بالا پهٔ نصیب
چې د شیطان اهلِ لعنت نه چې نفرت وُمومي
چې د مکرونو د شیطان نه چا سا تلے وي ځان
د پاک سرور نه د کوثر به ضیافت وُمومي
چا چې د لارې د رسول مخالفت کړے وي
هغه جحیم سقر سعیر بهٔ پهٔ قیامت وُمومي
هغه مؤمن او مسلمان دے پهٔ کښې نشته دے شک
چې دا لله پهٔ هدایت چې شریعت وُمومي

نعوذُ بالله منها د لار د کفـره د شـرک ؛

همه کافر به پهٔ محشر کښې زيات زحمت وُمومي
پهٔ کافرانو دے حرام د جنت بوئ قـدر لـه
د دب پهٔ حکم بهٔ دوزخ هغه ساعت وُمومي
کهٔ شاد محمد دې شهٔ حساب پهٔ غلامانو باندې
څهٔ به نور وائي چې دا هسې شرافت وُمومي

---

# فصل د څلېرنیشتم پهٔ بیان د هغو فائدو چې متعلقې دي د معراج سره او لطائف څو به پهٔ جواهرو د نظم به افغانۍ ژبې راوړے شي

لطیفه اوله نقل دے دا شان — چې هر کله پاک سرور آخر زمان
د معراج نه شهٔ وا پس وخت د سحر — پاک حضرت را ووت خپل کور نه بهَر
یوه وینځه مې ولیده چې پهٔ شا پورته — د اوړو ګوډے وو پروت دا تلله کورته
پهٔ ژړا ژړا پهٔ لار کوه ته دا تلله — پاک سرور خیر البشر دا ووئیل له
نو حضرت ز مونږه وکړه ترې پوښتنه — چې اے وینځې ولې ژاړې ته د څهٔ نه
وینځې وویل چې اے پاکه رسوله — پهٔ درګاه د رب رحیم کریم قبوله
زهٔ یم وینځه د فلاني ترسا کافر — زهٔ یې ژرندې له لیږلې وم سحر
او حال دا چې زهٔ بیماره یمه ډیره — موده ما پهٔ دې سبب کړه ډیره تېره
اوس ویریږم د صاحب خپل نه بسیاره — چې به دوهي دے ډېره ما بیماره ا

حضرت ووې تا سره به دا ساعت | لا ړشم ستا به د صاحب ستا شفاعت
زهٔ به وُغواړم چې تا کاندې معاف | ګودے داکړه د اوړو دې ماله معاف
چې زهٔ ورمه ګودے اوس تاسره سم | وا خیشت ونجۍ نه یُ ګودے هغه دم
دهٔ پهٔ دوش مبارک کینبنو دهغه آن | نو حضرت شهٔ پهٔ جلدی جلدی روان
ونجۍ ووې چې تهٔ جلد جلد ځې دوئیداره | جلده نهٔ شم تللے زهٔ خواره بیماره
حضرت وُووې چې ینځکے د ځادر ! | زما وُنیسه پهٔ لاس کینې برابر
او را ځه چې زهٔ ځم ستا پهٔ قدم سم | چې قدم شي زما سم ستا پهٔ قدم
چې هر کله د هغې ترسا کافر | چې دد ود سپد کوځې ته پاک سرور
دروازه وټکوله یُ پهٔ زوره ! | نو ترسا بهر دا ووتو د کوره
نو هر کله د ترسا چې شو نظر | چې خواجه د هر دوکون خیرالبشر
ترسا ووې محمّده ما یادکړے | دې کوځه کینې نهٔ یُ لیدلے پهٔ ژوندنچل
دلته څرنګ یُ را غلے دا ساعت | ورته ووئیل پهٔ دا شانې حضرت
شفاعت لره را غلے یُم نن تاله | نو خبر یُ کړهٔ دو نجۍ د ا حواله
ترسا وُووې یا رسوله بېګا شپه | تهٔ معراج لره بیولے وې پاک رب
حضرت وُوئیل چې هو زهٔ برابر | د معراج نه یُم را غلے مقرّر
مګر تهٔ شوې پرې څرنګ خبردار | ترسا ووې یا رسوله د ستار
او هم دلته وکړه درنګ ته یو ساعت | ترسا لاړ شهٔ پهٔ دوُیاندې پهٔ هیبت
او خپل قوم او قبیله یُ کړه راجمع | دا یمان او د اسلام دا وړو پهٔ طمع
نو تورات شریف یُ راوړ ځان سره | زر تورات شریف یُ پرانستو ینکاره
دا یُ ووئیل چې اے پاکه رسوله | پهٔ درګاه د پاک الله ستا د قبوله
داد ے ستا مې پهٔ تورات کینې دا صفت | پهٔ دا شان دے لیدلے سلامت
یوه شپه درسول آخر زمانے | داده سمه برابره پهٔ دا شان
کوم شپه چې دے معراج له بوځي رب | نو پهٔ وخت به د سبا د هغې شب

د اورو گوډے د ونځې د ترسا — پورته کړے به وي ده په ځپله شا
اود مهر نبوت بانديې ديا سه — گوډے ایښے به وي ده د ځپله لاسه
ددوازې لره به ورشي د بچ دين — اوس زما په خالص راغے يقين
چې ته یې رسول الله آخر زمان — څه حاجت دے چې به درنگ کوم بیان
فی الحال زد هغه ترسا راوړ ايمان — په دا شان سره یې ووې په ژبان

أَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ
وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ

---

نوټول قوم او قبيلې دده اكثر — اودده متابعت باندې بهتر
ایما نونو باندې دوئ شول مشرف — زنا دونه یې کړه د کفر برطرف
اود هغې تواضع په برکت — چې سلطان ته یې ددنیا د آخرت
ولیدله اے فقیره کمال حد — د بزرگی وگوره دوست ته دا حد
چې سره د هسې جاه او منزلت — شهنشاه سره ددارنگ جلالت
کینه وُ سره څه رنگې اظهار — تلطف او مرحمت کوې دوئيدار

الحمد لله رب العٰلمين والصلوٰة والسلام
على رسوله محمد افضل الانبياء والمرسلين
وعلىٰ آله واصحابه الطيبين الطاهرين
برحمتك يا ارحم الراحمين

لطيفه دويمه نقل دے تمام — چې هركله چې موسىٰ عليه السلام

دیدار وغوښتو د پاک الله اکبر — نو جبرئیل ورته ښکاره کړل څپل وزر

راغی وودرېده موسیٰ ته د دوړاندې — او موسیٰ چې نظر وکړ په ده باندې

موسیٰ ووې اے جبریله زه دیدار — د خداوند عالمین غواړم اظهار

او حال دا دے چې اوس ته په داشان ماته — جلوه څپله ښکاره وې وایمه تاته

جبرئیل ووې چې وکړه ته نظر ...... — چې څه یک دے برابر زما په پر

چې موسیٰ ورته نظر وکړ فی الحال — د جبرئیل په پرو دا یک وو سنبال

لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ

---

جبرئیل موسیٰ ته ووې په عزت — زه د دې بنې کلیمې په برکت

په یوه طرفة العین کښې برابر — راغم زه خاص د سدرې نه سراسر

زه مکې ته نو دے شان عظیم الشان — بنده نه دے لا ئیدلے پاک سبحان

او ته غواړې چې له ده نه ته اول — دیدار وکړې دا الله رب لم یزل

یاد دې دې چې یوه ورځ مهماني کوو — تا وه کړے نو هاروت ستا مشر ورور

حاضر نه وو نو هغه مېلمستیا کل — تا آخره کړه رب وائي چې یو څېل

د پر عزیز مېلمه لرمه زه په لار — را روان رحمت زما ئې کړي انتظار

د هغه په انتظار مې دے رحمت — دې د پاره چې خوانچه د وو مالت

مهمانسرا ئې څپله کښې زه د ده په نام — چې زه وغواړمه ښه شاني تمام

چې سل زرو نور د ده په برکت — د هغه سره سل زره سلامت

په نوانچه د احسان څپل کښېنوم سم — نشته دې کښې د ذرې څه زیات وکم

لطیفه درېمه نقل دے عجب — چې په دې کښې دے دا هسې څه سبب

چې موسیٰ علیه الصلوٰة والسلام — پاک الله بوته معراج له په ورځ تام

ارزمونږ ه پيغمبر خبر ا لبشر      پهٔ شپه ؤ ياله معراج له پاک اکبر
جواب دادے چې موسیٰ د خدائے کليم دے      محمد جيب د پاک الله قديم دے
طريقې دي عامې هسې شان ظاهرې      شاهدان ورځ کښې له د عيته کړي خبرې
د جيب او د معشوق خپل سره ساز      برابر پهٔ توره شپه کښې کوي راز
يادے دا جواب موسیٰ عليه السلام      نو د سوال د پاره تللے وو تمام
چې تختې د صحيفو ئې د در باره      يورې دهٔ د پاک الله رحيم ستاره
محمدٌ جيبٌ د پاک رب ذوالجلال      دے چې تللے وو د پاره د وصال
دې د پاره چې د روح يوسې قوت      چې څوک کړي د بادشاهانو د سوال نيت
ورځې ورځ کښې د سوالونو پهٔ پرسش      دے د پاره چې څهٔ ؤمومي بخشش
او وصال له چې څوک ځي ورځي پهٔ شپ      پهٔ ديدار چې مشرف شي ښهٔ عجب
عاشقان ځي شپه کښې ؤمومي وصال      مشرف شي پهٔ ديدار او پهٔ جمال
يادے دا جواب موسیٰ کهٔ پاک اکبر      چې بيولے دے معراج له برابر
پهٔ دنيا ورځ کښې بيولے دے ستار      هيڅ ا کړے پهٔ دهٔ نهٔ وو اعتبار
او سره ددې خبرې چې سبحان      صاف دوو ځي دے معراج لره عيان
و باله او ياکسان هم معتبر      د قوم خپل ئې ځان سره کړل مقرر
معتبر او ياکسان همه جاهل      بو تلل بيا هم هغو هسې ؤوشل

## حَتّٰى نَرَى اللّٰهَ جَهْرَةً ۵۰۱

چې ترڅو پورې چې مونږ ه رب رحمان      ظاهر ؤنهٔ وينو نه راوړو ايمان
او صاحب ز مونږ د رسول اخرزمان      دو بيولے شپ کښې پاک الله منان
او پهٔ وخت د مجرّد صباح تحقيق      غلغله شوه هوا گيره د تصديق
او هم شور او افرين د تحسين دېر      دا صحابو انجمن کښې د حد تېر

پورته شوے وو د پر شور د افرين     د اصحابو پهٔ محفل کښې د تحسين

پهٔ معراج کښې به شکتي څوڅو ضرور     اصحابانو به وئيلې پهٔ سرور

بهتري د پاک حضرت د کل امت     شوه پهٔ نورو امتيانو نهايت

بهتروالے شهٔ ظاهر پهٔ نورو زيات     حقيقت او د معنې د دې ايات

## كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ اُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ ٥٠٢

تحقيق غوره کړه يا دا جواب تمام     بدلې قوم چې د موسیٰ عليه السلام

پهٔ دنيا سره مشغول او پهٔ ارام دو     پهٔ خپل کار د و بار د اخته سره مدام دو

چې موسیٰ د دوئ نه دوه ورځې پهٔ شمار     لاړ له دوئ نه دوئ ونهٔ ليدهٔ اظهار

او هم نه خفه کېدل پرې سراسر     او امت چې د حضرت خير البشر

د دنيا پروا يې نهٔ کوله ستل     بلکې اهل د دنيا نه وو بالکل

او دوئ يې د خپل رسول نبي دوئيدار     نهٔ يې وو او نهٔ کېدهٔ به يې قرار

دا آرزو هيچري نهٔ وه د حضرت     چې بهر شوے د خپل قومه د امت ٥٠٣

او دا واړه د ديدار انوار مشتاق     چې پهٔ کنده کښې دوئ پر بر دي د فراق

نو له دې جهته رب العلمين     پهٔ شپه دوست معراج له بوتلو پهٔ يقين

دې د پاره چې دوئ هيڅ نهٔ شي خبر     چې څهٔ وختې لاړ څهٔ وخت راغے سرور

و اغوستے دهٔ د کرامته خلعت خاص     بېرته راغے دے د گنجه د اخلاص

گل روان شهٔ بېرته سرو دوات دا غ     هلال لاړو بېرته بدر تابان راغے

مونږ د پاره يې برات د ښادۍ راوړ     ده منشور د عنايت ازادۍ راوړ

شهٔ صلوٰة سلام پهٔ هغه نازنين     پهٔ هردم کښې د الله العلمين

لطيفه ده څلورمه دا دے نقل     هر يو کس دې ورته وکا ندي خپل عقل

هغه وخت چې موسیٰ عليه السلام     د کوهِ طور ته چې واپس کښېښودو گام

بدکي دومره شعاع يې ددې پر نور
د کلام الٰهي د پاک غفور !

په تندي مبارک ده کښې ځلېده لو
هېڅ طاقت يې د څانه وو ديدلو

خواه مخواه په مبارک مخ يې نقاب
اچولے وو د پاره ددې باب

چې مانعه شي د خلقو د نظر
چې د خلقو نظر ونه سراسر

په ليدلو د هغې باندې نقصان
د تيرې نه موسي دوي - چې هېڅ شان

بعضو کړے دے په دې واقع کښې سوال
هر چې نور وو د موسیٰ په هسې حال

چې په هسې شان تندے مبارک خو تې
ځلېده چې په برقع کښې کړ مخ پټ

څه سبب وو په تندي مبارک صاف
چې زمونږ د پیغمبر نه دے خلاف

چې دا ستورے د طالع يې نيک طلوع کړي
په تندي مبارک صاف دده شعوع کړي

په تندي رشک القمر کښې هېڅ تغير
چايدلے د تبديل نه وو تاثير

احتياج يې د برقع نه وو هر حال
جواب دادے برابر د هسې سوال

چې هر کس له عارض شي يو حالت
نو اثر يې شي ظاهر هغه ساعت

او هر څوک چې هميشه په يو صفت
چې موصوف وي هغه وي په خپل حالت

په هغه کس کښې څېڅرې زيادت
نقصان څوک نه وينې بې د خپل عادت

او نظير ددې واقع دے هسې شان
لکه کل ښځې مصري د هغه زمان

په بې بې زليخا وې بې يې ملامت
لکه هغه ښځې وې چې په بد نيت

چې په وخت کښې د ليدلو د جمال
د يوسف عليه السلام جمال کمال

کل بې عقله شوې لاسونه يې پرېکول
زليخې کښې هېڅ تغير نه وو بالکل

سبب دادو چې هميش به په حضور
د يوسف عليه السلام کښې په ضرور

او هغه ملا تړلې برابرې
د غائب نه شوې حضور ته سراسرې

د يوسف حضور کښې دوئ کړ ناحاضر
په دې ځائے کښې تفاوت شه دا ظاهر

خو ديدار کښې د موسیٰ عليه السلام
اود قوم خپل کښې دده وا وره تمام

او ديدار د محمد نبي سرور !
او د خپل امت کښې هم هسې اکثر

پهٔ دا شان دے عارض شوے تفاوت
بل جواب دے ددې دا صاف سلامت
او چې نور دے پهٔ دوه قسمه برابر
او یو نور دے ظاهري وکړه باور
او یو بل نور باطني دے پهٔ یقین
نور رحیم کریم خدا وند عالمین
نو موسیٰ علیه اسلام ته پاک ستار
نور ظاهر اغوستولے وو قرار
محمد علیه السلام ته رب غفور
نور باطن کرامت کړے وو حضور
او بل دا دکرامت ئې دېر نظر
وو پهٔ هال دا مت خپل باندې نظر

## فَاِنَّ الظاهر للعوام والباطن للخواص

یعني وو ظاهر د پاره د عوامو
او باطن هم د خاصانو پهٔ حق تامو
بل جواب دا دے چې نور د پاک کلیم
د خلعت وو نو پهٔ صدق کړه تسلیم
او پهٔ دې چې میلمه لره خلعت
ورکوي پهٔ اندازه د خپل طاقت
پیغمبر زمونږه دوست وو د پاک رب
دوست د دوسته نه د دوستئ غواړي مطلب
نهٔ خلعت غواړي د دوست نه برابر
بل جواب دا دے پرې ښهٔ وکړه باور
چې موسیٰ علیه الصلوٰة والسلام
پرده مخ باندې لره د نا کام!
سبب دا دے چې د قوم خپل نهٔ شرمیدهٔ
مخ ددهٔ چې پهٔ خپل قوم بهٔ نهٔ لیدهٔ
حال وو دا چې دهٔ د خپل قوم د پاره
پیشکشي قتل راوړے ؤ د واره
چې خداوند عالمین رحیم اکبر
حکم کړے وو پهٔ دا شان برابر

## فَاقْتُلُوٓا اَنْفُسَكُمْ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ

یعني قتل کړئ ځانونه خپل ضرور
دا ئې حکم فرمائیلے دے غفور
سبب دا وو د تلو وخت قوم خپل
هارون دور ته ئې سپارلے وو بالکل

چې موسیٰ علیه الصلوٰة و السلام　　دا غے قوم خپل ئې کافرومونډ تمام

# العیاذ بالله العظیم

خواه مخواه مخ مبارک ئې په نقاب　　ساته پټ له دي سببه په شتاب
د معراج نه چې ز مونږ دا غے حضرت　　مونږ د پاره ئې رحمت تمول مغفرت
راوړ مونږ له د دربار د رب عزت　　موحد مؤمن ئې بیا مونډ خپل امت
بل جواب دے چې موسیٰ علیه اسلام　　طبیعت کښې وه سختي غصه مدام
ځکه ورته رب العٰلمین　　په نرمۍ سره وو کړے هغه حین

۵۰۵　۵۰۶

# فَقُوْلَا لَهٗ قَوْلًا لَيِّنًا

یعني قوم خپل سره کړه خبرې نرمې　　مه کوه د قوم سره خبرې کرمې
او ز مونږ ه پیغمبر علیه السلام　　دے رحمت د عالمیانو ووتمام
نو موسیٰ چې طبیعت لاره سخت خپل　　لاره ځکه ئې مخ پټ د قوم نه تل
او ز مونږ ه پیغمبر خیر البشر　　په سبب د رحمت خپل ذاتي اکثر
او تل مخ باسعادت خپل ئې د خوتن　　همیشه به ئې لاره رخسار څرګند
لطیفه نقل بخم دے په دا شان　　چې وئیلي دي رسول اخر زمانے [۴]
غوره
هر چې ور سبد م تاب توسن نه　　هلته ددې سره اودیادلس مي ممیره
ویدل په بنې طرف د عرش عظیم　　یو ممبر راته لوے ور بنود رب کریم
چې په کیڼ طرف د عرش عظیم ووهم ف　　وو ددې ممبر یو ذر برجه شفاف
اودیو برج نه توبل برج پورې لاره　　برابر ده یو ذر کاله تیاره
او جواو دو په هر قسم جواهرو　　په شعاع کښې لکه شمس هسې ظاهرو

نو ما سوال وکړ د دوئ د پاک تواب ... را ته وکړ پاک الله هسې جواب

ممبرونه په ښي لور د عرش عظیم ... انبیاؤ د مرسلو دي سلیم

په کیڼ لور د عرش عظیم دے ممبرونه ... نو ما وویل چې اے خدایه جدا

ممبرونه د عرش ښي خواته دي نور ... او ممبر زما د عرش دے په کیڼ لور

څهٔ سبب دے ما پهٔ دې کړه خبردار ... خطاب وُشهٔ دا ته دا درب ستار

یا حبیبه جنتونه سراسر ... دي د عرش پهٔ ښي طرف واړه اکثر

دوزخونه د عرش کیڼ خواته دي ټم ... او چې ورځ شي د قیامت پهٔ هغه دم

د جنت پهٔ لور روان بهٔ شي نیکان ... ګنهګار بهٔ کړم دوزخ ته کل روان

هر چې ناست يې تهٔ او چت پهٔ دي ممبر ... نو ضرور بهٔ ګنهګار تمام اکثر

پهٔ تا یاندې بهٔ دا ځې تهول امانت ... نو کهٔ چرې پهٔ کښې وي ستا څوک اُمت

چې تهٔ ووینې پهٔ دوئ کښې امت خپل ... نو ربه تهٔ ترې نه را وباسې بالکل

شفاعت به يې تهٔ وکړې برابر ... زهٔ به يې و بخښمه تا ته سراسر

پهٔ دې شان امتي ستا يُو ګنهګار ... پهٔ دوزخ کښې پاتې نشي ګرفتار

والله اعلم بالصواب ... والیه المرجع والمآب

**شاد محمدهٔ ثنا ډېره د اکبر کړه**

درود ډېر پهٔ محمد خیر البشر کړه

چې پهٔ خیر سره تمام شو دا کتاب ... پهٔ درګاه دې شي قبول د پاک وهاب

## خاتمه د کتاب

---

شکر ډېر کړم زه د الله رحیم رحمان ... چې کتاب مې د معراج آخر زمان

نن تمام کړ پهٔ خپل وسع سره سم ... هر چې وو زما فقیر خپل فکر کم

مګر عرض کړم دا پهٔ در د رب ستار ... چې يې قبول کړي پهٔ حرمت د خپل دوښداد

زما مراد دے چې هر څوک ترې واخلي نفع　　زنګ په زړو نو چې لرې هغه شي د نفع

که رضا شي پرې د پاک الله قدیم　　په شمه به ئې شي د پر خلق شمیم

افغانان به ترې نه نفع کړي حاصله　　بهره مند به شي ترې ډېر بې د جاهله

حال دادے چې الله وکړي هدایت　　کافر زدکړي مسلمان هغه ساعت

چې پرده د مخه لرې کړي د شپې　　د دنیا بحر زر ډُو ځي چپې

تیاره راولي په مخ د دنیا باندې　　مار لرم غل کاشین څېل کار پکښې کاندې

شبِ داجِ ظلمت د نیا کاندې په نمر　　سیاه ابر په نمر نور کړي پاک اکبر

په لحظه کښې زمانه کاندې بدله　　شاه ګدا کړي ګدا شاه کړي په یو ځله

د ښو په د پول کښې نوبت نور شي　　که څوک سپین کښې څپل ځان هغه مختور شي

نا بینا په لارې سم کړي خاطرخواه　　روغ په دواړو سترګو پرېباسي په چاه

د قادر دې قدرتونه د حد د بېر　　د حساب دا نه دي د حده تېر

**شاد محمد** دے ګنهګار عاصي بې حده

ته ئې وبخښې په مخ د دوست احده

ما حساب کړې په اُمت د څپل حبیب　　ته شافع کړې څپل رسول زما غریب

## غزلِ نعتِ محمد مصطفیٰ صلی الله علیه وآله واصحابه وسلّم

اے خاتم الانبیاء شاهِ عربي عجمي　　ټول مقتدیان وو دستا تاکوله د دوئ امامي

تاج د لولاک چې دې په سر کښېښود اکبر رسوله　　ځکه پېدا کړه جن او انس الله جهان تمامي

چې په بدلو مشرف کړې رب رحیم د معراج　　فضل په تا وو د هر چا نه د الله کرامي

چې څوک شي سم د ذره په صدق په یقین ستا په لا　　هغه به یوسي د فاني نه اماني نېکنامي

لکه ظلمات د شپې چې و تښتي د نمر د مخې　　هسې روښان به وي دین ستا په تاعلي الدوامي

تیاره د کفر په دنیا د اسلام شوه بدله　　ته پېدا کړے ئې الله په دې دنیا عظامي

هرچي څوک ستا په رسالت نه کړي د صدقه يقين — هغه کافر دے برابر او به پيدا حرامي
نه شاد محمد بنده د خداے امتي ستا يمه صاف
ستا د غلام مي ده قبوله هم په سر غلامي

## درسنه کتاب مستطاب معراج نامه

په سن ديارلس سوه دولس کښي عجب — په تاريخ د اتوليشتم کښي د رجب
شه تمام کتاب په خير سره ضرور! — په کتوي د مؤمن زړه شي مسرور!
او زما پکښي مطلب وو صرف ثواب — په درگاه دي ئي مقبول کړي پاک تواب
هرچي ماکړے په دي دے مشقت — صرف د پاره د ثواب د آخرت
چي په دي کښي کل احوال دي د سرور — چي بيلے په محبوب دے پاک اکبر
له فارسي نه مي پښتو کړ دا کتاب — په زيور د نظم ماکړه انتخاب
شاد محمد له نور به څه وايي اوس بس کړه
خداے رسول په لا دي سم دروم هوس کړه
هرچي سم دروم په لار د دوي صادق دے — چي څوک غير دروم له دوي نه منافق دے

## تمت - تمام شد

تد تم من تصانيف لئيق اورنگ جلالت عالي منزلت جناب شاد محمد خان صاحب
کثير المواهب قدوة الخوانين العظام ذ الاکرام رئيس اعظم قريه مردان علاقه
يوسفزائي ضلع پشاور والسلام
بدست خط فقير محمد رفيق عفي الله تعالیٰ عنه و لجميع المؤمنين بحرمة النبي و اله الامجاد

---

۱- د تاج ﷺ د لته انبیاء ته مضاف دے. او په عربۍ کښې په مضاف "ال" نهٔ راځي.

۲- پهٔ لغت کښې د محمّدة ﷺ را غلے دے. معنیٰ يې ستاينه ده. پوهنکي عبر معروف دے. نوځکه پهٔ غوږونو دروند لګي.

۳- پهٔ اصل کښې نوره دے.

۴- پهٔ اصل کښې تهٔ دے.

۵- اصل کښې بر کښې دے.

۶- صحابي هغه کس ته وائي چې د اسلام پهٔ حالت کښې يې رسول[۴] د خدائے ليدلے وي. تابعي هغه سړي ته وائي چې د اسلام پهٔ حالت کښې يې صحابي ليدلے وي تبع تابعي هغه سړي ته وائي چې د اسلام پهٔ حالت کښې يې تابعي ليدلے وي.

۷- شاعر مرحوم د معارج النبوت مصنف غالباً خواجه معين الدين چشتي اجميري ګڼي حالانکې د دې کتاب مصنف علامه معين الدين هروي واعظ کاشفي دے د هندوستان نهٔ دے د هرات دے.

۸۔ پهٔ اصل کښې الليل دے صحيح اَلَّيْل دے

۹۔ قرآن پاک ۱۷ : ۹۷

۱۰۔ وخت

۱۱۔ پهٔ اصل کښې الليل دے صحيح اَلَّيْل دے

۱۲۔ قرآن پاک ۱۷ : ۹۷

۱۳۔ ثُلثان د ثلث تثنيه ده معنیٰ ئې پهٔ دريو کښې دوه برخې ده۔

۱۴۔ پهٔ اصل کښې ياايها دے صحيح يَاَيُّهَا دے

۱۵۔ پهٔ اصل کښې الليل دے صحيح اَلَّيْل دے

۱۶ قرآن پاک ۷۳ : ۴

۱۷۔ اوقاف او رموز د قرآن پاک د لوستلو پهٔ وخت کښې پهٔ مناسبو ځايونو ودريدلو ته وائي۔

۱۸۔ خدمت د خدائے پاک عبادت او بندګئ ته وائي۔

۱۹۔ پهٔ اصل کښې عَلَيْکَ دے صحيح عَلَيْكَ دے۔ دغه دويم رسم الخط د قرآن پاک رسم الخط دے۔ او د قرآن پاک رسم الخط توقيفي يعني د خدائے د اړخه دے۔ پهٔ دې کښې تغير او تبدل صحيح نهٔ دے۔

۲۰۔ قرآن پاک ۲۰ : ۲

۲۱۔ بيول د بره ذره پښتو يا د علاقو د تلفظ د فرق وجه ده۔ چې عام تېکے "بوتلل" دے۔

۲۲۔ قرآن پاک ۲۲ : ۱

۲۳۔ پهٔ اصل کښې کلمه "دَ" تاج د تېکي نه اول راغلې ده۔ ولې صحيح د تاج نه پس ده۔

۲۴ دا حصې يوه مقوله مشهوره ده چې لولاك لَمَا خلقت الافلاك (خدائے پاک وائي م که ته (اے حبيبه!) نهٔ وے نو ما بهٔ آسمانونه نهٔ وے پيدا کړي۔

۲۵ - پهٔ اصل کتبې کَ دے صحیح کَ دے
۲۶ - قرآن پاک ۷: ۱۱۷، ۲۸ : ۳۱
۲۷ - قرآن پاک ۲۰ : ۲۱
۲۸ - پهٔ اصل کتبې "شه" دے
۲۹ - پهٔ اصل کتبې "هغا" دے
۳۰ - پهٔ اصل کتبې پرا نستلے دے
۳۱ - پهٔ اصل کتبې یَنْ غُو دے صحیح یَنْ غُوا دے
۳۲ - قرآن پاک ۱۰ : ۲۵
۳۳ - پهٔ اصل کتبې روندو دے صحیح رندو دے
۳۴ - قرآن پاک ۱۸ : ۷
۳۵ - پهٔ اصل کتبې همیل دے
۳۶ - پهٔ اصل کتبې بد بخت دے صحیح بخت دے
۳۷ - پهٔ اصل کتبې قلعه دے استعمال زیات د قلا دے
۳۸ - پهٔ اصل کتبې د سر ټکے نشته
۳۹ - قرآن پاک ۵۳ : ۸
۴۰ - قرآن پاک ۷ : ۱۷۲
۴۱ - قرآن پاک ۲ : ۳۰ پهٔ اصل کتبې پهٔ ایت اعراب نهٔ وو
۴۲ - قرآن پاک ۲ : ۳۰ پهٔ اصل کتبې اعراب نشته
۴۳ - پهٔ اصل کتبې د جام نه پس لفظ "ته" نشته
۴۴ - قرآن پاک ۲ : ۳۰
۴۵ - پهٔ اصل کتبې صلوٰة دے صحیح الصلوٰة دے
۴۶ قرآن پاک ۱۲ : ۳۱
۴۷ - قرآن پاک ۱۲ : ۳۱ پهٔ اصل کتبې پهٔ حُنو کلمو اعراب وو او حُنو نهٔ وو -

۴۸ - پهٔ اصل کښې ځیر دے

۴۹ - پهٔ اصل کښې سلام وو صحیح السلام دے ۔

۵۰ - د یقین درې درجې بیان شوي دي یو

علم الیقین لکه سړي ته علم وشي چې وور سوزول کوي، بل

عین الیقین، سړے اودېنې چې وور سوزول کوي ؛ بل

حق الیقین سړے خپله ګوته پهٔ اور کښې کېږدي او اورې اوسوزوي

۵ - قرآن پاک ۳۰ : ۱۱۳

۵۰ - قرآن پاک ۲ : ۲۸۵

۵۳ - بات پهٔ اردو ژبه کښې خبرې ته وائي ۔

۵۴ پهٔ اصل کښې کاوهٔ نشتهٔ دے

۵۵ - پهٔ اصل کښې د "خپل ته" نه پس "یې" نشته

۵۶ - پهٔ اصل کښې "اِنشَاءَ" دے صحیح اِنْ شَاءَ دے

۵۷ - پهٔ اصل کښې نشته

۵۸ - پهٔ اصل کښې انشاءالله دے صحیح اِن شاءالله دے

۵۹ - پهٔ اصل کښې نشته - پهٔ اصل دا د کلمه اعلم نه پس مستعمل ده چې صحیح نهٔ ده ۔

۶۰ - پهٔ معارج النبوت کښې دا تلے شته - د لته پهٔ اصل کښې نشته پهٔ معارج کښې نور عبارت دا مې دے ۔

وَ آدَمُ وَ مَنْ دُونَهُ تَحْتَ لِوَائِي وَلَا فخر وانا اَوَّلُ مَنْ يَقْرَعُ باب الْجَنَّةِ وَلَا فَخَرَ

پهٔ اصل کښې د فخر "ر" دپاسه زبر دے تنوین نشته

۶۱ - پهٔ اصل کښې الظلمات دے دا د قرآن پاک رسم الخط نهٔ دے - پهٔ اصل کښې پهٔ دې ایت اعراب نشته ۔

۶۲- قرآن پاک ۲ : ۲۵۷

۶۳- دس د فارسي دتڼکي دست اختصار دے معنیٰ یې لاس ده

۶۴- ددې عبارت جوړښت داسې په کار دے

ا دیوڅو اشارانو اجمالاً بیان دمعراج دوا قصې د بیانونونه ول عاموخاصوته په تفصیل سره اوروم وباالله التوفیق

یا ۱۱: د معراج د وا قصې په تفصیل سره د بیانولو نه اول دیوڅو اشارا تو اجمالي بیان عامو خاصو ته کوم - وبالله التوفیق.

۶۵ قرآن کریم ۲۵ : ۱

۶۶ سبع مثاني سورهٔ فاتحې ته وائي .

۶۷ په اصل کښې "په دے" دے

۶۸ د پنځه وارو نمونځونو درکعتونو شمېر دوه دېرش دے .

۶۹ په اصل کښې نشته - د غه رنګ په اصل کښې دمبارک نه وروستو "رو" ده شعر روان نهٔ وُ - د شعر د روانئ د پاره په کښې دا تصرف ضروري وو -

۷۰- په اصل کښې ظلم کسبیا دے صحیح ظلم کسبیه دے معنیٰ یې ظالم ده.

۷۱- په اصل کښې نتوه ده.

۷۲- په اصل کښې نشته

۷۳- په اصل کښې نشته

۷۴- په اصل کښې نهٔ دے

۷۵- په اصل کښې نشته

۷۶- په اصل کښې ځوزاوه دے

۷۷- معنیٰ یې قیمت دے

۷۸- د لته د ساق معنیٰ پنځه ده.

۷۹- په اصل کښې صلعم دے په داسې کتابونو کښې ددې ټکي یعنې صلعم یکل
څېل تهول عبادت په او بو ورل دي ۔

۸۰- په اصل کښې "ده" دے

۸۱- د ځمو تلي یا د لاس تلي دلته ترې د پښو تلي مراد دي لکه مؤلف
چې لیکلي دي ۔

۸۳- په اصل کښې انشاء دے

۸۲- په اصل کښې پرانستلي دے

۸۴- قرآن پاک ۲ : ۲۸۴

۸۵- معنیٰ یې منحوس ده

۸۶ په اصل کښې انشاء دے

۸۷- ددهٔ د وینا مطابق نمر دزمکې یو سل څلور شپېته یا شپږ شپېتهٔ کرته
زیات لوے دے

۸۸- قرآن پاک ۵۳ : ۹

۸۹ معنیٰ یې د سترګو په رپ کښې ده۔

۹۰- په اصل کښې نشته

۹۱- قرآن پاک ۴ : ۱۵۷ - په اصل کښې اعراب نشته

۹۲- په اصل کښې د نعتاه دے -چې د قرآن رسم الخط نهٔ دے

۹۳- قرآن پاک ۱۹ : ۵۷ - په اصل کښې اعراب نشته
دلته مراد لویه مرتبه ده نه چې آسمان ته ختل ۔

۹۴- د خیر الامور ټکے دلته مناسب نهٔ لګي ۔

۹۵- هسې نمونن سیا د یرې غبارې هم په دې دول په هوا کښې الوزولے شي

۹۶- په اصل کښې ملکې خالي دے ۔

۹۷- په اصل کښې و شـولوله دے ۔

۹۸- پهٔ اصل کښې نشته

۹۹ پهٔ اصل کښې اسمانونو دے

۱۰۰ قرآن پاک ۵۳ : ۹

۱۰۱- پهٔ اصل کښې اشني دے

۱۰۲- اودس پهٔ اصل کښې آبدست دے آبدست دفارسی تکے دے۔

۱۰۳- شاعردلته دعجب نه تعجب حیرانتیا اوشک اخلي۔

۱۰۴- پهٔ اصل کښې وَمَا اَرْسَلْنَاكَ دے دا د قرآن پاک رسم الخط نهٔ دے۔

۱۰۵- قرآن پاک ۲۱ : ۱۰۷

۱۰۶- دلته دتاج تکے د دُرَّةً دپاره نو مضاف الیه دے ولي دالانبیاء دپاره مضاف دے او پهٔ عربۍ کښې پهٔ مضاف ال نهٔ راځي۔

۱۰۷- معنی یې دکه ده۔

۱۰۸- پهٔ اصل کښې صلعم دے

نوټ :- دلته دد ې خبرې وضاحت هم ضروري ګڼي چې کوم سفر رسول د خدائے د مکې نه بیت المقدس ته کړے دے دې ته اِسراوائي اوکوم سفرچې د بیت المقدس نه اسمانونوته شوے دے دې ته معراج وائي۔

۱۰۹- اخبار دخبر جمع ده احادیثوته وائي

۱۱۰ آثار د اثر جمع ده د صحابي (رض) قول ته وائي

۱۱۱ د خفتن نه دلته مراد نماز خفتن یعني ماسختن دے

۱۱۲ مله - مل - ملګري۔

۱۱۳ ماوِ خن - د سپوږمۍ پهٔ شان مخ

۱۱۴ د کنج معنی کوټ دے۔

۱۱۵ پهٔ اصل کښې ته دے۔

۱۱۶ - بيت المقدس / مسجد اقصی

۱۱۷ دو هم نيم بيتے روان نهٔ دے کهٔ الفاظ ئې وړاندې وروستو کړے شي نو بيا جوړيدے شي - لکه

بابا آدم چې لا باڼکلانهٔ وو پيدا

۱۱۸ پهٔ اصل کښې چې دے -

۱۱۹ پهٔ اصل کښې نشته -

۱۲۰ پهٔ اصل کښې د "خرنه" وروستو دو دا غلے دے -

۱۲۱ دا نيم بيتے پهٔ وزن دروند ښکاري -

۱۲۲ سرو يا قوتونه ئې سر جوړ وو -

۱۲۳ - قرآن پاک ۱۹ : ۸۵ پهٔ اصل کښې پهٔ ځنوټکو اعراب نشته -

۱۲۴ پهٔ اصل کښې اوله دے -

۱۲۵ دو هم نيم بيتے گډ وډ دے کهٔ داسې شي نو ټيک به شي
هسې نمرو يم بې نوره ستا پهٔ مخکښې -

۱۲۶ - پهٔ اصل کښې نور دے صحيح نوره دے -

۱۲۷ - پهٔ اصل کښې ناموته دي -

۱۲۸ - بيت المقدس -

۱۲۹ چاپې

۱۳۰ لاړهٔ يعني لړه

۱۳۱ رجال د رجل جمع ده پهٔ عرفه کښې سړي ته وائي -

۱۳۲ آتش پرست ته وائي -

۱۳۳ پهٔ اصل کښې نشته -

۱۳۴ پهٔ اصل کښې نشته -

۱۳۵- دا تکے پهٔ اصل کښې متهادے - د هاضمیر د مؤنث دپاره راځي ولې دلته مؤنث نشته

۱۳۶- پهٔ اصل کښې حسته دے

۱۳۷- مچ ته وائي

۱۳۸- ډیر زیات درو غژن ته وائي د مبالغې صیغه ده

۱۳۹- کمین خراب ته وائي

۱۴۰- دواب ځناور ته وائي

۱۴۱ پهٔ اصل کښې نشته

۱۴۲ پهٔ اصل کښې نشته

۱۴۳ بربوقه

۱۴۴- قرآن پاک ۱۶ : ۱۲۰ پهٔ اصل کښې پهٔ ځنوتکو اعراب نشته

۱۴۵- پهٔ اصل کښې نشته

۱۴۶ قرآن پاک ۷ : ۱۵۹

۱۴۷ پهٔ اصل کښې نشته

۱۴۸- قرآن پاک ۳۸ : ۲۰

د فصل الخطاب وضاحت مفسرینو دا رنګ کړے وے

خدائے پاک حضرت داؤد علیه السلام ته دفیصلې کولو ډیر لوئے صلاحیت ورکړے وو قوت فیصله ئې ډیر زیات وو - چې خبره به ئې کوله نو ډیره مؤثره به وه - خدائے پاک دهٔ له نبوت، حسن تدبیر قوت فیصله او قسما قسم علمي او عملي کمالات ورکړي وو.

۱۴۹- پهٔ اصل کښې نشته

۱۵۰- پهٔ اصل کښې نشته

۱۵۱- قرآن پاک ۳۸ : ۳۵

۱۵۲- ۱ - فالج زده

۲- د برګي مرض يعني برګے

۳- کوړ هم برګي ته وائي - جذام ته هم وائي - دا ذکر په قرآن کښې د سورۀ آل عمران په آيت نمبر ۴۹ کښې شوے دے -

۱۵۳- قرآن ۲ : ۱۵۹ ، ۳۴ : ۲۸ ، ۳۵ : ۲۴ ،

۱۵۴ قرآن ۳۵ : ۱

۱۵۵ په اصل کښې السلام الصلوة دے

۱۵۶ په اصل کښې پراشتی دے - قرآن پاک ۲۱ : ۳۳ - په اصل کښې اعراب نشته

۱۵۷ په اصل کښې دا علم نه پس او دے

۱۵۸- په اصل کښې صلعم دے -

۱۵۹- په اصل کښې صلعم دے

۱۶۰- قرآن ۴۷ : ۳۱ په اصل کښې اعراب نشته

۱۶۱ - په اصل کښې کتاب دے دا د قرآن پاک رسم الخط نۀ دے -

۱۶۲- قرآن پاک ۸۳ : ۱۸

۱۶۳- په اصل کښې کتاب دے

۱۶۴ قرآن پاک ۸۳ : ۷

۱۶۵ په اصل کښې لرۀ دے په دې نيم بيتے لږ دروند غوندې لګي :

۱۶۶ په اصل کښې هذا دے - مشار اليه تثنيه ده - اشاره هم تثنيه په کار ده -

۱۶۷- قرآن پاک ۲ : ۲۶۱ په اصل کښې اعراب نشته

۱۶۸ قرآن پاک ۱۰۷ : ۵،۴،۷

۱۶۹ قرآن پاک ۹ : ۳۴

۱۷۰ په اصل کښې الخبيثات دے دا د قرآن پاک رسم الخط نۀ دے -

۱۷۱ قرآن پاک ۲۴ : ۲۶

۱۷۲ قرآن پاک ۱۰۴ : ۱

۱۷۳ قرآن پاک ۷ : ۶۷ په اصل کښې اعراب نشته

۱۷۴ په اصل کښې نشته.

۱۷۵ قرآن پاک ۸۳ : ۳۰

۱۷۶ قرآن پاک ۸ : ۲۷

۱۷۷- قرآن پاک ۱۱ : ۱۱۳

۱۷۸- قرآن پاک ۳۹ : ۱۲

۱۷۹- قرآن پاک ۵ : ۹۰

۱۸۰ 〃 〃 ۴۳ : ۸۶

۱۸۱ - قرآن پاک : ۲ : ۲۷۵

۱۸۲ په اصل کښې به دے

۱۸۳ قرآن پاک ۴ : ۹۳

۱۸۴- قرآن پاک ۴ : ۳۴

۱۸۵ قرآن پاک ۴ : ۱۳۵

۱۸۶ په اصل کښې نشته - د مال معنیٰ وخت ده

۱۸۷ قرآن پاک ۱۷ : ۲۳

۱۸۸ ان شاء

۱۸۹ برف واورېته وايي

۱۹۰ په اصل کښې عبادک دے۔

۱۹۱ قرآن پاک ۲۲ : ۳۴

۱۹۲- قرآن پاک ۳۰ : ۴۰

۱۹۳: د نعت د شاد محمد خان په دیوان کښې په صفحه ۳۶۵ او ۳۶۶ چاپ شوے دے۔

۱۹۴۔ د شاد محمد خان په دیوان کښې دا نیم بیتے داسې دے

ستا په سبب کړله پاک رب ښکاره خدائي ظاهره

زما په خیال کښې دا شعر زیات روان دے۔

۱۹۵۔ په اصل کښې صلعم دے۔

۱۹۶۔ په اصل کښې نشته۔

۱۹۷۔ دا نعت د شاد محمد خان په دیوان کښې په صفحه ۲۶۵ او ۲۶۶ کښې چاپ شوے دے تو اخري ټکي د شاد محمد خان په دیوان کښې داش دے په معراج نامه کښې داشه دے۔ د معراج نامې داشه زیات صحیح دے۔

۱۹۸ د شاد محمد خان په دیوان کښې دا ټکي "کریم" دے

۱۹۹ په دیوان کښې داسې دے

اول خدائے په تا عاشق ہے جهان دے

۲۰۰۔ په دیوان کښې یو شعر داسې دے

پېچې ادم ابوالبشر د کل عالم دے

اے د کل جهان بهتره راشه راشه

۲۰۱۔ په معراج نامه کښې دا شعر نشته

په دیوان کښې دا ټکي "شم" دے

۲۰۲ په اصل کښې صلعم دے۔

۲۰۳۔ په معارج النبوة کښې دا ټکي الاحد دے

۲۰۴۔ په معارج النبوة کښې دا ټکي مالک دے

۲۰۵۔ د معارج النبوة نړ غونډې عبارت پر بیخے شوے دے نو ځکه دلته نقطې په کار دي۔

۲۰۶- په اصل کښې دا عبارت نشته - په معارج النبوة کښې دا عبارت را غلے دے -

۲۰۷- په اصل کښې دا نشته - په معارج النبوة کښې شته -

۲۰۸ دانعت هم په دیوان کښې په صفحه ۱۰۹ چاپ شوے دے

۲۰۹- په دیوان کښې دا نیم بیتے دا سې دے

کل ملک انسان او جن دِ قدم بوس دي

۲۱۰- په اصل کښې نی او چت دے صحیح او چتني معلومیږي

۲۱۱- په اصل کښې الخالق دے

۲۱۲- په اصل کښې الظلمات دے

۲۱۳ په اصل کښې الخالق دے

۲۱۴- په اصل کښې نشته

۲۱۵ په اصل کښې الرفیق دے

۲۱۶- په اصل کښې سبحان هادی من یشاءُ و مُضلُ من یشاء سبحان الغفور الرحیم

۲۱۷- په اصل کښې نشته -

۲۱۸- مصنف دلته په ځینو شعرونو کښې د لذتونو په ځائے د ذاتونو په حقله د خپلې رائې اظهار کړے دے -

۲۱۹ دَحَکّ معنی لړې ده

۲۲۰ د طاس معنی د او بوڅښلو پیاله یا گلاس ده -

۲۲۱ په اصل کښې نشته

۲۲۲- په اصل کښې صلوة دے

۲۲۳- په دې نیم بیتي کښې کې ده که د ستړا تکے په کښې زیات شي نو وزن به ئې پوره شي

۲۲۴- په اصل کښې نَ دے

۲۲۵ په اصل کښې علی العظیم دے

۲۲۶- په اصل کښې الواصفین دے

۲۲۷ په اصل کښې منتهیه دے

۲۲۸- په اصل کښې خفقت دے

۲۲۹- په اصل کښې الاصعاب دے

۲۳۰- په اصل کښې یجرن دے

۲۳۱ په اصل کښې نشته

۲۳۲ په اصل کښې کراماتک دے

۲۳۳- په اصل کښې من وَ اله نه اول دے

۲۳۴ دلته هم په اصل کښې من واله نه اول دا غلط دے

۲۳۵- په اصل کښې صفها دے

۲۳۶- په اصل کښې صنکها دے

۲۳۷- په اصل کښې یجوّز دے

۲۳۸- په اصل کښې ملک دے

۲۳۹- په اصل کښې جیاد دے

۲۴۰- په اصل کښې انشاء دے

۲۴۱ په اصل کښې اراني دے

۲۴۲ په اصل کښې القابض دے

۲۴۳ په اصل کښې فلا تعلو احدا دے

۲۴۴ په اصل کښې نشته

۲۴۵ په اصل کښې الرحیم دے

۲۴۶ په اصل کښې نیکونو دے

۲۴۷- علف گیاه او وښوته وائي.

۲۴۸ په اصل کښې نشته

۲۴۹ په اصل کښې صرف کریم دے

۲۵۰- په اصل کښې فقهرا دے

۲۵۱- په اصل کښې مهرا دے

۲۵۲ دُر ملغلرې ته وائي.

۲۵۳- پسر زوې ته وائي

۲۵۴- په اصل کښې الحلیم دے

۲۵۵- په اصل کښې الواصف دے

۲۵۶- په اصل کښې منعته دے

۲۵۷- قرآن پاک ۲۷ : ۲۶ - په اصل کښې اعراب نشته.

۲۵۸- په اصل کښې علي دے

۲۵۹- په اصل کښې د مانه ودوستو "اعظمو" را غلے دے

۲۶۰- بقر غوائي ته وائي

۲۶۱- په اصل کښې نشته

۲۶۲- په اصل کښې نشته

۲۶۳- په اصل کښې یرزق السّباع دے او دسباع نه پس یا مفضل را غلے دے

۲۶۴- په اصل کښې نشته

۲۶۵- په اصل کښې نشته

۲۶۶- په اصل کښې تَ یعني بسحان دے صحیح بسحانه دے

۲۶۷- په اصل کښې یا این دے.

۲۶۸- په اصل کښې الپیغبر دے - دا صحیح نهٔ دے

۲۶۹- جراد ملخ ته وائي.

۲۷۰- قرآن پاک ۱۰۸ : ۱ د ے

۲۷۱- ګبین

۲۷۲ پهٔ اصل کښې علي د ے

۲۷۳- پهٔ اصل کښې غربت د ے

۲۷۴- پهٔ اصل کښې الله الواحد القهار د ے

۲۷۵ پهٔ اصل کښې دا نشته

۲۷۶- د فکوت جمع فکر د ے معنیٰ ئې خیال د ه

۲۷۷ پهٔ اصل کښې نشته - قرآن پاک ۳۰ : ۱۴

۲۷۸- پهٔ اصل کښې نشته

۲۷۹ بنګاره

۲۸۰ قرآن پاک ۵۳ : ۱۷ پهٔ اصل کښې اعراب نشته

۲۸۱- قرآن پاک ۶ : ۱۰۳

۲۸۲ پهٔ کتاب کښې مصنف حاتم ا پیغمبر استعمالوي ولې دا صحیح نهٔ دے دلته حاتم مضاف د ے او ا پیغمبر مضاف الیه جوړیږي او دا د عربۍ ژبې ترکیب د ے - ولې پیغمبر د عربي ژبې ټکے نهٔ د ے د فارسۍ د ے نو ځکه ال پرې نهٔ راځي -

۲۸۳- دلته د شق القمر معجزې ته اشاره ده

۲۸۴- پهٔ اصل کښې تعالیٰ ذکر شوے د ے

۲۸۵- دا نیم بیتے نیمګړے معلومیږي -

۲۸۶- پهٔ اصل کښې و سُمّیَ د ے

۲۸۷ پهٔ اصل کښې نشته

۲۸۸ پهٔ اصل کښې ملاصق د ے

۲۸۹ پهٔ اصل کښې بالتقید د ے

۲۹۰- په اصل کښې بلما دے

۲۹۱ په اصل کښې دا عبارت نشته

۲۹۲- په لغت کښې د افتقار معنیٰ ضرورت، حاجت، طلب او کمے ده

۲۹۳- قرآن پاک ۲: ۸۰

۲۹۴ په د عربۍ په لغت کښې جرعه یو گوټ ته وائي

۲۹۵- خرمن درمن ته وائي

۲۹٦ خوشه وږي ته وائي د غنمو یا جوارو وږے

۲۹۷- په اصل کښې یحبّه دے

۲۹۸ په اصل کښې احبّته دے

۲۹۹- په اصل کښې نشته

۳۰۰- په اصل کښې الذی دے

۳۰۱- په اصل کښې "به" دے

۳۰۲ مرأت آئینې ته وائي

۳۰۳- په اصل کښې وا لملازم دے

۳۰۴ - په اصل کښې المراد دے

۳۰۵- قرآن پاک ۳۵: ۱۰

۳۰٦ - مصنف په دې تفصیل کښې دا نشان څلورحصې ښودلې دي
یو نفس چې گناه ترې نه کیږي او خدائے په توبه دا معاف کوي
بل زړه چې د عشق او محبت مرکز دے
دریم روح چې دے د قربت او کرامت خاوند دے
څلورم سر چې وائي چې دا الله په خپل لاس جوړ کړے دے او دېر
ودته گران دے ځکه مصنف وائي چې خدائے پاک ده ته وائي چې زه
ستا یم او ته زما ئې - (ایلیسمٓ)

۳۰۷- په اصل کښې اودے صحیح داد ے

۳۰۸- وَ اُدْنُ مِنِّي- معنیٰ ماته رانژدې شه - ماته راچخت شه

۳۰۹ حادث - مخلوق

۳۱۰- قِدَم - پخوانے یعنې خدائے -

۳۱۱- قرآن پاک : ۵۳ : ۹

۳۱۲- مِلْحَةٌ - مِلحَه په لغت کښې وعدې معاهدې او اقرارته وائي- دیو ځائے کېدو معنیٰ هم لري - د مُلْحَه کلمه هم شته ولې د هغې معنیٰ حاضر جوابي او خوشحالي ده-

۳۱۳- قرآن پاک ۵۳ : ۱۷

۳۱۴ قرآن پاک ۷ : ۱۴۳

۳۱۵ قرآن پاک ۷ : ۱۴۳

۳۱۶ په اصل کښې تعالے جل شانه غیر اسمه را غلے دے -

۳۱۷- په اصل کښې دا نشته

۳۱۸- په اصل کښې "عن" دے

۳۱۹- په اصل کښې نشته - قرآن پاک ۶ : ۵۴

۳۲۰- په اصل کښې نشته نیز قرآن پاک ۶ : ۱۲

۳۲۱- قرآن پاک ۹۷ : ۳

۳۲۲- په اصل کښې مِنْکُلِّ دے - قرآن پاک ۹۷: ۴، ۵

۳۲۳- قرآن پاک ۳۶ : ۵۸

۳۲۴- په اصل کښې الصّالحُون دے صحیح اَلصّٰلِحُون دے قرآن پاک ۲۱ : ۱۰۵ په اصل کښې اعراب نشته.

۳۲۵- قرآن پاک ۱۷ : ۱

۳۲۶- قرآن پاک ۵۷ : ۲۱

۳۲۷ قرآن پاک ۱۴ : ۲۳

۳۲۸- قرآن پاک ۳۳ : ۴۳

۳۲۹- په اصل کښې اَلطَّیِّبَاتُ دے

قرآن پاک ۲۴ : ۲۶

۳۳۰- په اصل کښې جَنَّاتِ دے - قرآن پاک ۹ : ۷۲

۳۳۱- قرآن پاک ۳۶ : ۵۸

۳۳۲- قرآن پاک ۶۶ : ۸

۳۳۳- په اصل کښې نشته - قرآن پاک ۶ : ۱۲

۳۳۴- په اصل کښې وَبَرَکَاتِ عَلَیْکَ وَ عَلیٰ اُمَمٍ مِنْ مَعَکَ دے
صحیح [ وَبَرَکٰتٍ عَلَیْکَ وَ عَلیٰٓ اُمَمٍ مِّمَّنْ مَّعَکَ] دے
قرآن پاک ۱۱ : ۴۸

۳۳۵- قرآن پاک ۷۹ : ۵۲-۴

۳۳۶- په اصل کښې اُولٰئِکَ دے - ایضاً قرآن پاک ۴ : ۶۹

۳۳۷- قرآن پاک ۲۱ : ۲۸ - په ایت کښې په اصل کښې
مَنْ یَرْتَضٰی دا غلط دے صحیح لِمَنِ ارْتَضٰی دے - د غه رنګ د
ایت په اول کښې "وَ" شته خو په اصل کښې نشته

۳۳۸- قرآن پاک ۲ : ۲۸۵

۳۳۹- قرآن پاک ۲ : ۲۸۵

۳۴۰- په اصل کښې یا عِبَادِیَ دے صحیح یٰعِبَادِیَ دے.

۳۴۱- قرآن پاک ۳۹ : ۵۳

۳۴۲- په اصل کښې عَبْنَاهُ دے - قرآن پاک ۱۲ : ۸۴

۳۴۳- قرآن پاک : ۱۲ : ۹۶

۳۴۴- په اصل کښې یا اَیُّهَا دے۔

۳۴۵- په اصل کښې اپیغمبر دے

۳۴۶- قرآن پاک ۲ : ۲۸۵

۳۴۷ قرآن پاک ۲ : ۲۸۵

۳۴۸- قرآن پاک ۲ : ۲۸۵

۳۴۹- قرآن پاک ۲ : ۲۸۵

۳۵۰- قرآن پاک ۲ : ۲۸۵

۳۵۱- قرآن پاک ۲ : ۲۸۵

۳۵۲- په اصل کښې غُفْرَانَکَ دے - قرآن پاک ۲ : ۲۸۵

۳۵۳- قرآن پاک ۳ : ۱۸۱

۳۵۴ 〃 〃 ۲ : ۶۱

۳۵۵ 〃 〃 ۷۶ : ۲

۳۵۶ 〃 〃 ۲ : ۲۸۵

۳۵۷ 〃 〃 ۲ : ۲۸۶

۳۵۸ 〃 〃 ۲ : ۲۸۶

۳۵۹ 〃 〃 ۲ : ۲۸۶

۳۶۰- په اصل کښې طاقت دے

۳۶۱- قرآن پاک ۲ : ۲۸۶

۳۶۲- ایضاً

۳۶۳- قرآن پاک ۲ : ۲۸۶

۳۶۴- په اصل کښې دانشته

۳۶۵- قرآن پاک ۷ : ۱۵۷

۳۶۶- په اصل کښې والشکر لله تعالیٰ وحده هم داغلے دے۔

۳۶۷- قرآن پاک ۲ : ۲۸۶- پهٔ اصل کښې پهٔ دېروتهکو اعراب نشته

۳۶۸- 〃 〃 ۲ : ۲۸۶

۳۶۹- 〃 〃 ۴۲ : ۲۵ په اصل کښې د يعفو مخې ته الف نشته

۳۷۰- قرآن پاک ۳۹ : ۵۳

۳۷۱ پهٔ اصل کښې بالمؤمنين دے

۳۷۲- قرآن پاک ۳۳ : ۴۳

۳۷۳- قرآن پاک ۲ : ۲۸۶

۳۷۴- پهٔ اصل کښې آمنوٗ دے - مخې ته ئې الف نشته

۳۷۵- په اصل کښې الکَافِرِيْنَ دے

۳۷۶- قرآن پاک ۴۷ : ۱۱

۳۷۷- پهٔ اصل کښې الکافرين دے - قرآن پاک ۲ : ۲۸۶

۳۷۸- قرآن پاک ۳۰ : ۴۷

۳۷۹- پهٔ اصل کښې گناه اوهم د عيبونو دے

دشعر د دوا فخ دپاده "گناهونو" د "عيبونو" نهکې زيات مناسب دي

۳۸۰- پهٔ اصل کښې فعليه دے

۳۸۱- پهٔ اصل کښې الفضل دے

۳۸۲- ملکرتيا

۳۸۳- قرآن پاک ۵۳ : ۱۰

۳۸۴ 〃 〃 ۵۳ : ۱۰

۳۸۵- 〃 〃 ۵۳ : ۱۶

۳۸۶- پهٔ اصل کښې آيات دے

۳۸۷- قرآن پاک ۵۳ : ۱۸

۳۸۸ 〃 〃 ۵۳ : ۱۰

۳۸۹ - پهٔ اصل کښې نشته

۳۹۰- پهٔ اصل کښې اى صفته هم را غلے دے

۳۹۱ - پهٔ اصل کښې الملئکة هم را غلے دے

۳۹۲- پهٔ اصل کښې نشته

۳۹۳ - پهٔ اصل کښې ملاء دے

۳۹۴- پهٔ اصل کښې عَبْدِى دے

۳۹۵- پهٔ اصل کښې ابدستونه دے۔

۳۹۶ - پهٔ اصل کښې اجهار را غلے دے

۳۹۷ - پهٔ اصل کښې دا نشته

۳۹۸ - پهٔ اصل کښې نشته

۳۹۹- پهٔ اصل کښې يا محمد صلى الله عليه وآله وسلم وراندې را غلے دے

صحيح ما المهلكات يا محمد دے

۴۰۰ پهٔ اصل کښې نشته ۔

۴۰۱- پهٔ اصل کښې عبدى دے

۴۰۲ - پهٔ اصل کښې نشته

۴۰۳ - پهٔ اصل کښې نشته

۴۰۴ - پهٔ اصل کښې يوم دے

۴۰۵ - قرآن پاک ۹۳ : ۶

۴۰۶ - " " ۹۳ : ۷

۴۰۷ - " " ۹۳ : ۸

۴۰۸ پهٔ اصل کښې الم نشرح لك دے

۴۰۹ - پهٔ اصل کښې اَوَلَمْ دے

۴۱۰ - پهٔ اصل کښې د اَلَمْ نه اول واو دے ۔

۴۱۱ - په اصل کښې اُجُبْتُهُم دے .

۴۱۲- په اصل کښې نشته په اصل کښې رافِیّ دا غلط دے

۴۱۳ - په اصل کښې اَدَی دے

۴۱۴ - په اصل کښې فرائضي دے - طاعتي په کښې نشته

۴۱۵ - په اصل کښې اکون نشته

۴۱۶ - په اصل کښې یا محمد نشته

۴۱۷ - قرآن پاک ۳ : ۴۴

۴۱۸ - په اصل کښې دا نشته

۴۱۹ - قرآن پاک ۵۳ : ۱۰

۴۲۰ - ایضاً

۴۲۱ ایضاً

۴۲۲ قرآن پاک ۵۳ : ۱۰

۴۲۳ - په اصل کښې کَ دا غلط دے

۴۲۴ - په اصل کښې کَ دا غلط دے - قرآن پاک ۹۴ : ۴

۴۲۵ - قرآن پاک ۲ : ۲۸۵

۴۲۶ - " " ۴ : ۶۲

۴۲۷ - " " ۵ : ۶۴

۴۲۸ - " " ۵ : ۷۳

۴۲۹ - په اصل کښې نشته

۴۳۰ - په اصل کښې الف نشته - صحیح لفظ ولااحاطة دے

۴۳۱ په اصل کښې ولاعلی شیئ هم دا غلط دے -

۴۳۲ - قرآن پاک ۵۳ : ۱۰

۴۳۳ - قصور د قصر جمع استعمال شوې ده ولې دا جمع د قصر ده چې معنیٰ يې کټ، ګناه او کوتاهي ده - دلته دا ټکی قصرونو په کار دے چې معنیٰ يې ماڼۍ او محلونه دي -

۴۳۴ - قرآن پاک ۲ : ۲۲۲

۴۳۵ - په اصل کښې يّادے

۴۳۶ - اسرائيل د عبرانۍ ژبې کلمه ده دا دوو ټکونه جوړ دے اسرا بند ، ايل خدائے يعني د خدائے بنده ولې دلته ترې نه مراد حضرت يعقوب عليه السلام دے

۴۳۷ - په اصل کښې نيم ـ ټتے دامې دے -

دا سورت انعام ولوئ يو حُله

۴۳۸ - قرآن پاک ۳ : ۱۵۹

۴۳۹ - په اصل کښې جعلناک دے

۴۴۰ - قرآن پاک ۳۸ : ۲۶

۴۴۱ - دا يت په اول واو دے - دا په قرآن پاک کښې نشته

۴۴۲ - قرآن پاک ۶ : ۱۶۵

۴۴۳ - په اصل کښې د دواړو شهادتو په منځ کښې واو دا غلط دے غالباً دا کلمهٔ شهادت ګڼلے شوے دے او دا د آخري کلمې عبده ورسوله نه معلوميږي حالانکې دا د اذان کلمې دي - يوه اشهد ان لا اله الا الله او بله اشهد ان محمد رّسول الله

۴۴۴ - قرآن پاک ۱ : ۱

۴۴۵ - غوپه زني

۴۴۶ - شپېلي ديرې شپېلۍ

۴۴۷۔ پهٔ اصل کښې زهٔ ږګودم دي ۔ خو چې سرے ددې پورتني شعرته ګوري نو دلته دا جمله صحیح نهٔ ښکاري دلته ما وکتل زیات صحیح دي ۔

۴۴۸۔ پهٔ اصل کښې الپیغمبر دا غلط دے

۴۴۹۔ الطاف د لطف جمع ده معنیٰ یې تحفې او مهرباني ده

۴۵۰۔ کتب د کتاب جمع ده

۴۵۱۔ پهٔ اصل کښې یا ایها النبی دا غلط دے یا پهٔ کښې نشته ۔ دلته حرف ندا مقدر دے

۴۵۲۔ قرآن پاک ۳۲ : ۵

۴۵۳۔ پهٔ اصل کښې طاعته دے

۴۵۴۔ پهٔ عربۍ کښې صفت او موصوف پهٔ هر لحاظ سره یو شان راځي دلته د مضاف مضاف الیه پهٔ دول استعمال شوے دے چې درست نهٔ دے پهٔ قرآن پاک کښې حُوْرٌ عِیْنٌ استعمال شوے دے یعني هغه حورې چې غټې غټې سترګې یې دي نو ځکه دلته ددې استعمال حورٌ عِیْنٌ به زیات مناسب دے

۴۵۵ پهٔ اصل کښې اعطیناکَ دے دا د قرآن رسم الخط نهٔ دے دقرآن رسم الخط اَعْطَیْنٰکَ دے

۴۵۶۔ پهٔ اصل کښې تپوس دے

۴۵۷۔ پهٔ اصل کښې تمن دے

۴۵۸۔ پهٔ اصل کښې نفـتري دے

۴۵۹۔ پهٔ اصل کښې المحاورات دے

۴۶۰۔ پهٔ اصل کښې "او اواز د دوې به د نغمو اوچت" دے

۴۶۱- پهٔ اصل کښې دا نیم بیتے داسې دے۔

ؤ پوښته دا هم دے نعمت به د جنت

۴۶۲- چونکې د قرآن رسم الخط هم توقیفي دے نوځکه پهٔ دې کښې کمے زیاتے کول ښهٔ خبره نهٔ ده۔ د قرآن رسم الخط دد ې آیت داسې دے۔
وَ اَنْهٰرٌ لَمْ یَتَغَیَّرْ طَعْمُهٗ ۔ وَ اَنْهٰرٌ مِنْ خَمْرٍ لَذَّةٍ لِلشّٰرِبِیْنَ٥ وَ اَنْهٰرٌ مِنْ عَسَلٍ مُصَفًّی٥ قرآن پاک ۴۷: ۱۵

۴۶۳- پهٔ اصل کښې وړوکے دے خو ددې لفظ پهٔ استعمال نیم بیتے نهٔ رواتیږي۔

۴۶۴- پهٔ اصل کښې سقیت دے

۴۶۵ پهٔ اصل کښې علی نعمائه دے

۴۶۶- د شاعر دا رباعي د هغې بل حدیث وضاحت دے
کَادَ الْفَقْرُ اَنْ یَّکُوْنَ کُفْرًا ۔ یعنې ځنې فقر سړے کفرته رسوي نو ځکه مسلسل محنت او مشقت کول عین عبادت دے خو دا یاد ساتل پهٔ کار دي چې د دنیا دولت دټولو مقصد نهٔ دي گرځول پکار بلکې دا یو لوئے مقصد د حصول د پاره ذریعه گرځول پهٔ کار دي۔ مولانا روم څنگه ښهٔ مثال ورکړے دے چې د دولت مثال د کشتۍ دے۔ کشتۍ چې د اوبو د پاسه روانه وي نو منزل ته رسي ولې کهٔ اوبو له پهٔ سینه کښې ځائے ورکړي نو غرقیږي۔

۴۶۷- دا تکے خو پهٔ عام دول څنګدن استعمالیږي ولې صحیح څنګدن دے

۴۶۸- برق خاطف هغه برق چې د سړي نظر ختموي یعنې تیز برق۔

۴۶۹- قرآن پاک ۲ : ۲۴

۴۷۰ پهٔ اصل کښې دا نیم بیتے داسې دے۔

دیوې یلې یودې سمه دروازې

۴۷۱- قرآن پاک ۱۰۷ : ۵۴۴

۴۷۲ - په اصل کښي فویل دے

۴۷۳ - قرآن پاک ۱۴ : ۶

۴۷۴ - په اصل کښي دا نشته

۴۷۵ - قرآن پاک ۷۷، ۱۵، ۱۹، ۲۴، ۲۸، ۳۴، ۳۷، ۴۰، ۴۵، ۴۷، ۴۹

۴۷۶ - قرآن پاک ۸۳ : ۱

۴۷۷ - 〃 〃 ۱۰۴ : ۱

۴۷۸ - 〃 〃 ۲ : ۷۹

۴۷۹ - 〃 〃 ۳۹ : ۳۲

۴۸۰ - په اصل کښي اغشنی دے

۴۸۱ په اصل کښي عَلَیْکَ دے

۴۸۲ - قرآن پاک سورهٔ طٰهٰ

۴۸۳ - په اصل کښي یُعْطِیْکَ دے

۴۸۴ - په اصل کښي رُبُّکَ دے

۴۸۵ - قرآن پاک ۹۳ : ۵

۴۸۶ - ساری د اردو تښے دے معنیٰ ئې تهول ده

۴۸۷ - په اصل کښي اقصی دے

۴۸۸ - په اصل کښي نشته

۴۸۹ - صحیح عبارت داسي دے اَللّٰهُمَّ اِنِّي اَعُوْذُ بِعَفْوِکَ مِنْ عِقَابِکَ اَيِ .بِجَنَّتِکَ من نارِکَ

په اصل کښي داسي دے -

اللهم اعوذ بك بعفوك من عتابك و بجنبیک من نارک

۴۹۰ - په اصل کښي دا کلمه نُصَدِّقُکَ ده - صحیح یُصَدِّقُکَ ده

۴۹۱ - په اصل کښي آبی دے

۴۹۲- په اصل کښې صلوة دے

۴۹۳- قرآن پاک ۶ : ۱۶۰

۴۹۴- په اصل کښې حَرَّمَ دے

۴۹۵ په اصل کښې علیه دے

۴۹۶- صحیح ایت داسې دے -

وَمِنْ قَوْمِ مُوْسٰی اُمَّةٌ یَّهْدُوْنَ بِالْحَقِّ وَبِهٖ یَعْدِلُوْنَ ٥

۷ : ۱۵۹

په اصل کښې داسې دے

ومن قوم موسیٰ امة وبه یعدلون -

۴۹۷- په اصل کښې العظیم دے

۴۹۸ قرآن پاک ۳۹ : ۳۳

۴۹۹- په اصل کښې لما دے

۵۰۰ قرآن پاک ۳۹ : ۳۲

۵۰۱- 〃 〃 ۲ : ۵۲

۵۰۲- 〃 〃 ۳ : ۱۱۰

۵۰۳- رسول د خدا ے ته د خپل امت اصلاح د ټولو نه اهم او ضروري کار ښکاریده ځکه دې لویه نښخه داده چې دوئ د خدا ے دیدار له لاړل د خدا ے دیدار ئې اوکړو او د خپل امت د اصلاح دپاره دوباره دنیا ته راغے ولې چې عبدالقدوس گنگوهیؒ یو وار اووې چې د رسول د خدا ے په ځا ے که زه وے نو زه به کله هم دوباره دنیا ته نه وے راغلے . په دې یو بل نیک سړي داسې تبصره کړې ده چې په یو رسول او ولي کښې فرق داد ے چې رسول په جنت کښې هم خپل امت یادساتي او د خپل امت د اصلاح دپاره د جنت نه دنیا ته دوباره راځي ولې د

ولې چې څپل مقصد حاصل شي نو بیا مرید په تندرنه ګوي - (ایډیټر)

۵۰۴- قرآن پاک ۲ : ۵۴

۵۰۵- په اصل کښې نشته

۵۰۶ قرآن پاک ۳۰ : ۴۴

---

